# كشف الباري

عما في

# صحيح البخاري

تصنيف

حضرت مولانا سليم الله خان

# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

تالیف ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث

جامعه فاروقیه کراچی

# کتاب الغسل

جلد ⑰

## خصوصیات

- ← د احادیثو تخریج
- ← د تعلیقات بخاری تخریج
- ← د اسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ← د شرحی دهرې خبرې لاندې په حاشیه کښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ← د بخاری د احادیثو اطراف خودل

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵........۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان

شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچۍ

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پیښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست--
- دیوبند کتب خانه خوست-- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد-- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل-- ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰
- قدرت کتب خانه کابل--
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل-- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد-- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

بسم الله الرحمن الرحیم

# مقدمه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِی الْاٰخِرَةِ ؕ وَهُوَ الْحَكِیْمُ الْخَبِیْرُ ۝ [سبا:۱]

یُّؤْتِی الْحِكْمَةَ مَنْ یَّشَآءُ ۚ وَمَنْ یُّؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ اُوْتِیَ خَیْرًا كَثِیْرًا ؕ وَمَا یَذَّكَّرُ اِلَّاۤ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝ [البقرة:۲۶۹]

هُوَ الَّذِیْ بَعَثَ فِی الْاُمِّیّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ یَتْلُوْا عَلَیْهِمْ اٰیٰتِهٖ وَیُزَكِّیْهِمْ وَیُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۗ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ۝ [الجمعة:۲]

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِیْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَی الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَیْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا یَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا ؗ سِیْمَاهُمْ فِیْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ؕ [الفتح:۲۹]

وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۙ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَیِّاٰتِهِمْ وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝ [محمد:۲]

اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ یُصَلُّوْنَ عَلَی النَّبِیِّ ؕ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَیْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا ۝ [الاحزاب:۵۶]

اللهم صل على محمد وأزواجه وذريته كما صليت على آل إبراهيم وبارك على محمد وأزواجه وذريته كما باركت على آل إبراهيم انك حميد مجيد. [صحيح البخاري، كتاب أحاديث الأنبياء رقم الحديث، ۳۳۶۹)

اما بعد: ډیرزیات حمد اوثنا او بې شمیره تعریفونو اوثناګانې د الله تعالی د لاریب اوبرحق ذات دپاره دی چا چې د خپلې بې اندازې مهربانۍ او احسان سره د خاورې څخه اوبیا د وینې اوغوښې د ټکړو څخه اشرف المخلوقات انسان پیدا کړه. اود عقل اوفهم په ذریعه ئې د نامعلومه اوبې درکه څیزونو په علم او معرفت سره ښائسته کړل او په اولنۍ وحی کښې ئې قلم د تعلیم ذریعه اوګرځوله او د دې د عظمت اواهمیت خبر ئې ورکړو.

په لکهونو او کروړونو درود اوسلام اود کامل رحمت نزول دې وی زما د خالق او مالک په محبوب اوآخری نبی فداه ابی وامی حضرت محمد بن عبدالله صلوات ربی وسلامه علیه په محترم اومکرم ذات باندې، چا چې د جهالت اوګمراهۍ په ژورو او خطرناکو کندو کښې وربریوتې انسانیت د اسلام اوایمان په ذریعه د کامیابۍ او کامرانۍ اوچت مقام ته اورسول.

شغفت به حبا فانذكر اسمه — تحدر مع العين يستشهد الخدا

بسيرية عطرت ظل جوانحي — لعل يد الرحمن تستنقذ العبدا

أرطب حلقي بالصلاة على إسمه فتنقلب الأشواق في مهجتي بردا

ډيرزيات خوش نصيبه اوبختور دى هغه پاک نفسونه چا چې د الله تعالى كلام اوارشادات نبوى نه صرف په خپلو سينواوليكلوكښې محفوظ كړى دى بلكه خپل ژوندونه ئې د دې ارشاداتواووينا ګانوعملى مظهر جوړ كړي دي.اود ((فليبلغ الشاهد الغائب)) حقيقى مصداق جوړ شول.الله جل شانه دې په كروړونو رحمتونه نازل كړى دالله تعالى په مينه كښې مستې دې قافلې په يو باوفا اوباصفا شهسوار ،لوئې داعى ،حضرت مولانا محمدالياس كاندهلوى په قبر باندې، د چا د فكر اوفيض اوسعى مشكور نه رڼا حاصلونكى د يو تبليغى جماعت د نقل اوحركت په بركت سره بنده ظلوم اوجهول چې د عصيان اونسيان څخه جوړ شوې دې بې اصول عصرى فنون د اوبو بربوږقئ اوګڼړلي او د علوم الهى او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم ارشادات على صاحبها الصلاة والسلام حاصلولو او درس اوتدريس ، تصنيف اوتاليف سره ئې جوړښت نصيب شو.(يعنى په دې كښې مشغوله شو)

د حديث پاک خدمت يقيناً د الله تعالى فضل وكرم او د قدرمندو استاذانو ،موربلار، وروڼو، مخلصه دوستانوخاص كر زما د شيخ او مربى ، استاذ المحدثين ، حضرت شيخ الحديث مولانا سليم الله خان صاحب دامت بركاتهم وفيوضاتهم د پيشمنى د وخت دعاګانې ،او د هغوى د تربيت او شفقت په وجه راته نصيب شوې دې.اودا د طالب علمئ د اولنئ زمانې د دعاګانو د قبوليت اثرهم دې.ځكه چې بنده كله په اول ځل د علم د طلب د سفر دپاره قصد اوكړو نوزما مشفق اومحسن مشرورور مولانا خالد محمود صاحب مدظله (فاضل جامعه فاروقيه كراچى) راته د قطب العالم،ريحانة الهند،حضرت شيخ الحديث مولانا زكريا كاندهلوى نور الله ،،آپ بيتى،، راكړو اودا نصيحت ئې راته اوكړو چې د دې يو مخ مطالعه كوه.نو د مطالعه په دوران كښې د حضرت نور الله مرقده د اول حديث په وخت اول كښې دا دعا مې د نظر څخه تيره شوه چې ،،اې الله د حديث پاک سلسله ډيره روسته شروع شوه دا اوس ترمرګه پورې ماسره اوساته، [ص،٨٨] نو هم د هغه وخت څخه مې دا دعا ځان سره لازمه اونيوله او د هغه سميع او مجيب الدعوات د رحمت په دربار كښې مسلسل دعا كونكې يم چې ،، اې الله د علوم نبوت د حاصلولو سلسله د ډير وخته پورې د عصرى ادارو خاورو چاڼ كولو څخه پس شروع شوې ده.نو اوس تر مرګه پورې د علوم نبوت د تعليم او تعلم او خدمت سره راته تعلق نصيب كړه او اوس صرف يوه آرزو ده چې د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم فيوضات اوحديث مبارک د خدمت دا سلسله جارى وى.

اردو شعر

عبث ہے جستجو بحر محبت کے کنارے کی

بس اس میں ڈوب ہی جانا اے دل یار ہونا

په موجوده زمانه كښې د الله تعالى د طرفه د دين په ټولو شعبواو كارونو كښې نوې نوې كارنامې كونكو كښې د الله تعالى په دربار كښې د الله تعالى د قبول شوو بندګانو يوه ډله د علماء اهل سنت والجماعت

دیوبند ده. ددې قافلې مشر محدث کبیر،شیخ الاسلام والمسلمین، حضرت مولانا سید حسین احمد مدنی نور الله مرقده د علومو او معارفو څخه څه حصه اخستونکې اوامین ، زما شیخ او مربی ،استاذ المحدثین، حضرت شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان صاحب دامت برکاتهم وفیوضهم اطال الله بقاءه علینا وعافیته هم دې.د دوی د دینی اصلاحی اوعلمی خدماتو څخه به څوک خبر نه وی د تیرې شوې نیمې صدۍ څخه هم زیاته موده ئې د اصح الکتب بعد کتاب الله صحیح البخاری درس پوره په محنت اوکوشش سره جاری دې. او تقریباً د دولس دیارلس کالوراسې د دې درسونو اوافاداتو د ترتیب،مراجعت ،تحقیق اوتعلیق عظیم الشانه سلسله روانه ده. په ما عاجز بنده باندې چې دحضرت شیخ الحدیث دامت برکاتهم کوم علمی، روحانی آومادی احسانات دی هغه نه صرف د ژبی او بیان محتاج نه دی بلکه د هرقسم رسمی تشکر د کلماتو څخه هم لوړ دی.د دې لوئې احساناتو څخه یو دا هم دې چې کمزوری بنده ته ئې دخپلو درسونو او امالی د ترتیب اومراجعت اود تحقیق اوتعلیق کار حواله کړل. کوم چې پخپله د نعمت غیرمترقبه څخه څه کم نه دې.نو د الله تعالی په فضل وکرم سره د حضرت شیخ الحدیث دامت فیوضهم دهرقسم او مسلسل سرپرستۍ اوحوصله افزائې او دعاګانو د ترتیب اومراجعت اود تحقیق اوتعلیق په ټولو سختو مرحلو کښې د هغې په ترسره کولو کښې د نال (د ښارو په پښویاندې چې د اوسپنې کوم پټرې لګولې شی هغې ته وائی) کار ورکړو.خلاصه دا چې د حضرت شیخ الحدیث دامت فیوضهم د صحیح بخاری شهر آفاق دروس او امالی دا مجموعه کوم چې دکشف الباری په نوم باندې نامدُاره ده تقریباً د درې کالو مسلسل محنت او صبر ، کوشش اوجدوجهد،د استاذانودعاګانواود مور پلار اوبنده سره دزړه تعلق ساتونکو اومحبت کونکو وروڼو د پرله پسې دعاګانواومدد نیتجه چې نن موجودیږی.او داستاذ المحدثین حضرت شیخ الحدیث زیده مجدهم جامع شخصیت د دوی اوچت اخلاق اوصفات حمیده ،دینی ، اصلاحی اوپه دې بنده ظلوم اوجهول باندې د شفقت اوعنایت تردې چې په ذاتی دکور په معاملاتو کښې مدد کول دبیان محتاج نه دی البته دا ضرور ده

*دید لیلیٰ کیلیے دیدۂ مجنوں ہے ضرور     میری آنکھوں سے کوئی دیکھے تماشا ان کا*

د سپارلی شوی کار د تفصیل بیانولو څخه وړاندې د خپلوهغه احسان کونکو استاذانواو نورو حضراتو تذکره کول ضروری ګنړم د چا خبرو، مدد ،سرپرستۍ ود بیشمنید دوخت دعاګانو د دې لوې کار دپاره راته لارهمواره کړه په دې حضراتو کښې د ټولو څخه وړاندې د مولاناعبید الله خالد صاحب مد ظله ذکر خیر دې چا چې په حیثیت د ناظم اعلی جامعه فاروقیه اومسئول شعبه تصنیف وتالیف د دې سلسلې په ټولومرحلو کښې چې څومره د هغوی په وس کښې وه نو په آسانتیا پیدا کولو کښې ئې د څه کمی څخه کار نه دې اخستې.الله تعالی دې د خپل شان لائق دوی ته د دې بهترینه بدله ورکړی.

زما په احسان کونکو استاذاتو کښې د ټولو نه اول مولانا محمد یوسف افشانی صاحب دامت برکاتهم اوحضرت مولانا نورالبشر صاحب دامت برکاتهم دی په دوی کښې د اول ذکر شوی (افشانی صاحب) خوپه ما عاجزه باندې دومره احسانات دی چې د هغې شمارهم زما د وس څخه بهردې ،د دوی هرقسمه

مدد، دعاګانې، نصيحتونه او پرله پسې راهنمائي د لارې د مشال کارورکوي. او ثاني الذکر (نورالبشر صاحب) دوی دعلمي او تحقيقي کار په دوران کښې ډير په ورونې تندی (خوشحالۍ) سره په مختصرو او اوږدو مجلسونو کښې دګرانو ګرانو غټو پرانستل کړی دی (يعنی مشکلات ئې حل کړی دی) اود راهنمائۍ سره سره ئې د خپلو ډيرواهمو اوقيمتومشورو احسان رابانردې هم کړې دې. د تصنيف د نورو ملګرو خصوصاً استاذ محترم مولانا حبيب الله زکريا صاحب مدظله، استاذ محترم مولانا مزمل سلاوټ صاحب مدظله، اواستاذ محترم مولانا عزيز الرحمن صاحب صاحب مدظله راسره هم ډير مدد کړې دې. په دوی کښې د اول الذکر (مولانا حبيب الله زکريا) څخه راته پوره پوره د فائدې اخستلو موقع ملاؤ شوې ده.

د محترمو والدينو، پرله پسې دعاګانو، نصيحتونو، اود مشر وررور مولانا خالد محمود صاحب او صادق محمود صاحب کوم چې اګرچې زمانه د مسافت په اعتبار سره لرې دی خو د دوی مسلسل رابطه، (تماس) حوصله افزائي، اومعاشي مدد يقينا دبنده په علمي، تصنيفي ژوند کښې بنيادی کردار اداکړې دې. ډيره بې انصافي به وی که د ګران ملګری مفتي محمد طاهر اټکی صاحب تذکره اونکړم چا چې بغير د مبالغې څخه په ګهنټو ګهنټو دخانه کعبې غلاف نيولې وو او د بنده دپاره اوخاص کر د موجوده کار دآسانتيااو تکميل دپاره ئې دعاګانې کړی دی الله تعالى دې زما دې ټولو محسنينوخاص کر مولانا عطاء الله شهاب صاحب، مولانا شفيق الرحمن صاحب، مولانا صابرمحمود صاحب اود تصنيف دشعبې ملګری مفتي امان الله صاحب، مفتي مبارک علي صاحب، مفتي محمد راشد صاحب، مفتي عبدالرحيم صاحب، مفتي سميع الرحمن صاحب، مفتي عبدالغني صاحب، مفتي ثناء الله صاحب، او نورو مدد کونکو اوداد ګيرنه راکونکو ته ډيرې غوره بدلې ورکړی.

بنده د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت فيوضاتهم دطرفه د دروس صحيح بخاری د ترتيب، مراجعت اوتحقيق دپاره کتاب الغسل باندې کارکولو مکلف ګرځولې شوې وو. کتاب الغسل ټول په ۲۹ ابوابو باندې مشتمل دې. دا زير نظر مجموعه په دې کښې په يوولس بابونو، دوه قرآني آياتونو، نولس حديثونو اوپنځه تعليقاتو او تشريحاتوباندې مشتمل ده. حضرت شيخ الحديث دامت برکاتهم وفيوضهم اود هغوی په حکم سره د استاذ محترم حضرت مولانا نورالبشر صاحب مدظله د طرفه دبخاری شريف د دې تقرير د ترتيب، مراجعت او تحقيق دپاره بنده د لاندينی څيزونو دالتزام پابند ګرځولې شوې دې.

۱- د ترجمة الباب مقصد / مقاصد وضاحت او تراجم ابواب باندې سير حاصل بحث کول

۲- ربط د بابونو اود مناسبت ذکر کول

۳- د حديث الباب ترجمه کول

۴- د حديث الباب دامهات سته څخه تخريج کول

۵- د حدیث د راویانو جامع پیژندګلو، خاص کر د هغوی د تعدیلاتو او توثیقاتو ذکر کول د غه شان که په هغوی باندې د امامانو کلام وی نو د هغې ذکر کول، که بلا تکلف او تعسف دفاع کیدې شی نو دفاع، ګنی بیا کم از کم په صحیح بخاری کښې د داسې متکلم فیه راوی د راوړلو عذر بیانول

۶- د حدیث په سند باندې محد ثانه کلام کول

۷- د حدیث په شرح کښې چې د کومو څیزونو خیال ساتلې شوې دې هغه دا دی.

الف: د حدیث په نورو طرقو کښې وارد شوې مختلف الفاظ نقل کول او د هغې تشریح کول

ب: نحوی، صرفی، بلاغی، لغوی او اعرابی حیثیت سره تشریح او تحقیق کول

ت: د فقهی مذاهبو (د اصحاب المذاهب د کتابونو څخه) تنقیح او حواله ورکول

ث: د فقهی دلائلو التزام

۹- د حدیث الباب د ترجمة الباب سره مطابقت بیانول

۱۰- د بخاری د متابعاتو او شواهدو تشریحات

دا خبره دې یاده وی چې په متابعاتو او شواهدو کښې د لاندینی خبرو خاص طور سره خیال ساتلې شوې دې.

الف: د حدیث د کتابونو حواله چې د صفحاتو سره ورکړې شی، نو هلته ورسره د کتاب او باب د غه شان د رقم الحدیث ذکر ضرور اوکړې شی.

ب: د حدیث الباب تخریج خاص کر د امهات سته څخه چې اوکړې شی که امام بخاری په هغې کښې متفرد وی نو د معتمد مصنف حواله دې ضرور ورکړې شی. او په دې سلسله کښې د فتح الباری، عمدة القاری سره سره د تحفة الاشراف څخه هم مدد واخستې شی.

ت: په متن کښې چې د حدیث د کوم کتاب حواله ورکړې شوې وی که هغه کتاب په دار التصنیف کښې موجود وی یا په آسانتیا سره ملاویدې شی نو هغې طرف ته مراجعت کول او حواله ورکول دې وی او که نه وی نو مجبورئ په وجه ثانوی مراجع مثلاً فتح الباری وغیره حواله دې ورکړې شی.

ث: د تعلیقات بخاری په سلسله کښې دې خامخا د تعلیق التعلیق څخه استفاده اوکړې شی.

ج: د راویانو په باره کښې د عامو شروحاتو د حوالې په ځائې دې د اسماء الرجال د معتبرو کتابونو حواله ورکړې شی.

ح: د لغوی تحقیقاتو د پاره دې د لغات الحدیث او عام لویو د لغت کتابونو مثلاً تاج العروس، لسان العرب، بالمصباح المنیر او المغرب وغیره ته ترجیح ورکړې شی.

خ: د اعرابی، نحوی، او صرفی تحقیقاتو د پاره (د نحو او صرف خاص کر) د حدیثو شروحاتو څخه استفاده واخستې شی.

د: د فقهی مباحثو او د هغې د دلائلو د پاره د هر مکتب فکر کتابونو ته دې رجوع اوکړې شی.

ذ: د حدیثی مباحثو او محد ثانه کلام د پاره د شروحاتو سره سره د علل حدیث کتابونو ته رجوع دی.

ر: په معاصرو تقريرونو باندې خو به د سرسرى استفادې حده پورې اعتماد وى خو دحوالې اعتماد به پرې هيڅ كله نشى كولې.
ز: كوم څه چې دحديث څخه استفاده كولى شى نو هغه به د حديث د شارحينو د كلام په رڼا كښې وى.
س: دغه شان په يو حديث باندې فقهى او كلامى مباحث به هم مكرر نشى ليكلى مگر دا چې سخت ضرورت وى نو په هغه وخت كښې به داولنى ځائې حواله هم وركولې شى.
ش: دحديث چې كوم مباحث ذكر كول دى د هغې تعين به د اكابرينو شروحات او تقريرونه وړاندې كيخودلى شى او مرتب كولى شى.
احقر د دې خبرزې ښه كوشش كړې دې چې د ذكرشوو څيزونو التزام ساتلوسره سره تقرير آسان او عام فهم وى.
دحضرت شيخ الحديث دامت بركاتهم په خصوصى حكم سره د ټولو عربى عبارتونو د ترجمې هم التزام مې كړې دې.د دې دپاره چې د كم استعداد طالبان اودحديث د مباحثو ذوق لرونكى عام مسلمانان ترې هم استفاده كولى شى.خو كه په حواشى كښې صرف داهل علمو دپاره چرته د عربى عبارت حواله وركړې شوې ده نو د هغې د ترجمې التزام نه دې كړې شوې.د تقرير په دوران كښې كه چرته حديث راغلى وى نو دهغې مكمل تخريج كړې شوې دې او د متعلقه كتابونو په مروجه طريقه باندې حواله وركړې شوې ده.بعضې وخت كه د حديث يوه ټكړه، اثر، يا تعليق په تقرير كښې موجود وى د ضرورت مطابق مكمل سنداوبعضې وخت پوره متن حديث هم په حاشيه كښې نقل كړې شوې دې.د احاديثو د تخريج دپاره د ،،دارالسلام،، مطبوعه كتب سته څخه استفاده كړې شوې ده.په حواله جاتو كښې امهات كتب اومصادر اصليه څخه چې څومره كيدې شوه د استفادې كوشش شوې دې.بعضې وخت د مجبورئ د وجې يا د تائيد دپاره د مصادر ثانويه حواله هم وركړې شوې ده.د حوالو په وركولو كښې د دې خبرې هم كوشش شوې دې چې ترڅومره كيدې شى نو كم از كم د درې معتبر اومعتمد كتابونو حوالې وركړې شى.اود تراجم رجال په سلسله كښې څومره چې راته ښودنه شوې وه هغه شان د تراجمو چې كوم كتابونه ملاويږى نو په هغې د مشهوررو كتابونو حوالې وركړې شوى دى.د دې دپاره كه اهل علم غواړى نو په آسانتيا سره مطلوبه بحث اوراوى ته رسيدل كولې شى.د فرق باطله د بعضې كتابونو د نه موجود كيدوپه وجه د مجبورئ په وجه د ،، المكتبة الشامله،، څخه هم استفاده شوې ده.حسب ترتيب په اول كښې د بابونو اجمالى فهرست اود اسماء الرجال مترجم لهم فهرست او په آخر كښې د ټولو مصادرواو مراجعو تفصيلى فهرست هم وركړې شوې دې.په كوم كښې چې د كتاب اومصنف پوره تعارف، د محقق اومحشى او مكتبه نوم اود طباعت كال كه موجود وى نود هغې ذكر هم شوې دې اوكه د مختلفو مكتبو د مختلفو طبعاتو څخه استفاده شوې وى نوپه داسې صورت كښې هغه په ګوته كړې شوې ده.اود تعليقاتواو د كتابونو د حواشيوذكر د مصادرو سره د مستقل مصدر په توګه وركړې شوې دې.

د اهل علمو څخه دا خبره بيخي پټه نه ده چې د هرې يوې علمي مسودې او درسي تقرير د ترتيب او تحقيق په دوران كښې د مقتضاء حال مطابق اضافې او ترميم وغيره ضروري وي نو دلته هم داسې نوبت راتلل ضروري وو. خو الله تعالى دې زما شيخ اومربي حضرت شيخ الحديث دامت فيوضهم ته ډيرې ښې بدلې وركړي چې هغوى په دې بوډاتوب، د بيمارو د زياتوالى ، او د ډيرو ديني او علمي مصروفياتو باوجود وخت په وخت نه صرف په مهربانۍ سره مطالعه كړه ده بلكه د خوښولو اظهار ئې هم كړې دې.

دیر و حرم میں روشنی شمس و قمر سے ہو تو کیا

مجھ کو تو تم پسند ہو اپنی نظر کو کیا کروں

دا يو خاص علمي او تحقيقي كار دې. او احقر ته د خپلې كم علمۍ او كم فهمۍ نه صرف دا چې احساس دې بلكه ښكاره باره اقرار هم دې.

سرخرو ہوتا ہے انساں ٹھوکریں کھانے کے بعد

رنگ لاتی ہے حنا پتھر سے پس جانے کے بعد

د اهل علم او تحقيق د مزاج مطابق د فن ماهرينو ته به د دې حقيقت هم ښه معلومات وي چې د يو علمي او تحقيقي كار په ترتيب او تحقيق او تعليق كښې د څومره ځان ستړون، عزم او استقامت، اود تلاش او لټون ضرورت وي چې بعضې وخت صرف د يوې نكتې او د يوې جزئيه پورې رسيدلو د پاره بغير د مبالغې د سوونو نه بلكه د زرګونو صفحاتو اود څوڅوغټو جلدونو او د شلو كتابونو د صفحاتو اړولو راړلو ضرورت پيښيږي. هله مقصودى ملغلره حاصليږي. يقيناً دا لوئې خدمت زما د ظلوم او جهول او بې علم او كم استعداد د وس (طاقت) كار نه وو. كه د الله تعالى توفيق اود حضرت شيخ دامت بركاتهم العاليه سرپرستي شامل حال نه وه. په دې باندې بس دا وئيلې شي

این سعادت بزور بازو نیست

تانہ بخشد خدائے بخشندا

بنده د دې عظيم الشان كار په سلسله كښې د خپل ځان څخه وړاندې د قدرمندو استاذانوخاص كر د حضرت مولانا نور البشرصاحب دامت بركاتهم اوحضرت مولانا حبيب الله زكريا صاحب مدظله د منهج تابعدارۍ څومره چې كيدو شو كوشش كړې دې. خودانسا ن په حيثيت دومره علمي اوتحقيقي كار كښې دغلطۍ او سهو امكان څخه سل فيصده بچ كيدل ډيره ګرانه ده. او نه بنده خپل ځان د دې څخه خالي ګڼرى. د دې وجې د اهل علم اوفضل په خدمت كښې درخواست دې كه د مطالعې په دوران كښې ورته ښكلا اوښه والې په نظر راشي نو دا دې د الله تعالى انعام اوګڼري اوزما شيخ او مربي حضرت شيخ الحديث دامت فيوضهم ته منسوب كړي اوكه په سهواوغلطۍ باندې خبر شي نو دا دې د بنده د طرفه تقرير ته د تحرير جامې اغستلو ناقص كوشش او د مرتب ذاتي كوتاهي اوخامي اوګڼري اودهغې څخه دې ما ضرور خبر كړي د دې د پاره چې د هغې اصلاح اوكړې شي او د دغه شان ممكنه غلطيانو ازاله اوكړې شي.

د كتاب د كمپوزنګ څخه پس د پروف تصحيح او نظرثاني د ټو ورځو د مسلسل جدوجهد ، كوشش او صبر كونكي محنت څخه پس بنده په خپله مكمل كړه اود كمپوزنګ او سيټنګ په باره كښې عرفان انور مغل ورور مې ډير د مهارت ښودنه اوكړه اود مياشتو كارئې په ورځو او ګنټو كښې اوكړه او د هنرمندئ ثبوت ئې وركړل. اوپه بعضې انتظامي كارونو كښې راته د مكتبه فاروقيه ناظم مفتي حماد خالد صاحب، يوسف رانا صاحب او محمدصديق صاحب د ډې ورونړو ښه تعاون حاصل وو. الله تعالى دې دې ټولو حضراتو ته او نورو ټولو مدد ګارانو او احسان كونكو ته جزاء خير وركړي

په آخر كښې احقر په خپله هم دعا كوي او قدرمندولوستونكو ته خو درخواست كوي چې زما د شيخ اومربي حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم واطال الله بقاءه علينا د مكمل صحت او عافيت د پاره خصوصي دعاګانې كوي چې الله تعالى د حضرت اقدس د مهربانۍ سيورې ترډير وخته پورې په مونږ باندې قائم او دائم اوساتي اومونږ ته او ټول امت ته دې د هغوى د فيوضاتو څخه د مستفيد كيدو توفيق وركړى دغه شان د مرتب د پاره هم دعا كوئى چې زرترزره د باقي سپارلې شوى كار د تكميل توفيق وركړى اود احقر دا معمولي غوندې كوشش په خپل دربار كښې قبول او منظور كړى اود ا دبنده د ده د مور پلار او د ټولو دوستانو او محبانو د پاره د صلاح او فلاح اود آخرت ذخيره اوګرځوى. آمين

ابوالخير عارف محمود بن حاجي جمعه خان

استاذورفيق شعبه تصنيف وتاليف جامعه فاروقيه كراچئ

۲۴ ربيع الثانى ۱۴۳۵ هجرى مطابق ۲۴ فرورى ۲۰۱۴ عيسوى

پښتومترجم احقر شاه فيصل بن نبى ګل ترې اوزګارشو

دجمعې مباركه ورځ ديرويشتم شوال كال ۱۴۳۷ موافق ۲۹ جولائى كال ۲۰۱۶ عيسوى

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|
| دَ غسل حقيقي او اصطلاحي تعريف | ۵۲ |
| دَعلامه زَبيدي رائې | ۵۲ |
| اركان غسل | ۵۲ |
| آيا په غسل كښې واجبات شته؟ | ۵۳ |
| دَ طهارت مراتب | ۵۴ |
| دَ طهارت اهميت | ۵۴ |
| په طهارت باندې دَ صحابه كرامو ز تعريف | ۵۴ |
| **۱ ـ باب: اَلْوُضُوءِ قَبْلَ اَلْغُسْلِ** | **۵۵** |
| دَترجمة الباب مقصد: | ۵۵ |
| اولنې توجيه | ۵۵ |
| دويمه توجيه | ۵۵ |
| دريمه توجيه | ۵۶ |
| څلورمه توجيه | ۵۶ |
| دَعلامه قسطلاني او حافظ ابن حجر توجيه | ۵۶ |
| دَعلامه عيني رحمه الله توجيه | ۵۶ |
| دَحضرت شيخ الحديث رحمه الله توجيه | ۵۶ |
| شيوخ و اساتذه | ۵۷ |
| تلامذه | ۵۷ |
| دَحديث رسول ﷺ احترام | ۵۷ |
| دَ جنابت لغوي تحقيق | ۵۸ |
| جنب څه ته وائي | ۵۹ |
| دَ جنبي وجه تسميه | ۵۹ |
| په جنابت حيض اونفاس كښې فرق | ۵۹ |
| دَ جنابت اصطلاحي تعريف | ۶۰ |
| جنابت دَ حديث په رنړا كښې | ۶۰ |
| دَ ابن فارس رائې | ۶۰ |
| دَ سيدسابق رائې | ۶۱ |
| موجبات غسل: | ۶۱ |
| دَ مالكيه مذهب | ۶۱ |
| دَ شوافع مذهب | ۶۱ |
| دَ حنابله مذهب | ۶۱ |
| دَ احنافو مذهب | ۶۱ |
| په خروج مني سره دَ غسل واجب كيدل | ۶۲ |
| مذاهب ائمه: | ۶۲ |
| دَ شوافع دليل | ۶۲ |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# ۵ - كتاب الغسل

**وقول الله تعالى ﴿ وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلَكِنْ يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ /المائدة:٦/.**

**وقوله جل ذكره: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى حَتَّى تَعْلَمُوا مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّى تَغْتَسِلُوا وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴾ /النساء:٤٣/.** [۱]

دَ بسم الله سره متعلق تفصيلي بحث "بدءالوحي" لاندې تيرشوې دې.[۲]

**دلته دَ عنوان نه وړاندې بسم لله شته که نه؟:** دَاصيلي په روايت کښې دَ عنوان نه وړاندې بسم الله نشته دې او هغه دَ "کتاب" په ځائې دَ "باب" عنوان قائم کړې دې. دازياته اوجه دَ په نسبت دَ کتاب ځکه چه کتاب دَ مختلف انواع مجموعه ته وائې اوغسل دَ طهارت يونوع او قسم دې سره دَدې چه في نفسه دَدې اسباب ډيردې. زمونږ په نيزمتداول نسخه اودَ نورو حضراتو په روايت کښې دکتاب دَ عنوان نه وړاندې بسمله مذکوره ده.[۳]

**عنوان مقدم دې که بسمله؟:** دَدې نه پس دلته دااختلاف دې چه عنوان مقدم دې که بسمله؟ دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په قول بسمله دَعنوان نه مقدم ده خوداکثروحضراتو په نيز دَدې عکس دې.[۴] يعنې بسمله مؤخراوکتاب الغسل عنوان مقدم دې.

**دَماقبل سره ربط:** امام بخاري رحمه الله په ماقبل کښې "کتاب الوضوء" په عنوان سره دَ طهارت صغرىٰ او دَدې انواع بيان کړې وو. اوس دَدې ځائې نه ((کتاب الغسل)) په عنوان سره طهارت کبرىٰ اودَهغې انواع بيانوي. دَ حدث اصغر سره دَ طهارت زيات حاجت پيښيږي په خلاف دَحدث اکبر، لهذا دَ طهارت صغرىٰ کثيرالوقوع کيدلو دَوجې نه ئې دا په طهارت کبرىٰ باندې مقدم کړې دې.[۵]

---

[۱]) آيات سره متعلق بحث وړاندې راځي.

[۲]) کشف الباري بدءالوحي: ۳۸۴-۳۶۹،۲۰۷-۱/۲۰۳.

[۳]) عمدة القاري: ۲۸۱۲/۳.

[۴]) فتح الباري: ۴۷۴/۳،إرشاد الساري: ۴۷۵/۱.

[۵]) عمدة القاري: ۲۸۲/۳

**دَغسل لغوی تحقیق:** په لغت کښې غسل دَ باب ضرب نه ((غسل الشئ غَسْلاً)) وینځل (او په اوبوسره خیرې لرې کولې ته وائی. ([1])

علامه رازی رحمه الله فرمائی چه غسل دَ سین په ضمه اوسکون دواړه شان مستعمل دې. ([2])علامه جوهری رحمه الله وائی ((غسل: غَسَلْتُ الشئ غَسْلاً بالفتح والاسم الغُسلُ بالضم)) ([3])یعنی دَغین دَ فتحه سره مصدر اوضمه سره اسم دې . ابن منظور رحمه الله وائی الغَسل بفتح الغین مصدر دې غَسَلْتُ نه اوبضم الغین اسم دې دَ اغتسال او غسل بضم الغین دَ ټول بدن وینځلوته وائی([4])ابن اثیر رحمه الله هم دَغین فتحه سره مصدراوضمه سره اسم ګرځولې دې.البته هغه وائی((الغُسل بالضم الماء الذي يغسل به))یعنی غسل بضم الغین هغه اوبوته ونیلی شی چه په هغې سره غسل کولیشی. ([5])ابن سیده رحمه الله فرمائی چه په مصدریاندې ضمه اوفتحه دواړه جائزدی بعض وائی چه الغَسل (بالفتح) دَ لامبلوعمل ته وائی اوضمه سره هغه اوبوته وائی په کوم سره چه لامبلې شی. ([6])

صاحب دَمجمع بحارالأنوار، علامه طاهر پتنی رحمه الله فرمائی ((الغَسل: بفتح غین أشهر وأفصح من ضمها مصدر غسل))، الغسل مصدردې دَ غسل یعنی بفتح غین اشهر وافصح دې په نسبت دَ غین دَ ضمه. ([7])

هم دغه توجیه علامه قسطلانی رحمه الله په أرشاد الساري کښې اوشیخ الاسلام علامه زکریا انصاری رحمه الله تحفة الباري کښې اختیارکړې ده. ([8])

**دَعلامه نووی رحمه الله رائې:** علامه نووی رحمه الله فرمائی((بفتح الغين وضمها لغتان، الفتح أفصح وأشهر عند أهل اللغة والضم هوالذي يستعمله الفقهاء، أوأكثرهم))([9])یعنی غسل دَ غین په فتحه اوضمه دواړه شان لوستلې کیږی دَاهل لغت په نیز فتح سره افصح او اشهردې. اواکثرفقهاء ئې ضمه سره استعمالوی. علامه نووی رحمه الله نور فرمائی چه علامه جمال الدین بن مالک رحمه الله چه په خپله زمانه کښې دَاهل ادب امام وو. مادَهغوی نه په دې باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل:((إذا أريد به الاغتسال، فالمختار ضمه، ويجوز فتحه، كقولنا: غسل الجنابة اغتسالها، ومن فتحه أراد غسل يديه غَسلاً)) ([10]) یعنی که چرې اغتسال یعنی غسل کول مراد واخستې شی نوبیاضمه مختار ده اوفتحه هم جائزده لکه چه زمونږ قول غسل الجنابة دې یعنی دَ جنابت نه غسل کول اوڅوک چه دامفتوح لولی نودې نه مراد دَلاسونو وینځل دی.

---

[1]) القاموس الوحيد:ص ۱۱۶۷.

[2]) مختار الصحاح:ص ۲۸۱.

[3]) معجم الصحاح: ص ۷۷٤.

[4]) لسان العرب:۱۰/۷۰.

[5]) النهاية في غريب الحديث والأثر:۲/۳۰۸، مجمع بحار الأنوار:٤/۳۸.

[6]) اوګورئې فتح الباري: ۲/۴۷۴.

[7]) مجمع بحارالأنوار:٤/۳۸.

[8]) أرشاد الساری:۱/٤۸۵ تحفة الباری:۱/۲۱۷.

[9]) المجموع شرح المهذب:۲/۱۳۰

[10]) تهذيب الأسماء واللغات، مادة غسل:۳/۶۰.

**غسل**: بکسر الغین هغه څیز ته وائی چه دَ تنظیف په غرض سره په غسل کښې استعمالولې شی [1] لکه خَطمی، سدر او صابون وغیره. جوهری وائی «**والغِسل بالکسر: ما یغسل به الرأس من خطمی وغیرہ**» [2]

**الغُسل بالضم** دا دَ غسول «**بفتح الغین**» جمع هم راځی. دَ کپړوو ینځونکې اشنان «صابون» وغیره ته وائی.
علامه نووی رحمه الله «المهذب» په حواله سره لیکلی دی چه دَحضرت میمونه رضی الله عنها په روایت کښې دی «**أدنیت لرسول الله صلی الله علیه وسلم غُسلاً من الجنابة**» [3]. یعنی ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ غسل جنابت دَپاره اوبه کیخودې، او دَحضرت قیس بن سعد رضی الله عنه روایت کښې دی «**أتانا رسول الله صلی الله علیه وسلم فوضعنا له غُسلاً**» [4] یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ له تشریف راوړو نومونږ دَهغوی دَ «غسل» دَپاره اوبه کیخودې.
په دې دواړو احادیثو کښې لفظ غسل مضموم الغین دې او مراددې نه دَغسل اوبه دی. په دې دواړو احادیثو کښې لفظ «**غُسلاً**» مضمون الغین کیدل اهل لغت، محدثین او فقهاؤ په نیزمتفق علیه دی.
باقی پاتې شوه خبره دَ شیخ عمادالدین بن باطیش رحمه الله «**المهذب**» په الفاظو دکتابت کښې دا مکسور الغین ګرځول نو دا یوصریح خطا، قبیح تصحیف او داسې منکردی چه ده نه وړاندې چادې ارتکاب نه دې کړې او داسې باطل دی چه په کوم کښې به دَهغه اَتباع نه شی کولې. مادَې تذکره خلق په دې باندې دَ خبرولو دَپاره کړې ده، دې دَپاره چه څوک په دې سره دهوکه اونه خوری. [5]

**یوه شبه**: علامه نووی رحمه الله لیکلی دی چه دَ فقهاؤ اقوال: **باب غسل الجنابة او غسل المیت او وجب علیه وضوء وغسل او یجب الغسل من خروج المنی** وغیره په شان الفاظو کښې لفظ غسل دَ غین په ضمه او فتحه دواړه شان لوستل جائزدی دواړه شان لوستل فصیح دی. البته فتحه سره لوستل مشهوردی. دَ فقهاؤ خپل مضمون لوستل خطاوجهل او په بل لغت باندې نه خبریدل دی. [5]

**جواب**: علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله دَعلامه نووی رحمه الله دَ طرف نه دَفقهاؤ تغلیط او تجهیل په جواب کښې فرمائی «**تخصیص الفقهاء الغسل الشرعی بالضم واستعمالهم الفتح فی غیره إنما هو للتمیز لئلا یشتبه أحدهما بالآخر، فلا وجه لتغلیطهم**» [6] یعنی دَفقهاء غسل شرعی ضمه سره خاص کول او دَلفظ دَغسل دَ غین فتحه سره په نورو معنو کښې استعمالول په دواړو کښې تمیز پیدا کولو دَپاره دې. دې دَپاره چه په دې دواړو کښې اشتباه پیدا نه شی لهذا هیڅ وجه نشته دې چه په دې باره کښې دَ فقهاؤ تغلیط او کړې شی.

**دَ کتاب شروع په قرانی ایاتونو سره دَ کولو غرض**: امام بخاری رحمه الله دکتاب الغسل شروع دَ قرآن مجید په دوو آیاتونو سره کړې ده. یو دَ سورت نساء او بل دَ سورت مائده آیت دې. علامه کرمانی رحمه الله دَدې نه دَامام بخاری رحمه الله غرض بیانولو سره فرمائی «**وأما غرض البخاري من هاتین الآیتین فهو بیان أن**

---

[1]) لسان العرب: ۱۰/ ۷۰، إرشادالساری: ۱/ ٤۸۵، تحفة الباری: ۱/ ۲۱۷.
[2]) معجم الصحاح: ص۷۷۵، تحفة الباری: ۱/ ۲۱۷، إرشاد الساری: ۱/ ٤۸۵.
[3]) سیأتی تخریجه
[4]) الحدیث أخرجه الإمام أحمد بن حنبل فی مسنده، حدیث قیس بن سعد بن عبادة رضی الله عنه: ۳۹/ ۲٦۲، رقم الحدیث: ۲۳۸٤٤.
[5]) تهذیب الأسماء واللغات: ۳/ ۵۹.
[6]) السعایة: ۱/ ۲۷٤.

وجوب الغسل على الجنب مستفاد من القرآن»(۱) يعنی دَ امام بخاری رحمه الله غرض په دې دوو آياتونوسره دابيان کول دی چه په جنبی باندې دَغسل واجب کيدل دَ قرآن پاك نه مستفاد دی. هم دا توجيه علامه قسطلانی رحمه الله اوعلامه عينی رحمه الله هم اختيارکړې ده.(۲)

**يودقيق نکته:** بيا امام بخاری رحمه الله دَ سورة مائده آيت دَ سورة نساء په آيت باندې مقدم کړې دی. حالانکه په ترتيب کښې سورت نساء په سورت مائده باندې مقدم دې. دَدې توجيه حافظ ابن حجر رحمه الله دا بيان کړې ده چه امام بخاری رحمه الله دا دَ يودقيق نکته دَ وجې نه کړې دی. هغه دا چه دَ سورت مائده لفظ ﴿فَاطَّهَّرُوْا﴾کښې اجمال دې اودَسورت نساء لفظ ﴿حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا﴾کښې دَاغتسال تصريح او تطهير مذکوربيان دی.(۳)

**دَعلامه عينی رحمه الله رائې:** علامه عينی رحمه الله دَ حافظ صاحب دا توجيه ردکړې ده هغه فرمائی چه ﴿فَاطَّهَّرُوْا﴾ کښې هيڅ اجمال نشته دې نه دَ لغت په اعتبارسره اونه دَ اصطلاح په اعتبارسره ځکه چه ﴿فَاطَّهَّرُوْا﴾ دَ لغت او اصطلاح هر دواړو په اعتبارسره دَ بدن دَ غسل په معنې کښې دې.(۴)

دَ بخارې شريف متداول نسخه کښې او شرح ابن بطال کښې دادواړه آياتونه مختصراً اودکشف الباری دَ متن دَپاره منتخب نسخه اود بخاری شريف په نورو شرحوکښې مکمل ذکردی.(۵)

﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى أَوْ عَلٰى سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَأَيْدِيْكُمْ مِّنْهُ ۚ مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ حَرَجٍ وَّلٰكِنْ يُّرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ﴾(۶)

**ترجمه:** اوکله چه جنابت اوشی نوبنه شان سره پاکوالې حاصل کړئی، اوکه چرې بيمارئی، يا په سفرکښې وی، ياڅوك تاسوکښې لاړشی دَ ضرورت نه راغلې وی، ياښځوله ورغلې وی، بيا اوبه نه بيا مومئی تاسو، نواراده اوکړئی دَ پاکې خاورې اوامږئی خپل مخ او لاسونه په دې سره، الله تعالی نه غواړی چه په تاسوباندې سختی اوکړی، ليکن غواړی چه تاسو پاك کړی اوپوره کړی خپل احسان په تاسو باندې دې دَپاره چه تاسو احسان اومنئی.

په سورت نساء کښې دَالله تعالی ارشاد دې: ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِيْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى أَوْ عَلٰى سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَأَيْدِيْكُمْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا﴾(۷)

---

(۱) صحيح أبی عبدالله البخاری بشرح الكرمانی:۱۱۱/۳.

(۲) اوګورئی إرشادالساری:۴۸۳/۱ عمدة القاری:۲۷۲/۳.

(۳) فتح الباری:۴۷۵/۲-۴۷۴.

(۴) عمدة القاری:۳۷۳/۳.

(۵) صحيح البخاری:۳۹/۱،قديمی کتب خانه، کراچی شرح ابن بطال: ۳۷۵/۱ اوګورئی فتح الباری:۴۷۴/۲عمدة القاری :۲۷۲/۳تحفة الباری:، ۲۱۷/۱إرشاد الساری:۴۸۵/۱شرح الكرمانی:۱۱۱/۳-۱۱۰.

(۶) سورت المائدة آيت:۶.

(۷) سورت نساء آيت: ۴۳.

**ترجمه**: اې دَ ايمان والو مه نيزدې كيږئ مانځه ته كوم وخت چه تاسو په نشه كښې ئى، تردې چه تاسو پوهيږئ په هغې څه چه وايئ اونه دهغه وخته پورې چه دَغسل حاجت وى مګر په لاره تللووخت كښې تردې چه غسل اوكړئ، اوكه چرې تاسو بيماران يئ ياراغلې وې يوسړې تاسونه دَ ضرورت نه يا ورغلې وى ښځوته، بياملاؤنه شى تاسو ته اوبه، نواراده اوكړئ دَ پاكې خاورې، بيااومږئ په خپلو مخونو او لاسونوباندې، بيشكه الله تعالى معاف كونكې اوبخښونكې دې.

**دَ طهارت كبرىٰ اصل**: دَ سورت مائده او نساء دا آياتونه دَ طهارت كبرىٰ په حواله سره دَ اصل حيثيت لرى. [1] دَ طهارت ټول احكام دَدې آياتونونه مستنبط كړې شوى دى. په سورت مائده كښې مقصود اصلى دَ اودس احكام بيانول دى. غسل اوتيمم تبعًا ذكرشوى دې. اودَ سورت نساء په آيات سره دَ غسل مقصدبيانول دى.

دَغسل حكم رومبې آيت كښې ﴿فَاطَّهَّرُوا﴾ اوپه دويم آيت كښې ﴿حَتَّىٰ تَغْتَسِلُوا﴾ په ذريعه وركړې شوې دې. دلته دَ تطهير اواغتسال هم يوه معنى ده ځكه چه ﴿فَاطَّهَّرُوا﴾ دَباب تفعيل صيغه ده په كوم سره چه په طهارت كښې مبالغه مطلوب ده.(هغه هم دَغسل په ذريعه سره حاصليدې شى) بيا په دې باندې نور دا چه تطهر پخپله په لغت كښې دَ غسل په معنى كښې مستعمل دې. [2]

**دَحدث اكبرنه غسل دَ امت محمديه خصوصيت نه دې**: دَ حدث اكبر يعنى لوئى پليتئى نه غسل كول اوَطهارت حاصلول دَامت محمديه خصوصيت نه دې، بلكه دې نه وړاندې بنى اسرائيل هم دَدې مكلف وو. اوالبته دَ صحيح قول مطابق اودس دَدې امت خصوصيت دې پخوانوامتونوته داشرف حاصل نه وو. سابقين انبياءكرامو ته هم دا حكم وو. حدث اكبرنه طهارت دَدې امت خصوصيت نه دې دَدې په دليل كښې علامه عبدالحى لكهنوى رحمه الله فرمائى: عبدبن حميددَ وهب رحمه الله نه نقل كړى دى چه هغوى فرمائى «مكتوب فى الزبور: من اغتسل من الجنابة فإنه عبدي حقاً ومن لم يغتسل من الجنابة فإنه عدوي حقاً» [3] يعنى په زبوركښې ليكلې شوى دى چه الله تبارك وتعالى ارشادفرمائيلې دې چاچه دَ جنابت نه غسل اوكړو هغه زما حقيقى بنده دې اوچاچه دَ جنابت نه غسل اونه كړو هغه په حقيقت كښې زمادښمن دې.

---

[1] بداية المجتهدونهاية المقتصد: ۵۲۷/۱.

[2] لامع الدرارى:۲۰۶/۲.

[3] السعاية فى كشف مافى شرح الوقاية: ۱۷/۳،ولم أجده تماماً كما ذكر، إلا أن الإمام أبابكرأحمد بن مروان بن محمد الدينورى القاضى المالكى (المتوفى ۳۳۳ هـ) أخرجه مختصراً أفى المجالسة وجواهر العلم (۱۴۹/۶-۱۴۸رقم الحديث:۲۴۷۸) ولفظه: [قال] حدثنا محمدبن عبدالعزيز، نا أبى، ناعبدالرزاق، نا معمر عن زيدبن أسلم، قال: سمعت وهباً الدمارى يقول: "قرأت فى الزبور: إن الله تبارک وتعالى يقول: "من اغتسل من الجنابة فإنه عبدى حقاً".آه .أما لفظه: "فإنه عدوى حقاً" أخرج معناه الإمام أبوبكر أحمدبن الحسين البيهقى (المتوفى ۴۵۸ هـ) مرسلاً فى شعب الإيمان، باب العشرون من شعب الإيمان [وهوباب] فى الطهارات، فضل الوضوء(۱۹/۳رقم الحديث ۲۷۴۹): [قال]أخرنا أبوعبدالله الحافظ، ثنا أبوالعباس الأصم، ثنا يحيى بن أبى طالب، ثنا عبدالوهاب بن عطاء، أنا عوف بن أبى جميلة وجعفر بن حبان أبوالأشهب والربيع بن صبيح عن الحسن عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه يروى ذلک عن ربه تبارک وتعالى أنه قال: ثلاث من حافظ عليهن فهوعبدى حقاً وقال عوف وأبى: حقاً ومن ضيعهن فهو عدوى حقاً، الصلاة، والصوم والجنابة" يعنى غسل الجنابة وهذا مرسل. اهـ

**دَ انبیاء سابقین وظیفه:** علامه بیهقی رحمه الله په دلائل النبوة کښې نقل کړی دی چه غسل جنابت دَ انبیاء کرام علیهم السلام وظیفه وه په دې امت باندې هم دَ جنابت غسل فرض کړې شوې دې. چنانچه هغوی دَ حضرت وهب بن منبه رحمه الله نه نقل کړی دی چه الله تعالی په زبور کښې په حضرت داؤد علیه السلام باندې وحی نازل کړه اوونې فرمائیل: «یاداؤد! إنه سیأتي من بعدك نبي یسمی: أحمد ومحمداً، صادقاً سیداً، لا أغضب علیه أبداً، ولا یغضبني أبداً، وقد غفرت له قبل أن یعصیني ماتقدم من ذنبه وما تأخر وأمته مرحومة، أعطیتهم من النوافل مثل ما أعطیت الأنبیاء، وافترضت علیهم الفرائض التي افترضت علی الأنبیاء والرسل، حتی یأتوني یوم القیامة نورهم مثل نور الأنبیاء، وذلك أني افترضت علیهم أن یطهروالي لکل صلاة، کما افترضت علی الأنبیاء قبلهم، وأمرتهم بالغسل من الجنابة کما أمرت الأنبیاء قبلهم وأمرتهم بالحج کما أمرت الأنبیاء قبلهم، وأمرتهم بالجهاد کما أمرت الرسل قبلهم» (۱)

یعنی اې داؤد! تانه پس به یونبی راځی دَهغه نوم به احمد اومحمد وی، هغه به رښتونې اوسردار وی، زه به دَهغه نه کله هم نه ناراض کیږم اوهغه به ما کله هم ناراض نه کړی. ما دَ نافرمانتې نه وړاندې دَ هغه مخکښې روستو ټول ګناهونه معاف کړې دی. دَهغه امت بخښلې شوې دې. ما دَهغه امت ته دَ انبیاء کرامو په شان نوافل ورکړی دی اوپه هغوی باندې هغه فرائض فرض کړې شوی دی کوم چه په انبیاء کرامو اورسولانو باندې فرض کړې شوې. تردې چه هغوی به په قیامت کښې زما په دربار کښې حاضرېږی په داسې حال کښې چه دَهغوی نور به دَ انبیاء کرامو دنور په شان وی. داځکه چه ما په هغوی باندې فرض کړی دی چه هغوی دې زما دَپاره په هرمانځه کښې پاکی حاصله کړی لکه څنګه چه په مخکینو انبیاء کرامو باندې فرض کړې شوې وو. اوما هغوی ته دجنابت نه دَغسل حکم ورکړې دې لکه څنګه چه دَهغوی نه مخکښې رسولانو ته حکم ورکړې شوې وو او هغوی ته دَ حج حکم ورکړې شوې دې لکه چه وړاندې انبیاء کرامو ته ورکړې شوې وو اوهغوی ته مې دَ جهاد حکم ورکړې دې لکه چه وړاندې رسولانو ته حکم ورکړې شوې وو.

**دَ جنابت غسل کله فرض شوې؟:** دَغسل فرضیت دَ هجرت نه وړاندې شوې. حافظ ابن عبدالبر رحمه الله دَ اهل سیر نه نقل کړی دی چه غسل دَ جنابت په مکه مکرمه کښې فرض شوې. (۲)

دَغسل جنابت فرضیت په مکه مکرمه کښې په کومه موقع شوې نوپه دې باره کښې علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله لیکلی دی چه دَغسل جنابت فرضیت مکه مکرمه کښې اسراء (معراج) په شپه شوې لکه چه دَابن عمر رضي الله عنه روایت په دې باندې دلالت کوی. (۳)

امام ابوداؤد رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه نقل کړی دی: «کانت الصلاة خمسین، والغسل من الجنابة سبع مرار، وغسل البول من الثوب سبع مرار، فلم یزل رسول صلی الله علیه وسلم یسأل حتی جعلت الصلاة خمساً، والغسل من الجنابة مرة، وغسل البول من الثوب مرة» (۴) یعنی په شروع کښې مونځونه پنځوس او دَ جنابت غسل اووه ځل اودَمتیازو کپړې وینځل اووه ځل فرض شوې وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم (په شپه دَمعراج) دَ الله تعالی نه

---

(۱) جماع أبواب صفة رسول الله صلی الله علیه وسلم، باب صفة رسول الله صلی الله علیه وسلم في التوراة والإنجیل والزبور وسائر الکتب وصفة أمته: ۳۸۰/۱.

(۲) إنسان العیون في سیرة الأمین المامون المعروف بالسیرة الحلبیة: ۳۷۸/۱، أوجز المسالك: ۳۳۹/۱.

(۳) السعایة: ۲۷٤/۳.

(۴) کتاب الطهارة، باب في الغسل من الجنابة، رقم الحدیث: ۲٤۷.

دکمی درخواست اوکړو ترديې چه پنځه مونځونه باقی پاتې شو او غسل دَ جنابت یوځل او دَمتیازونه کېږې وینځل یوځل باقی پاتې شو.

دَغسل په فرضیت باندې دَعلماؤ اتفاق: بیاجمهور علماء فرمائی چه دَ جنابت غسل فرض دې. ابن عبدالبر رحمه الله (١) ابن رشدمالکی رحمه الله (٢) اوابن حزم رحمه الله په دې باندې اتفاق نقل کړې دې. (٣) لیکن عمر بن ابراهیم العلوی الزیدی الکوفی الحنفی (المتوفی ٥٣٩ هـ) چه دَ روافض فرقه جارودیه سره تعلق لرلو هغه دَ غسل جنابت قائل نه وو. (٤)

**دَعلامه ابوالغنام نرسی قول:** علامه شمس الدین ذهبی رحمه الله "العبرفی خبرمن غبر" (٥) اوتاریخ اسلام کښې نقل کړی دی «قال الحافظ محمدبن ناصر: سمعت الحافظ أبی الغنائم النرسی یقول: عمربن ابراهیم جارودی المذهب ولا یری الغسل من الجنابة» (٦) یعنی حافظ بن ناصر وئیلی دی چه ما دَ حافظ ابوالغنام النرسی نه واورېده چه عمر بن ابراهیم جارودی المذهب وو اودَغسل جنابت قائل نه وو.

**دَ قران اوسنت مخالفت:** دَهغه دامذهب دَ قرآن اوسنت خلاف دې ځکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَإِنْ كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ (٧)

اونبی کریم ﷺ ته چه کله هم جنابت شوې نوحضورپاك غسل فرمائیلې دې لکه څنګه چه دَ روایاتونه معلومیږي.

**دَجنابت دَغسل تعلیم:** الله تعالی نبی کریم ﷺ ته دَ نور ارکان اسلام سره دَحضرت جبرائیل علیه السلام په ذریعه باندې دَ جنابت دَ غسل تعلیم هم ورکړې دې. چنانچه په مصنف ابن ابی شیبه کښې دَعبدالله بن بریده رحمه الله روایت دې هغه فرمائی چه کله مونږ مدینې منورې ته راغلو نودَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په خدمت کښې حاضرشو هغوی اوفرمائیل: «کنا عندرسول الله صلی الله علیه وسلم فأتاه رجل جعد الشباب، ذیب الریح، حسن الوجه، فقال: السلام علیك یارسول الله!، فقال: وعلیك، فقال: یارسول الله! أدنومنك؟ فقال: "أدنه" فدنا دنوة، فقلنا: ما رأینا کالیوم رجلاً أحسن ثوباً ولا أطیب ریحاً ولا أحسن وجهاً ولا أشد توقیراً لرسول الله صلی الله علیه وسلم، ثم قال: یارسول الله! أدنومنك؟ قال: "نعم" فدنا دنوة، فقلنا مثل مقالتنا، ثم قال له الثالثة: أدنومنك یارسول الله!؟ قال: "نعم" حتی ألزق رکبتیه برکبة رسول الله صلی الله علیه وسلم، قال: یارسول الله! ما الإسلام؟ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "تقیم الصلاة، وتؤتی الزکاة، وتصوم رمضان، وتحج البیت، وتغتسل من الجنابة"، قال: صدقت، فقلنا: مارأینا کالیوم قط رجلاً، والله لکأنه یعلم رسول الله صلی الله علیه وسلم» یعنی مونږ دَ

---

(١) الاستذکار: ١/٣٠٤ فتح المالك بتبویب التمهید: ١/٤٢٠.

(٢) بدایة المجتهد: ١/٥٣٤.

(٣) الأوسط فی السنن والإجماع والاختلاف: ١/١١١.

(٤) لسان المیزان: ٦/٦٣-٦٢.

(٥) العبرفی خبرمن غبر: ٢/٣٥٧-٣٥٦.

(٦) تاریخ الإسلام: ١١/٣٢١.

(٧) المائدة: ٦، یعنی که چرې تاسو په جنابت کښې شئ نو په ښه شان سره پاکی حاصلوئی. داآیت سره دَدې چه مدنی دې لیکن دادَ هغه آیاتونه دی دَ کوم حکم چه په مکه کښې راغلې وو اونزول ئې په مدینه کښې شوې. (السعایة: ١/٢٧٤).

رسول الله ﷺ په مجلس کښې ناست وو چه ناڅاپې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې يو سړې راغلو چه د بهترين کپړو والا، ښکلې خوشبوئى والا اوښکلې مخ والا وو. هغه د الله تعالى د نبى په خدمت کښې سلام عرض کړو نو حضورپاك د سلام جواب ورکړو. بيا هغه عرض اوکړو اى د الله تعالى رسول آيا زه لږ شان نيزدې شم؟ نوحضورپاك ارشاد اوفرمائيلو رانيزدې شه، نوهغه لږ شان نيزدې شو. حضرت ابن عمر رضى الله عنهما وائى چه مونږ په (خپل زړه کښې) اووئيل چه مونږ د نن ورځې په شان يوسړې نه دې ليدلې چه د ښکلې کپړووالا، پاکيزه خوشبوئى والا، ښکلې مخ والا اود رسول الله ﷺ ديرزيات عزت کونکې. بيادې سړى عرض اوکړو اې دالله تعالى رسول! آيازه تاسو ته درنيزدې شم؟ نبى کريم ﷺ اوفرمائيل او، نوهغه لږ نور ورنيزدې شو. مونږ په خپل زړه کښې د مخکښې خبرې په شان سوچ اوکړو. بيادې سړې په دريم ځل اووئيل اې دالله رسول! آيازه تاسوته درنيزدې شم؟ نبى کريم ﷺ اوفرمائيل او، نودحضورپاك سره دومره نيزدې شو چه هغه خپل دواړه زنګونونه د رسول الله ﷺ زنګونونوسره يوځائى کړل. بيا هغه سوال اوکړو اې دالله رسول! آسلام څه څيزدې؟ نبى کريم ﷺ اوفرمائيل (اسلام دادې چه) ته مونځ قائم کړې، زکوة اداکړې، درمضان روژې اوساتې، د بيت الله حج اوکړې اود جنابت غسل اوکړې.هغه اووئيل تاسو رښتيا اوفرمائيل.مونږ ونيل چه مونږ د نن په شان سړې کله هم نه دې ليدلې، په الله تعالى قسم الکه چه هغه رسول الله ﷺ ته د (دغه امور) تعليم ورکولو.

**دغسل دمشروعيت حکمت:** دحيض نفاس اوجنابت نه پس دسړى اوښځې په بدن کښې فتور او سستى پيداکيږى، په طبيعت کښې د يوقسم کمزورى اوکمې محسوس کيږى. په غسل سره په سړى کښې تازه والې راځى. د حيض نفاس او جنابت سره راتلونکې کمزورى لرې کيږى او طبيعت بحال کيږى. بيا د جنابت په حالت کښې په عام توګه انسان دالله تعالى د ذکرنه غافل کيږى اوحائضه او نفساء مونځ هم صحيح نه دې. الله تعالى د جنابت وغيره نه پس غسل واجب ګرځولې دې دې دپاره چه د انسان قوت بحال شى اوهغه تازګى محسوس کړى اود الله تعالى د ذکرنه غافل نه شى او شرعًا دمونځ اداکول صحيح شى. [1]

**دحکيم الامت رحمه الله توجيه:** حکيم الامت حضرت مولانا اشرف على تهانوى رحمه الله د غسل دمشروعيت وجه بيانولو سره فرمائى: "جنابت او حيض دواړه داسې حالتونه دى کوم ته چه د قرب الهى سره منافات او په کوم کښې چه نجاست سره اختلاط دې. اومونځ او قرآن کريم لوستل الله تعالى سره د هم کلام کيدو مرتبه ده اود الله تعالى سره د هم کلام کيدو شرف سره انسان هله مشرف کيدې شى چه د هر قسم نجاستونو نه پاك اومطهروى ځکه چه الله تعالى پاك دې اوهغه د ناپاکئى نه نفرت دې".

حکيم الامت حضرت مولانااشرف على تهانوى رحمه الله نورليکلى دى چه په جماع کښې تلذذ وى او په دې سره په ذکر الهى کښې غفلت ضرور کيږى په دې وجه د دې دتلافى کولودپاره غسل کولې شى. د منى په وتلوسره د بدن ټول مسامات کولاويږى کله دې نه خوله اوځى اودې خولې سره د بدن د دننه حصې نه ګنده مواد هم خارج کيږى کوم چه مساماتوته په رسيدوسره حصاريږى. که چرې دا اونه وينځلې شى نود خطرناکو بيمارو راپيداکيدو انديښنه کيږى. [2]

**د بقراط قول:** حضرت مولانا انورشاه کشميرى رحمه الله اوفرمائيل چه فصول بقراط کښې دى: د جماع نه پس فورى توګه بانډې غسل کولوسره د بيمارئى خطره ده په دې وجه ډيره تادى نه دى کول پکار. دغه

---

[1] تعليقات بداية المجتهد: ۵۲۷/۱.

[2] احکام اسلام عقل کى نظر ميں: ص ۴۷.

شان غسل جنابت بالکل نه کولوسره برګې مرض او ګنده بغل بیماری پیداکیږی اوحیض په حالت کښې جماع کولوسره د جذام بیماری پیدا کیږی.(۱)که چرې څوك دا اووائی چه منی په نجس کیدوکښې په یقینی توګه د متیازو وغیره نه کمه ده نوبیا صرف خروج منی سره د پوره بدن وینځل ولې واجب ګرځولې شوی دی نه چه په بول وبراز سره؟

**جواب**:علامه شعرانی رحمه الله "المیزان الکبری" کښې د خپل رور شیخ افضل الدین نه د دې جواب نقل کړې دې چه د خروج منی یا جماع د وجې نه پوره بدن وینځل واجب ګرځول صرف د نجاست د وجې نه نه دی بلکه په دې کښې دموجود هغه خوند د وجې نه دی چه په پوره بدن کښې ورننوځی اودا یخوی اودې د خپل رب د یادنه غافل کوی. هم په دې وجه شارع مونږ ته داحکم راکړې دې چه ترکوم ځائې پورې د دې خوند رسیږی هلته د بدن پوره سطح باندې اوبه اوبهیوئی «دې د پاره چه د دې اثرات ختم کړې شی».(۲)

**د ابن قیم الجوزیه رحمه الله رائې**: علامه ابن قیم الجوزیه رحمه الله لیکلی دی چه په خروج منی سره د غسل واجب اولازم کیدل او په متیازو وغیره سره نه واجب کیدل د شریعت اسلامی د لویوخوبیانو رحمت حکمت او مصلحت نه دې. ځکه چه منی د ټول بدن نه اوځی په دې وجه الله سبحان وتعالی د دې نوم "سلاله"کیخودلې دې. (۳)ځکه چه منی د ټول بدن نه راوتوسره آخرد شاپه لاز ښکته راځی «اود اندام مخصوصه په ذریعه سره خارج کیږی» اومتیازې وغیره صرف د خوراك څښاك فضلې وی کوم چه په معده اومثانه کښې جمع کیږی. په دې وجه د خروج بول وبراز په نسبت د منی وتلوسره بدن ډیرکمزورې کیږی.(۴)

**جنابت دغفلت سبب او غسل د تازګئی سبب دې**: په خروج منی سره غسل کول نه صرف د بدن زړه او روح دپاره مفیددې بلکه د هغه ټولو ارواح د پاره مفیددې دکوم چه بدن سره تعلق دې. ځکه چه دا په غسل سره قوی کیږی. غسل د خروج منی سره راتلونکې کمزوری لرې کوی. په جنابت سره په بدن کښې دروندوالې، سستی اوغفلت پیدا کیږی اوپه غسل سره تازګی او په بدن کښې سپکوالې پیدا کیږی.(۵)

**د جنابت بوج**: د جنابت نه پس ترکومې پورې چه غسل کولوسره طهارت حاصل نه کړې شی د دې په نجاست سره انسان په خپل ځان د غرپه شان بوج محسوس کوی. چنانچه حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه فرمائی«واغتسلت فکأنی ألقیت عنی جبلاً»(۶)یعنی ماغسل«دجنابت»اوکړو«اود غسل نه پس داسې محسوس شوه چه» لکه چه ماد خپل ځان نه یوغرښکته کړې وی.

---

(۱) فیض الباری:۴۵۳/۱انوار الباری:۹/۹.

(۲) السعایة:۱۸/۱.

(۳) وهوفی قوله تعالی ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ ﴾المؤمنون:۱۲.

(۴) إعلام الموقعین عن رب العالمین، فصل: کل ما فی الشریعة یوافق العقل، الغسل من المنی دون البول:۱۰۱/۲.

(۵) أعلام المؤقعین عن رب العالمین:۷۸/۲-۷۷.

(۶) الحدیث أخرجه الإمام أبوداؤد فی سننه، فی کتاب الطهارة، باب الجنب یتیمم، رقم الحدیث:۳۳۲، انظر جامع الأصول رقم:۵۲۹۲.

**دَ جنابت دَغسل نه بې پرواهی كولونحوست:** كوم سړي چه په غسل جنابت كښې بې پرواهي كوي اوهغه دَ جنبي پاتې كيدو عادت گرځولې وى تردې چه دَمونځ وخت هم تيرشي نودداسې سړي دَ جنابت نحوست ذكر په حديث شريف كښې راغلى دى. چنانچه امام ابوداؤد رحمه الله اوامام نسائى رحمه الله دَحضرت على رضي الله عنه نه دَ حضوراقدس ﷺ ارشاد مبارك نقل كړي دي چه نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى «لاتدخل الملائكة بيتًا فيه صورة ولاجنب ولاكلب» يعنى دَرحمت ملائكې په داسې كوركښې نه داخليږى په كوم كښې چه تصوير جنبي او سپي وى.

**دَ جنابت غسل ناخوښولوانجام:** اسلامى احكام ناخوښه گرځول اودَهغې په مقابله كښې دَ كافرانو دَ مذهب څه خبره خوښول ډيره خطرناكه خبره ده. كيدې شي چه څوك مغرب وهلې او دَجديدتعليم ليونې تش په نوم عالم يامستشرقين شاگردان دامعمولى عمل گنړى ليكن يادلرئى چه داد يومؤمن دايمان دَپاره دَ زهرهلاهل نه كم نه دي. اكثرداسې خبرې دَ ايمان نه محرومى اودلمن دَخالى كيدو سبب جوړيږى. يوه مشهوره واقعه ده چه يوعالم په انگلينډ كښې اوسيدلو. هلته يوه انگريزه ښځه مسلمانه شوه. دَدغه عالم په لاس ئې كلمه اولوستله اودَهغه نه دَ دين دَ ډيروخبرو دَ تعليم حاصلولو سره ئې په عمل كښې پوخوالې پيداكړو. څه موده پس دغه ښځه وفات شوه اودَهغې ئې هم هلته جنازه كولوسره خښه كړه. دا مولوى صاحب دَ انگلينډنه دَ حج يا عمرې په نيت سره مكې مكرمې ته راغلو. هلته دَ يوبل عالم انتقال شوې وو.

په مكه كښې رواج دادې چه هم په يوقبركښې څه موده پس بل مړې كيخودې شى. دغه شان هم په يوقبركښې دَ مناسب وقفې سره ډير مړى يوبل پسې خښولې شى. دَ رومبى مړى هډوكى وغيره يوطرف ته كولوسره هم په دغه قبركښې بل مړې كيخودې شى. هم په دغه رواج سره دَدغه مړشوى عالم دَپاره هم يوقبر كولاؤكړې شو نو په هغې كښې دَ انگلينډ دَهغه مړې شوې ښځې نعش دَ اول نه پروت وو. دَ انگلينډ والا مولوى صاحب هم هلته موجود وو هغه دا ښځه اوپيژندله. هغه مړشوې عالم په يوبل قبركښې خښ كړې شو.

مولوى صاحب چه كله انگلينډته لاړو نودَهغه خيال راغلوچه په انگلينډكښې خښه كړې شوې دغه نوې مسلمانې ښځې نعش خو مكې مكرمې ته رسولې شوې دې چه دلته دَهغې په قبركښې څوك دې؟ دې سوچ كولوسره ئې چه كله دَهغې په قبركښې اوكتل نوهلته دَمكې دَهغه عالم مړې پروت وو. هغه ډيرحيران شو چه داڅه قصه ده. بيا هغه سوچ اوكړو چه مكه كښې دَدې عالم باره كښې معلومات كول پكاردى چه هغه څنگه سړې وو؟ دَخلقونه ئې تپوس اوكړو نو هريوهم دغه اووئيل ډير ښه عالم وو ډير نيك وو. په دې باندې هغه سوچ اوكړو چه دَهغه دَ ښځې نه معلومول پكاردى خكه چه دَ ښځې تعلق ډير نيزدې وى. دَهغې نه تپوس اوكړې شو نوهغې هم دغه جواب وركړو چه ډير ښه وو ليكن يوه خبره به ئې كوله كه په جنابت كښې غسل فرض نه وې نوډيره آسانى به وې. په عيسائى مذهب كښې دا ډيره ښه خبره ده چه غسل جنابت فرض نه دې.

دَ غوركولونه پس معلوميږى چه يوه ښځه كومه چه دَ كفرپه وطن كښې مړه شوې وه دَهغې څه عمل الله تعالى ته دومره خوښ شوې وو چه دَهغې مړې دَهغه ځائى نه مكې مكرمې ته اورسولو اويوعالم چه په ظاهره ډير نيك وو ليكن هغه په اسلام كښې نقص راؤويستلو يواسلامى حكم يعنى دَ جنابت نه پس غسل ئې ناخوښ كړو اودَ دې په مقابله كښې دَ عيسائيت طريقه ښه اوگنړله. دَ كومې نقصان چه

دا شو چه په مکه کښې مړ کیدونه پس هلته دَخښیدونه باوجود الله تعالی دَهغه مړې دکافرانو وطن ته اورسولو،اعاذناالله منه.(۱)

دا واقعه دَ هغه مسلمانانودَپاره دَعبرت سبب دې چه په هره خبره کښې دَمغرب اودکافرانودَ پاره دَخوښوالی اظهارکوی. خاص کر دَاهل علم په نوم باندې یادیدونکی خلق چه دَخپلو مشرانودَ نسبتونو امانتدار جوړیدو په ځائی سرکاری عهدو این جی اوز ورکړې شوې دولت دَ وجې نه مستشرقین اودَ هغوی دَ منونکو په غیر کښې تلی ناست دی یا خپل نسبت بزرګانوطرف ته خوکوی لیکن هغوی په حقیقت کښې دَدې دنیاوی مفاداتو حصول غواړی. تحریر او تقریر افکاراونظریات کښې هغوی دَمسلمانانوترجمانی کولوپه ځائی هروخت دَ غیرمسلمو تعریفونه کوی. لکه چه دا خلق په اسلام باندې کفرته ترجیح ورکوی. داسې خلقوله هم دَ خپل بد انجام نه ویریدل پکاردی. الله تعالی دې دَ ټولو مسلمانانو ایمان عقائد اونظریاتوحفاظت اوکړی.

**په دین اکبری کښې دَغسل جنابت منسوخیت:** حضرت مولانا منظوراحمد نعمانی صاحب رحمه الله "تذکره مجدد الف ثاني" کښې لیکلی دی چه دَ(اکبربادشاه) دَ نوی دین یوه مسئله وه چه غسل جنابت واجب نه دې چه دَمنی نه نیکان خلق پیدا کیږی بلکه بهتردادې چه دَ کوروالی کولونه وړاندې غسل اوکړې شی (۲)دا خبره بدیهی البطلان ده.

**دَ بدن اوقلب ضرورت:** بهرحال دا یوه داسې معامله ده کوم چه هرسلیم الطبع او صحیح الفطرت سړې پیژنی چه غسل جنابت دَ انسانی بدن او قلب دَ ضروریاتونه دی ځکه چه جنابت سره دَ انسان ارواح طیبه یعنی دَ فرښتونه لریوالې پیدا کیږی اوکله چه غسل کوی نودا لریوالې ختمیږی. بل دَ جنابت دَ وجې نه انسانی روح دَخپل رب په دربارکښې دَ سجدې کولونه منع کولې کیږی. حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه فرمائی((إذانام الإنسان عرج روحه، حتی یؤتی بها إلی العرش، فإن کان طاهرا أذن لها بالسجود، وإن کان جنبا لم یؤذن لها بالسجود))(۳) یعنی کله چه انسان اوده کیږی نودَهغه روح دَ عرش طرف ته اوړلې شی، که چرې انسان پاك وی نودَهغه روح (دَخپل رب په دربار کښې) دَ سجدې کولو اجازت ورکولې شی اوکه هغه جنبی وی نودَهغه روح ته دَ سجدې کولو اجازت نه ملاویږی.

**دَ اوده کیدونه وړاندې دَ اودس حکمت:** کیدې شی هم دغه وجه ده چه دَ حضورپاك دَ تعلیماتو نه معلومیږی چه جنبی کله اوده کیږی نوهغه له پکاردی چه اودس اوکړی. کله چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو ((هل ینام أحدٌ وهوجنبٌ؟)) یعنی په مونږ کښې څوك اوده کیدې شی په داسې حال کښې چه هغه جنبی وی؟حضورپاك اوفرمائیل ((لعم لیتوضأ،ثم لینم حتی یغتسل إذاشاء)).(۴)

او هغه له پکاردی چه هغه دې اودس اوکړی بیادې اوده شی ترهغې پورې کله چه هغه اوغواړی چه غسل اوکړی (دَ سحرنه وړاندې).

---

(۱) جواهر الرشید:۹/۱۵-۱۴.

(۲) ص:۷۲، بحواله فتاوی حقانیه:۱/۵۶۸.

(۳) الأثر أخرجه عبدالله بن المبارک المروزی فی کتاب الزهد، الجزء العاشر، ص:۲۵۴، رقم:۱۲۴۵.

(۴) الحدیث أخرجه الإمام مسلم فی صحیحه وانفردبه، کتاب الحیض، باب جواز نوم الجنب واستحباب الوضوء له وغسل الفرج إذا یأکل أو یشرب أو ینام أو یجامع، رقم الحدیث:۷۰۳، انظر: تحفة الأشراف، رقم:۷۷۸۱.

**دَ حاذق اطباء رائې:** حاذق طبيبانو دَ دې خبرې صراحت کړې دې چه دَ جماع نه پس غسل کول دَ بدن تحليل شوې قوتونه واپس کوى اوکمزورتى ختموى اودَ بدن اوروح دپاره ډيرزيات مفيد دى. اودَ جنابت په حالت کښې پاتې کيدل دَ بدن او روح دپاره سخت مضردى. دَ دې امر په ښه والى باندې عقل او فطرت سليمه ګواهى کافى ده.[1]

**دَ غسل جنابت دَ فضيلت باره کښې يوبې سندروايت:** دَ جنابت دَ غسل دَ فضيلت باره کښې بعض بې سند اوموضوع روايات بيانولې شى. په عام توګه خطيبان حضرات په خپلو بيانونوکښې داسې بې سند روايتونه بيانوى. تردې چه بعض حضراتو وړاندې راتلونکى بې سند روايت تحقيق کولونه بغير دَ تشريح په نوم باندې يومفصل کتاب هم تصنيف کړې دې.[2]

علامه جلال الدين سيوطى رحمه الله فرمائى چه ماته شيخ شمس الدين ابن القماح رحمه الله په يوه مجموعه کښې دا روايت ملاؤشوې دې. په کوم کښې چه دَ ابوالعباس مستغفرى نه روايت وو چه مايوخل دَ علم په تلاش کښې ابوحامد مصرى له دَمصرتلودپاره اراده اوکړه. هلته په رسيدوسره ماده هغه نه حديث دَ خالد بن وليد رضى الله عنه اورولو درخواست اوکړو. هغه ماته دَ يوکال روژې ساتلو حکم راکړو. بيا ماهغه ته دَ دې باره کښې بيا درخواست اوکړو نوهغه دَ خپل مشائخ په سندسره دَ حضرت خالدبن وليد رضى الله عنه پورې سندسره ماته داحديث بيان کړو چه حضرت خالدبن وليد رضى الله عنه فرمائى يوسړې دَ حضورپاک په خدمت کښې حاضر شو وئى وئيل زه دَ دنيا او آخرت دَ نيکوباره کښې تپوس کول غواړم. حضورپاک ارشاد اوفرمائيلوچه څه غواړې تپوس اوکړه. په دې باندې دغه سړى دَمختلف څيزونومتعلق تپوسونه کول شروع کړه. په دغه سوالونوکښې ئى دَيوسوال دا پوښتنه اوکړه «**أحب أن ألقى الله نقياً من الذنوب**» چه زه داغواړم دَ ګناهونونه پاك صفاشم او الله تعالى سره ملاقى شم. حضور پاك په جواب کښې ارشاد اوفرمائيلو «**اغتسل من الجنابة متطهراً، تلقى الله يوم القيامة وماعليك ذنب**» يعنى دَ جنابت غسل په ښه اهتمام او صفائى سره کوه نودَ قيامت په ورځ به الله تعالى سره په داسې حال کښې ملاقات اوکړې چه په تاباندې به هيڅ ګناه نه وى.[3] والله اعلم بالصواب.

---

[1]) إعلام الموقعين عن رب العالمين: ۷۸/۲.

[2]) دَ مذکوره کتاب نوم "زندگی کے پچیس مسائل اور ان کا کامیاب حل" دې کوم چه ادارة الرشيد کراچى نه چهاپ شوې دې.

[3]) وتمامه: قال العلامة السيوطى:

وجدت بخط الشيخ شمس الدين بن القماح فى مجموع له عن أبى العباس المستغفرى قال: قصدت مصر أريد طلب العلم من الإمام أبى حامد المصرى والتمست منه حديث خالد بن الوليد فأمرنى بصوم سنة. ثم هاودته فى ذالک، فأخبرنى بإسناده عن مشايخه إلى خالد بن الوليد قال: جاء رجل إلى النبى صلى الله عليه وسلم فقال: إنى سائلک عما فى الدنيا والآخرة! فقال له: "سل عما بدالک" قال: يانبى الله! أحب أن أكون أعلم الناس. قال: اتق الله تكن أعلم الناس. فقال: أحب أن أكون أغنى الناس. قال: كُن قنعاً تكن أغنى الناس. قال: أحب أن أكون خيرالناس. فقال: خيرالناس من ينفع الناس. قال أحب أن أكون اخص الناس إلى الله قال اكثرمن ذكرک الله تكن خص العباد إلى الله. فقال: أحب أن أكون أعدل الناس. قال: أحبّ للناس ماتحب لنفسک تكن أعدل الناس. فكن نافعاً لهم. قال:أحب أن أكون من المحسنين. قال: اعبدالله كأنک تراه فأن لم تكن تراه فإنه يراک. قال: أحب أن يكمل إيمانى. قال: حسّن خُلقکَ يكمل إيمانک. فقال: أحب أن أكون من المطيعين. قال: أدّ فرائض الله تكن مطيعًا. فقال: أحب أن ألقى الله نقياً من الذنوب. قال: اغتسل من الجنابة متطهرتلقى الله يوم القيامة أوماعليک ذنب. قال: أحب أن يرحمنى ربى،

قال: ارحم نفسک وارحم خلق الله يرحمک الله. قال: أحب أن تقل ذنوبي قال: استغفر الله تقل ذنوبک. قال: أحب أن أكون أكرم الناس. قال: لاتشكون الله إلى الخلق تكن أكرم الناس. فقال: أحب أن يوسع عليّ في رزقي. قال: دُمْ على الطهارة يوسع عليک في الرزق. قال: أحب أن أكون من أحباء الله ورسوله. قال: أحب ما أحب الله ورسوله وأبغض ما أبغض الله ورسوله. قال: أحب أن أكون آمنا من سخط الله. قال. لاتغضب على أحد تأمن غضب الله وسخطه. قال: أحب (أن) تستجاب دعوتي. قال: اجتنب الحرام تستجب دعوتک. قال: أحب أن لا يفضحني الله على رؤوس الأشهاد. قال: احفظ فرجک كي لا تفتضح على رؤوس الأشهاد. قال: أحب أن يستر الله على عيوبي. قال: استرعيوب إخوانک يستر الله عليک عيوبک. قال: مالذي يمحوا عني الخطايا؟ قال: الدموع والخضوع والأمراض. قال: أي سيئة أعظم عندالله؟ قال: سوء الخلق والشح المطاع. قال: مالذي يُسكن غضب الرحمن؟ قال: إخفاء الصدقة وصلة الرحم قال: مالذي يطفئ نارجهنم: قال: الصوم. ا ه. (جمع الجوامع، الحجامع الكبيرفي الحديث والجامع الصغير وزوائد، المسانيد والمراسيل، مسند خالدبن الوليد رضي الله عنه، حرف الخاء: ١٤/٣٥٣-٣٥٢، رقم الحديث: ١٠٩٥٤، ونقل عنه العلامة على المتقي الهندي رحمه الله في كنزالاعمال في سنن الأقوال والأفعال، كتاب الموعظ والرقائق والخطب والحكم من قسم الأفعال، فصل في جامع المواعظوالخطب، خطب النبي صلى الله عليه وسلم ومواعظه: ١٦/٥٣-٥٤رقم الحديث: ٤٤١٤٧). يعنې حضرت خالدبن وليد رضي الله عنه فرمائي يوسړي د حضورپاك په خدمت كښې حاضرشو ونې وئيل زه د دنيااوآخرت باره كښې تاسونه پوښتنه كول غواړم. حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه څه غواړې تپوس اوكړه. په دې باندې هغه سړي أووئيل اې دا لله تعالى نبى زه دټولونه لوئى عالم جوړيدل غواړم. حضورپاك اوفرمائيل دالله تعالى نه ويره اختياركړه دټولو نه به لوئى عالم جوړشې. هغه سړي اووئيل په خلقوكښې د ټولونه لوئى غنى كيدل غواړم. حضورپاك ارشاد اوفرمائيل قناعت اختياركړه په خلقوكښې به د ټولو نه لوئى غنى جوړشې. هغه سړي اووئيل چه زه په خلقوكښې دټولونه بهترجوړيدل غواړم. حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو په خلقو كښې د ټولونه بهترهغه سړي دې چه خلقوته نفع رسونكې وى نوته هم خلقوته د نفع رسونكې جوړشه. هغه وئيل زه په ټولوخلقوكښې د ټولونه لوئى عادل جوړيدل غواړم. حضورپاك اوفرمائيل چه څه د ځان دپاره خوښوې هم هغه د خلقود پاره هم خوښوه نو په خلقوكښې به دټولونه لوئى عادل جوړشې. هغه وئيل زه دالله تعالى په درباركښې دټولونه خاص بنده جوړيدل غواړم. حضورپاك اوفرمائيل د الله تعالى ذكرپه كثرت سره كوه نودالله تعالى په بنديګانوكښې به د ټولونه خصوصي جوړشې. هغه وئيل زه دهغه خلقونه كيدل غواړم چه داحسان والا (د احسان صفت سره متصف دى). حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو دالله تعالى عبادت داسې كوه لكه چه ته هغه ګورې بيا كه هغه ته نه هم ګورې نوهغه خوتاته ګورى. هغه وئيل زه غواړم چه زما ايمان كامل شي. حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو خپل أخلاق ښه جوړكړه ستا ايمان به كامل شي. هغه وئيل زه دالله تعالى په فرمانبردار بنديګانوكښې كيدل خوښوم. حضورپاك اوفرمائيل دالله تعالى فرائض په ځائې راوړه د الله تعالى مطيع به جوړشې. هغه وئيل زه غواړم چه د ګناهونونه پاك صفا الله تعالى سره ملاؤشم. نبي پاك اوفرمائيل ته د جنابت غسل ښه په صفائى سره كوه په داسې كولوسره به ته د قيامت په ورځ الله تعالى سره په داسې حال كښې ملاقات اوكړې چه په تاباندې به هيڅ ګناه نه وى. هغه وئيل چه زه غواړم د قيامت په ورځ ما په نور كښې راوچت كړى. حضورپاك اوفرمائيل په چاباندې ظلم مه كوه د قيامت په ورځ به ته په نور كښې اوچت كړى شې. هغه وئيل زه غواړم چه زما رب په مانباندې رحم اوكړى. حضورپاك اوفرمائيل په خپل ځان باندې رحم اوكړه اود الله په مخلوق باندې رحم اوكړه الله تعالى به په تاباندې رحم اوكړى. هغه وئيل زه غواړم چه زما ګناهونه كم شي. حضورپاك اوفرمائيل دالله تعالى نه بخښنه غواړه ستا ګناه به كمه شي. هغه وئيل زه غواړم چه په خلقوكښې د ټولونه معزز جوړشم. حضورپاك اوفرمائيل د خلقو په وړاندې دالله تعالى شكايت هيڅ كله مه كوه نومعززترين سړى به جوړشې. هغه وئيل زه دالله تعالى اود هغه د رسول محبوب ترين جوړيدل غواړم. حضورپاك اوفرمائيل څوك چه الله تعالى اودهغه رسول ته

**یوبل موضوع روایت:** بعض خلق دَ جنابت دَ غسل په فضیلت کښې دَحضرت انس ﷺ طرف ته منسوب کولوسره مرفوعًا روایت نقل کوی چه حضورپاک ﷺ فرمائیلی دی: «من اغتسل من الجنابة حلالاً أعطاه الله عزوجل مائة قصر من درة بيضاء، وكتب له بكل قطرة ثواب ألف شهيد»[1] یعنی کوم سړی چه په حلال طریقه سره کوروالي کولونه پس دَ جنابت غسل اوکړو الله عزوجل به دَ سپینو مرغلرو جوړشوی سل محلونه ورکوی او (دغسل دَ اوبو) دَ هرڅاڅکی په بدله کښې به (دَ هغه په عمل نامه کښې) دَ زرو شهیدانو ثواب لیکلې کیږی. واضح دی وی چه علامه ابن الجوزی ﷺ (المتوفی ۵۹۷هجری) په کتاب الموضوعات کښې [2]علامه جلال الدین سیوطی ﷺ (المتوفی ۹۱۱هجری) الآلی المصنوعة

---

محبوب وی ته هم هغوی خوښوه اودهغه رسول چه کوم څیزسره بغض ساتی ته هم هغې سره بغض ساته. هغه وئیل زه دَالله تعالی دَ ناراضګئی نه مامون جوړیدل غوارم. حضورپاك اوفرمائیل په چاباندې غصه مه کوه نودَالله تعالی دَ غصې او خفګان نه به محفوظ شې. هغه وئیل زه مستجاب الدعوات جوړیدل غوارم. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دَ حرامونه پرهیزکوه مستجاب الدعوات به جوړشې. هغه وئیل زه غوارم چه الله تعالی دَ ګواهانو په وړاندې ما رسوا نه کړی. حضورپاك اوفرمائیل دَ خپل شرمګاه حفاظت کوه دې دپاره چه ته دَ ګواهانو په وړاندې رسوا نه شې. هغه وئیل زه غوارم چه الله تعالی زما په عیبونوباندې پرده واچوی. حضورپاك اوفرمائیل دَ خپلو رونړو په عیبونوباندې پرده اچوه الله تعالی به ستا په عیبونوباندې پرده واچوی. هغه وئیل کوم یوڅیززما ګناهونه ختمونکې دې؟ حضورپاك اوفرمائیل اوښکې عاجزی او بیمارئی. هغه وئیل دَ الله تعالی په نیزکومه یوه نیکی دَ ټولونه افضل ده؟ حضورپاك اوفرمائیل ښه اخلاق تواضع، په مصیبت باندې صبرکول او دَالله تعالی په فیصله باندې راضی کیدل. هغه وئیل دَ الله تعالی په نیزکومه یوه ګناه دَ ټولونه لویه ده؟ حضورپاك اوفرمائیل بداخلاقی اوهغه بخل دَ کوم اطاعت چه شوې وی. هغه وئیل دَ رحمن غصه یخونکې څیزکوم یودې؟ نبی پاك اوفرمائیل په پټه صدقه کول او صله رحمی کول. هغه وئیل دَ دوزخ اور مړکونکې کوم یوڅیزدې؟ حضورپاك اوفرمائیل روژه.

**مذکوره روایت بې سنددې:** دَعلامه سیوطی ﷺ دا روایت بې سنددې په پوره سند کښې صرف دَ دریو راویانو نومونه ذکر دی. دَ باقی څه معلومات نشته دی. په دَغه دریو کښې هم دَ ابوالحامد مصری په کتب رجال وغیره کښې څه تذکره نه ملاویږی. باقی قاضی شمس الدین ابن القماح ﷺ ددوی دَ حالاتودپاره اوګورئی: طبقات الشافعیة الکبری، طبقة السادسة:۵/۲۱۳-۲۱۲الدُرر الکامنة فی أعیان المائة الثامنة، حرف المیم:۲/۱۸۵. اوابوالعباس جعفری مستغفری ﷺ ددوی دَ حالاتودپاره اوګورئی:الأنساب للسمعانی، باب المیم والسین:۵/۲۸۶. حالات علماء رجال بیان کړی دی. اودَ ابوالعباس مستغفری ﷺ دَ وفات کال ۴۳۲هجری دې اوحضرت خالدبن ولید ﷺ په ۲۱هجری کښې دَدې دنیانه رخصت شوې وو. دَ مینځ پوره سند غیرمذکوردې. لهذا ترکومې چه په یومعتبرسندسره ددې ثبوت نه ملاویږی هغه وخت پورې دا حضورپاك ته منسوب کول او بیانول جائزنه دی. دعلامه سیوطی ﷺ په روایت کړې شوې دې روایت باندې اودَدې نه علاوه په ډیر دَ پاك اوهند کښې عام مشهور روایاتو باندې زمونږ فاضل دوست مولانا طارق امیرخان صاحب، متخصص فی الحدیث جامعه فاروقیه کراچی دَ اصول حدیث او آئمه جرح وتعدیل په رڼا کښې "غیر معتبر روایات کا فنی جائزہ" په عنوان سره یو ډیر محققانه کارکړې دې.

[1]) کتاب الموضوعات، کتاب الطهارة، باب ثواب الغسل:۲/۱۱، اللا المصنوعة فی الأحادیث الموضوعة، کتاب الطهارة: ۲/۸، تنزیه الشریعة المرفوعة عن الأحادیث الشنیعة الموضوعة، کتاب الطهارة، الفصل الأول:۲/۶۸.

[2]) کتاب الطهارة باب ثواب الغسل: ۲/۱۱.

کښي(۱) اوعلامه ابن عراق كناني (المتوفى ۹۶۳هجرى) تنزيه الشريعة کښي(۲) صراحت سره دَدې حدیث باره کښي لیکلی دی "وضعه دينار" یعني داحدیث دينار وضع کړې دې. ابن حبان رحمه الله دَ دينار باره کښي فرمائي: «يروي عن أنس أشياء موضوعة لايحل ذكره إلا بالقدح فيه» (۳) یعني دينار دَ حضرت انس رضي الله عنه طرف ته منسوب کولوسره ډېر زيات موضوع اودَ خان نه جوړشوي څیزونه نقل کوی چه دَهغې ذکر کول جائزنه دی. بغیردَدې نه چه څوك دادَ موضوع كيدودَ وضاحت دَپاره بيان کړي.

غرض دَدې قسم بې سند اوموضوع رواياتو په ذريعه دَ جنابت دَغسل دَ فضيلت ثابتولو هيڅ ضرورت نشته دې. په قرآن اوحديث کښي ذکرشوی اونور نصوص صحيحه باندې دې اکتفااوکړې شي، بې سند اوموضوع رواياتونه دَ مکمل اجتناب ضرورت دې.

**دَ غسل حقيقي او اصطلاحي تعريف:** علامه ابن حجرعسقلاني رحمه الله فرمائي دَ غسل حقيقت دَ بدن په اندامونوباندې اوبه بهیول دی(۴)

دَ احنافو فقهاء کرامودَغسل اصطلاحي تعريف «غَسل البدن» دَ بدن په وينځلوسره کړې دې. (۵) علامه لکهنوی رحمه الله دَغسل شرعی تفسير «غسل تمام الجسد» يعني دَپوره بدن په وينځلو سره کړې دې(۶)

**دَعلامه زَبيدي رائې:** علامه زَبيدي رحمه الله فرمائي «واصطلاحاً غسل البدن بالماء الطهور من جنابة أوحيض أو نفاس» (۷) يعني په اصطلاح کښي جنابت، حيض اونفاس نه پاکي حاصلولودَپاره بدن پاکول په اوبو سره وينځلوته غسل وائي. خو شوافع په بدن باندې اوبه بهيولوسره نيت هم ضروري ګرځوي. (۸) او مالکیه په نيز نيت سره «دلك» يعني مږل هم ضروري دی.(۹) دَ نيت او دلك في الغسل هم هغه حکم دې کوم چه په اودس کښي دَ نيت اودلك دې. دَدې تفصيل كتاب الوضوء کښي اوګورئ.

**اركان غسل:** دَ اركان غسل باره کښي دَ احنافو په مينځ کښي اختلاف دې. دَ صاحب وقايه په نيز اركان غسل درې دی ① مضمضه ② استنشاق ③ پوره بدن يوځل وينځل.(۱۰)

علامه علاء الدين سمرقندي رحمه الله فرمائي: «للغسل ركن واحد فهو تسييل الماء على جميع ما يمكن غسله من بدنه مرة واحدة، حتى لوترك شيئاً يسيراً لم يصبه الماء، لم يخرج من الجنابة» (۱۱)

---

(۱) كتاب الطهارة:۸/۲.

(۲) كتاب الطهارة الفصل الأول:۱۱/۲.

(۳) كتاب الموضوعات كتاب الطهارة باب ثواب الغسل:۱۱/۲.

(۴) فتح الباري:۴۷۴/۱.

(۵) اوګورئ ردالمحتار: ۱۱۲/۱بدائع الصنائع:۲۶۷/۱البحر الرائق:۸۶/۱

(۶) السعاية:۲۷۴/۱.

(۷) إتحاف السادة المتقين بشرح إحياء علوم الدين، كتاب أسرار الطهارة، كيفية الغسل: ۵۹۸/۲.

(۸) مغني المحتاج:۶۷/۱

(۹) حاشية الصاوي على الشرح الصغير:۱۶/۱.

(۱۰) الوقاية مع السعاية:۲۸۰/۱-۲۷۴.

(۱۱) تحفة الفقهاء، كتاب الطهارة، الجنابة والغسل:ص ۱۹-۱۸.

یعني غسل هم یورکن دي چه ترکومي پورې ممکن وی په پوره بدن باندي یوځل اوبه بهیول، تردي چه که معمولی شان ځائی هم پاتي شی اوهلته اوبه اونه رسی نودَ جنابت نه وتلي نه شی.
لیکن علامه لکهنوی رحمه الله صاحب تحفة الملوك پنځه څیزونه نقل کړی دی دريې سابقه څلورم نوم ته دننه اوبه رسول اوپنځم دَ ویښتو بیخونو ته اوبه رسول. (1)
داخبره دَعلامه سمرقندی رحمه الله دَ صنیع نه هم مستفاد ده په دي وجه هغه دَ رکن غسل په تفصیل کښې دا پنځه واړه ذکرکړی دی. (2)
صاحب تنویرالابصار علامه تمرتاشی رحمه الله په نیزباندي اته څیزونه دی. ① مضمضه ② استنشاق ③ پوره بدن باندي اوبه بهیول ④ نوم ⑤ بریت ⑥ وريځې ⑦ دَ ږیرې دَ بیخونو پورې اوبه رسول ⑧ اوفرج خارج وینځل. (3)
صاحب مراقی الفلاح علامه شرنبلالی رحمه الله یولس څیزونه ذکرکړی دی: ①خله ②پوزه ③پوره بدن ④قلفه (دَ اندام مخصوصه زیاتی څرمن کومه چه دَ سنت په وخت پرې کولې شی) دننه حصه دَ کوم جدا کول چه مشکل نه وی، دَهغې وینځل، ⑤دَنوم دننه اوبه رسول ⑥ هرهغه سورې چه یوځائی شوې نه وی هغې ته اوبه رسول. ⑦ دَ ښځې اوسرې راغونډ کړې شوې ویښتو بیخ ته اوبه رسول ⑧ چه ږیره ګڼره وی نودَ ږیرې لاندې دَ مخ دَ څرمن پورې اوبه رسول. ⑨ دغه شان بریت ⑩ اودَ اوريځو څرمن پورې اوبه رسول او ⑪ اوفرج خارج وینځل.
علامه شرنبلالی رحمه الله اوفرمائیل چه دَدي ټول مرجع او حاصل هم یوڅیز دي اوهغه دا چه ترکوم ځائی پورې بغیردَ حرج نه ممکن وی په پوره بدن باندي اوبه بهیول، البته دا ټول ځان ځانله شمیرل دتعلیم په غرض سره دی. (4)
هم دغه خبره علامه لکهنوی رحمه الله هم لیکلی ده. (5)امام ابوبکرجصاص رحمه الله فرمائی ((**والمفروض من غسل الجنابة إيصال الماء بالغسل إلى كل موضع يلحقه حكم التطهير من بدنه، لعموم قوله: ﴿ فَاطَّهَّرُوا ﴾**))(6) یعنی دَالله تعالی ارشاد ﴿فَاطَّهَّرُوا﴾ دَعموم په رڼا کښې دَ بدن هرهغه حصې پورې په غسل جنابت کښې اوبه رسول فرض دی دکوم پاکول چه ضروری دی. الحاصل په پوره بدن باندي یوځل اوبه بهیول ترکومې چه ممکن وی بغیردَ څه حرج نه اوبه بیهول ممکن وی رکن غسل دي، حتی چه که چرې دَ بدن لږه شان حصه هم اوچه پاتې شی نوغسل به صحیح نه وی. (7)
**ایا په غسل کښې واجبات شته؟**: علامه لکهنوی رحمه الله فرمائی چه چاهم دَدې صراحت نه دې کړې چه په غسل کښې واجبات شته که نه، البته دَ فقهاؤ صرف دَ غسل فرائض اوسنن ذکرکولوباندې اکتفاء

(1) السعاية:١/٢٧٤ تحفة الملوك:ص ٣٩.
(2) تحفة الفقهاء: ص١٩.
(3) تنوير الأبصارمع الدرالمختار:ص ٢٦.
(4) مراقی الفلاح مع حاشية الطحطاوی. كتاب الطهارة. فصل (لبيان فرائض الغسل): ص١٠٣-١٠٢.
(5) السعاية: ٢٧٥/١.
(6) أحكام القرآن، سورة المائدة، باب الغسل من الجنابة:٤٥٨/٢.
(7) ردالمحتار: ١١٢/١، بدائع الصنائع:٢٦٧/١، البحرالرائق:٨٦/١.

كول دَدې خبرې دليل دې چه په غسل كښې هيڅ واجب نه دى دا يواستقرائى امردې. (١)ليكن دا يادساتئى چه بعض فقهاء فرائض هم په واجبات سره تعبيركوى. «لجواز اطلاق بعضهما على البعض».

**دَ طهارت مراتب:** امام غزالى رحمه الله دَ طهارت څلورمراتب بيان كړى دى: ① المرتبة الأولى: تطهير الظاهر عن الأحداث وعن الأخباث والفضلات. ② المرتبة الثانية: تطهير الجوارح عن الجرائم والآثام. ③ المرتبة الثالثة: تطهير القلب عن الأخلاق المذمومة والرذائل الممقوتة. ④ المرتبة الرابعة: تطهير السر عما سوي الله تعالى، وهى طهارة الأنبياء صلوات عليهم والصديقين. (٢)

يعنى ① ظاهربدن دَ احداث (حدث اصغراواكبر) خيرى اوفضلات نه پاكول. ② جوارح دَ جرائم اوگناه نه پاكول يعنى بچ كول. ③ زړه دَاخلاق ذميمه اوقابل نفرت رذائل نه پاكول. ④ سر يعنى باطن قلب دَالله تعالى نه سوا دَ هرڅيزنه پاكول چه دَ الله تعالى نه علاوه په زړه كښې دَ بل چاخيال رانه شى دادَ انبياء كرامو اوصديقين شان طهارت دې.

**دَ طهارت اهميت:** علماؤ ليكلى دى چه طهارت په ټولو مراتب دَ طهارت كښې دَنصف عمل مقام لرى ځكه چه دَ اعمال باطنه مقصود دَالله تعالى عظمت او جلال منكشف كيدل دى اوداهغه وخته پورې نه شى كيدې تركومې چه دَ باطن نه ماسوى الله اونه ځى. طهارت قلب يعنى اخلاق حميده حصول دَهغه وخته پورې نه شى كيدې تركومې چه زړه دَ اخلاق ذميمه او قابل نفرت رذائل نه پاك نه كړې شى. دغه شان جوارح ترهغه وخته پورې په طاعات سره ښائسته كيدې نشى تركومې چه دَ گناهونونه بچ نه كړې شى. هم دغه حال دَ ظاهرهم دې چه ظاهرى طهارت هم هغه وخت نه شى حاصليدې تركومې چه دَ احداث نه پاكې حاصله نه كړې شى. دا يادساتئى چه دَ طهارت په ټولو مراتب كښې اصل دَباطن طهارت دې خودَدې حصول هم په ظاهرى طهارت باندې موقوف دى. (٣)

اسلام دَ طهارت اوپاكوالى دَ ضرورت په وجه نه صرف دَدې حكم وركړې دې بلكه دَدې اصول او احكام ئې هم مقرر كړى دى. حضورپاك دَخپلو تعليماتو په ذريعه دَدې حدودهم متعين كړى دى. دَ انسان ظاهرى بدن، كپړې، مكان او چاپيره ماحول هم دَ صفاساتلو تعليم وركړې دې. دَدې تعليماتو په رڼاكښې حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم به دَ طهارت او پاكوالى ښه اهتمام كولو دكوم په وجه چه الله تعالى په قرآن كريم كښې دَهغوى تعريف كښې ارشاد اوفرمائيلو ﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ﴾ (٤)

**ترجمه:** په دوى كښې څه خلق داسې دى چه خوښوى چه هغوى دې پاك صفاوى اوالله پاك اوصفا اوسيدونكى دوستان ساتى.

**په طهارت باندې دَ صحابه كرامو تعريف:** طلحه بن نافع وائى چه ماته ابوايوب انصارى رضي الله عنه حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه اوحضرت انس بن مالك رضي الله عنه اوخودل كله چه دا (پورتنې) آيت نازل شو نو

---

(١) السعاية: ٢٧٥/١.

(٢) إحياء علوم الدين وكتاب أسرار الطهارة: ص١٦٠.

(٣) إحياء علوم الدين، كتاب أسرار الطهارة:ص: ١٦١-١٦٠،مفتاح السعادة ومصباح السيادة فى موضعات العلوم: ٢٦/٣-٢٥التعليق الصبيح: ١٧١/١.

(٤) سورة التوبة: ١٠٨.

رسول الله ﷺ انصار مخاطب كولوسره اوفرمائيل: «يامعشر الأنصار! إن الله أثني عليكم في الطهور خيراً، فما طهوركم هذا؟ قالوا: يارسول الله! نتوضأ للصلاة ونغتسل من الجنابة ونستنجي بالماء، قال: هوذاك، فعليكموه».[1] يعنى اې دَ انصارو ډلې الله تعالى دَ طهارت باره كښې ستاسو تعريف بيان كړې دې. نو داستاسو طهارت اوپاكي څه ده؟ انصارو عرض اوكړو اې دَالله تعالى رسول ﷺ دَ مانځه دپاره اودس كوو دَ جنابت نه غسل كوو اوپه اوبوسره استنجاء كوو، نوحضورپاك اوفرمائيل چه هم دغه هغه طهارت اوپاكى ده دكوم چه الله تعالى تعريف كړې دې نوتاسودا لازم اونيسئ.

هم طلحه بن نافع دَ حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه نه نقل كړې دى چه رسول الله ﷺ ارشاد فرمائيلې دي «الصلوات الخمس والجمعة وأداء الإمانة كفارة لما بينهن، قلت وما أداء الأمانة؟ قال: الغسل من الجنابة»[2] يعنى پنځه مونځونه، جمعه او دَامانت اداكول دَدې په مينځ كښې كيدونكې ګناه دپاره كفاره ده. حضرت ابوايوب انصارى رضي الله عنه فرمائى چه ما عرض اوكړو دَ امانت دَ اداكولونه څه مراددې؟ نوحضورپاك اوفرمائيل دې نه مراد دَ جنابت نه غسل كول دى. دَ حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه په روايت كښې دَ امانت دَ اداكولو تفسيرنه پس دى «فإن الله لم يأمن ابن آدم على شيء من دينه غيرها»[3]

يعنى الله تعالى بنيادم ته دَ غسل جنابت نه زيات دَ دين دَ يوشئ ذمه وار او امين نه دې جوړ كړې.

## ١-باب: الْوُضُوءِ قَبْلَ الْغُسْلِ

## دَغسل نه وړاندې دَ اودس بيان

**دَترجمة الباب مقصد:** دَدې ترجمة الباب غرض بيانولوكښې شراح حديث كښې اختلاف پيداشوې دې اودَوى نه ډير اقوال اوتوجيهات نقل شوى دى:

**اولنې توجيه:** دَترجمة الباب يومقصد داكيدې شى چه **كيف الوضوء قبل الغسل** يعني دَ غسل نه وړاندې دَ اودس څه طريقه ده؟ آيا هم هغه طريقه ده كومه چه دَ مونځ والا دَاودس ده يادَ غسل نه وړاندې دَ اودس څه بل څه طريقه ده؟ نو دَدې ترجمې نه دَامام بخارى رحمه الله غرض دَغسل نه وړاندې دَ اودس طريقه بيانول دى.[4]

**دويمه توجيه:** بعض حضراتو ونيلى دى چه دَامام بخارى رحمه الله مقصددَغسل نه وړاندې دَاودس صورت بيانول دى چه آيا خپې هم دَ نورو اندامونو دَ اودس سره هم په شروع كښې اووينځلې شى لكه چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كښې چه راغلى دى يا په شروع كښې اونه وينځلې شى بلكه دَ غسل نه فارغ كيدوسره بيا اووينځلې شى. لكه چه دَحضرت ميمونه رضي الله عنها په روايت كښې چه راغلى دى. امام بخارى رحمه الله دواړه روايتونه نقل كولوسره لكه چه دواړه صورتونه ذكركړې دى.[5]

---

[1] شعب الإيمان، باب العشرون من شعب الإيمان [وهوباب] فى الطهارات، فصل الوضوء: ١٩/٣-١٨رقم الحديث: ٢٧٤٧.

[2] شعب الإيمان، باب العشرون من شعب الإيمان [وهوباب] فى الطهارات، فصل الوضوء: ١٩/٣-١٨رقم الحديث: ٢٧٤٨.

[3] المصدرالسابق: ٢٠/٣-١٩رقم الحديث: ٢٧٥٠.

[4] فضل البارى: ٤٢٥/٢.

[5] اوګورئ: الكنزالمتوارى فى معادن لامع الدرارى: ١٨٩/٣، وتقريربخارى: ٧٩/٢

**دريمه توجيه:** يادَ امام بخاري رحمه الله مقصد په دې ترجمه سره داخودل دی چه دَ غسل اودس دَ غسل شروع کولونه وړاندې کولې شی نه چه دَ غسل نه فارغ کیدونه پس، ځکه چه یوځل غسل کولوسره طهارت حاصل شو نو اوس داودس حاجت پاتې نه شو.([1])

**څلورمه توجیه:** دَترجمة الباب یومقصد داهم کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه حضوریاك دَ غسل نه وړاندې کله اودس کړې دې اوکله ئې نه دې کړې.

**دَعلامه قسطلانی اوحافظ ابن حجر توجیه:** علامه قسطلانی اوحافظ ابن حجر رحمه الله دَ توجیه مطابق دَ امام بخاری رحمه الله غرض دَدې باب نه وړاندې دَ اودس سنت یا مستحب کیدل بیان کول دی.([2])

**دَعلامه عینی رحمه الله توجیه:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دې باب سره دَوضوء قبل الغسل حکم بیانول مقصوددی چه آیا دا واجب دی؟ که سنت دی؟ اوکه مستحب دی؟([3])

**دَحضرت شیخ الحدیث رحمه الله توجیه:** شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه زما په نیز زیات اوجه دادی چه په دې باب سره دَامام بخاری رحمه الله غرض دَغسل نه وړاندې محض استحباب وضوء بیانول دی.([4])

## الحديث الاول

۲۴۸-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم "أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ: كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، بَدَأَ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُدْخِلُ أَصَابِعَهُ فِي الْمَاءِ، فَيُخَلِّلُ بِهَا أُصُولَ شَعَرِهِ، ثُمَّ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ غُرَفٍ بِيَدَيْهِ، ثُمَّ يُفِيضُ الْمَاءَ عَلَى جِلْدِهِ كُلِّهِ [حديث باب [۲۵۹،۲۶۹]([5])

**ترجمه:** مونږ ته عبدالله بن یوسف بیان اوکړو اووئیل چه امام مالك رحمه الله مونږ ته خبراکړو دَ هشام نه هغه دَخپل پلارعروه نه هغه دَحضرت عائشة رضی الله عنها نه چه حرم محترم وه دَ رسول الله ﷺ، چه رسول الله ﷺ به کله دَ جنابت غسل کول غوښتل نو (په لومړی کښې دَ لاس وهلونه وړاندې) په شروع کښې خپل دواړه لاسونه وینځل بیابه ئې دَ مونځ دَ اودس په شان اودس کولو، بیابه ئې خپلې ګوتې په اوبو کښې وهلې اودې سره به ئې دَ ویښتودجرړو خلال کولو. بیابه ئې په خپلو دواړو لاسونوباندې درې لپې اوبه واخستې او په خپل سربه ئې اچولې بیابه ئې په خپل ټول بدن مبارك باندې اوبه بهیولې.

---

[1] فضل الباری:۴۲۵/۲.

[2] اوګورئی:إرشادالساری: ۴۸۷/۱فتح الباری:۴۷۵/۱.

[3] عمدة القاری:۲۸۳/۳.

[4] الأبواب والتراجم لصحیح البخاری:ص ۶۰.

[5] الحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی کتاب الغسل، باب هل یدخل الجنب یده فی الاناء قبل أن یغسلها إذا لم یکن علی یده قذرٌ غیر الجنابة؟ رقم:۲۶۲، وفی باب تخلیل الشعر حتی إذا ظن أنه قد أروی بشرته أفاض علیه، رقم:۲۷۲ومسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب صفة الغسل من الجنابة، رقم:۳۱۶،وأبوداؤد فی سننه فی کتاب الطهارة، باب فی الغسل من الجنابة، رقم:۲۴۲، والترمذی فی جامعه، أبواب الطهارة، باب ماجاء فی الغسل من الجنابة، رقم: ۱۰۴، والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة، ذکر وضوء الجنب قبل الغسل، رقم:۲۴۸، وانظر کذلك فی تحفة الأشراف، مسندعائشة، رقم:۱۷۱۶۴،وجامع الأصول فی کیفیة الغسل، رقم:۵۳۱۹.

# تراجم رجال

**قوله: حدثنا عبدالله بن يوسف:** دامشهورامام اومحدث ابومحمدعبدالله بن يوسف دمشقي رحمه الله دي چه په تينسي اوكلاعي سره هم مشهوردي[1] دَدوى تفصيلي حالات كتاب بدء الوحي دويم حديث اوكتاب العلم، باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب لاندې تيرشوى دى.[2][3]

**قوله: قال: أخبرنا مالك:** [4]دا امام دارالهجرة عالم المدينه ابوعبدالله بن مالك بن انس بن مالك بن ابى عامربن عمرو الاصبحى المدنى دې.[5]

**شيوخ واساتذه:** دَ امام مالك رحمه الله په استاذانوكښې اسحاق بن عبدالله بن ابوطلحه، جعفر بن محمد الصادق، ربيعه بن ابوعبدالرحمن، زيدبن اسلم، سعدبن اسحاق، ابوبكربن محمدبن عمرو بن حزم، عبدالله بن دينار، ابوالزناد عبدالله بن ذكوان، محمدبن مسلم بن شهاب زهرى، نافع مولى ابن عمر، يحى بن سعيدالانصارى اوابوزبير مكي وغيره رحمهم الله مشهوردى.[6]

**تلامذه:** دَهغوى رحمه الله نه روايت كونكوكښې ابن مهدى، ابن القاسم، معن، ابومصعب، [7]ابراهيم بن طهمان، حبيب بن ابى حبيب، سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، عبدالله بن مبارك عبدالله بن يوسف تينسى، ابونعيم الفضل ابن دكين، مكى بن ابراهيم، وكيع بن الجراح، يحيى بن زكريا بن ابى زائده، ابوعلي الحنفى او ابوالوليد طيالسى رحمهم الله وغيره معروف دى.[8]

دَ امام بخارى رحمه الله نه چه كله «أصح الأسانيد» باره كښې تپوس اوكړې شو نوهغوى اوفرمائيل «مالك

**قوله: عن نافع عن ابن عمر»**[9] يعنى اصح الاسانيد هغه روايتونه دى كوم چه امام مالك دَ نافع عن ابن عمر په طريق سره نقل كړى دى. مثنى بن سعيدوائى چه ما امام مالك رحمه الله نه اوريدلى دى چه ما يوه شپه داسې نه ده تيره كړې چه ماته دَ رسول الله ﷺ په خوب كښې زيارت نه وى شوې.

**دَحديث رسول ﷺ احترام:** امام مالك رحمه الله بَه دَ رسول الله ﷺ دَ ارشاداتو ډيرزيات احترام كولو. كله چه به ئې دَ حديث اورولواراده كوله نواول به ئې اودس كولو بيابه ئې بهترين لباس اغوستلو توپئى به

---

[1]) تهذيب الكمال:٣٣٣/١٦.

[2]) كشف البارى:١١٣/٣.

[3]) كشف البارى:٢٨٩/١.

[4]) دَامام مالك رحمه الله حالات كشف الباري:٢٩٠/١كتاب بدء الوحي دَ دويم حديث په ذيل كښې اوكشف الباري: ٨٠/٢ كتاب الإيمان، باب: من الدين الفرارمن الفتن په ذيل كښې تيرشوى دى.

[5]) تقريب التهذيب:ص ٥١٦رقم:٦٤٢٥

[6]) تهذيب الكمال:٢٧/١٠٦-٩٣.

[7]) الكاشف:٢٣٤/٢.

[8]) تهذيب الكمال:٢٧/١١٠-١٠٧.

[9]) تقريب التهذيب، ص:٥١٦رقم:٦٤٢٥تهذيب الكمال:١١٠/٢٧.

نى اچوله ډيره به نى ګمنځكوله او په خپل ځائى به ډير په وقار او دبدبه سره كيناستلو اوبيابه ئى حديث بيانول شروع كولو. دَ هغوى نه دَدې (تول اهتمام) باره كښې پوښتنه اوكړې شوه نوهغوى اوفرمائيل چه زه دا ټول هرڅه دَحديث رسول الله ﷺ په احترام كښې كوم.[1]

دَامام مالك رحمه الله په تصانيف كښې موطا اوتفسير غريب القرآن مشهوردى. دې نه علاوه هغوى مسائل او نجوم باندې يوكتاب او الوعظ، الردعلى القدرية په نوم سره رسائل هم ليكلى دى.[2]

**هشام:** دا ابوالمنذرو يا ابوعبدالله، هشام بن عروه، اسدى، مدنى رحمه الله دې. دَ جليل القدر تابعي عروه بن الزبير بن العوام ځوئى دې.[3]. دَهغوى رحمه الله په توثيق او جلالت شان باندې دَ ائمه اتفاق دې.[4]

**قوله :: عن أبيه:** دا ابوهشام عروه بن الزبيربن العوام رضي الله عنه دې.[5] دَ حضرت عروه رحمه الله حالات كشف الباري، بدء الوحي دَدويم حديث په ذيل كښې اختصارسره[6] اوكشف الباري كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه لاندې په تفصيل سره بيان كړې شوى دى.[7]

**قوله :: عن عائشة رضي الله عنها:** دادَحضورپاك زوجه محترمه ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها بنت حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ده.دَدې مختصر حالات (بدء الوحى) دويم حديث لاندې تيرشوى دى[8]

**شرح حديث:** أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا اغتسل من الجنابة بدأ فغسل يديه. نبى كريم ﷺ چه به كله دَ غسل جنابت (اراده) كوله نواول به ئى خپل دواړه لاسونه وينځل.

**دَ جنابت لغوى تحقيق:** جنابت په لغت كښې دَ قرب ضد دې ((الجنابة،أجنب،يجنب اجناباً)) نه اسم دې په اصل كښې لريوالى اوبعدته وائى.[9]

**قوله :: جَنَبَ** (دَنصرنه) اوجنب الشئ تجنيباً دَلرې كولوپه معنى كښې دې.په قرآن مجيد كښې الله تعالى دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دعانقل كړې ده هغه هم په دغه معنى كښې ده ﴿ وَاجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَنْ نَعْبُدَ الْأَصْنَامَ ﴾ (اې الله) اوما اوزما اولاد دَ بتانودَعبادت نه لرې اوساته.[10]

---

[1]) حلية الأولياء:٣١٨/٦ تهذيب الكمال:١١٠/٢٧.

[2]) الأعلام للزركلى:٢٥٧/٥.

[3]) دَدوى حالات كشف الباري:٢٩١/١ بدء الوحي په ذيل كښې مختصراً اوكشف الباري: ٤٢٢-٤٣٦/٢ كتاب الإيمان په ذيل كښې په تفصيل سره تيرشوى دى

[4]) دَامام مالك رحمه الله دَ ثقاهت اوجلالت شان باره كښې تفصيلات دَپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ١١١-١١٧/٢٧، حلية الأولياء: ٣٢٢/٥-٣١٨.

[5]) عمدة القاري:٢٨٤/٣.

[6]) اوګورئى:كشف الباري:٢٩١/١.

[7]) كشف الباري:٤٣٦/٢.

[8]) كشف الباري ٢٩٥/١-٢٩١.

[9]) لسان العرب:٣٧٤/٢.

[10]) اوګورئى معجم الصحاح، ص:١٩١.مختار الصحاح، ص:٧٩-٧٨. لغات القرآن:٣١/١.

ابن منظور رحمه الله وائي چه الجنابة منى ته وائى. په قرآن كريم كښې دالله تعالى ارشاد گرامى دې. ﴿وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ (١)

**جنب څه ته وائى؟**: دَ جماع يا منى دَخروج سره چه په چا غسل واجب شى هغه ته جنب يا جنبى وائى. كه هغه سړې وى اوكه ښځه وى، يو وى كه دوه وى ياددې نه زيات په ټولو باندې دَدې اطلاق صحيح دې. علامه ابوبكر جصاص رحمه الله فرمائى ((**الجنُب اسمٌ يطلق على الواحد وعلى الجماعة، وذلك لأنه مصدر**)) (٢) يعنى لفظ جنُب چونكه مصدردې په دې وجه دَدې اطلاق يوكس اوجماعت (دواړو) باندې كولې شى. (٣) كله دَ جنب تثنيه جنبان جمع جنبون او اجناب خومؤنث جنابات هم راځى. (٤)

**دَ جنبى وجه تسميه**: انسان ته دَ جنبى وئيلو وجه هم دغه ده چه هغه په عام توگه باندې دَ ناپاكنى په حالت كښې خپل ځان دَخلقونه لرې ساتى تركومې چه پاكى حاصله نه كړى. (٥)

علامه ازهرى رحمه الله وائى چه انسان ته جنبى ځكه وئيلې شى تركومې چه هغه پاكى حاصله نه كړى هغه دَمواضع الصلاة دَ قربت نه منع كړې شوې دې. (٦) يعنى شرعاً هغه په حالت دَ جنابت كښې دَ مانځه نه په لرې اوسيدوباندې ماموردې. (٧) علامه نووى رحمه الله فرمائى ((**سمي الجنب جنباً لأنه يجتنب الصلاة والمسجد والقراءة ويتباعد عنها**)) (٨) انسان ته جنبى ځكه وئيلې شوې چه هغه په حالت دَ جنابت كښې مونځ جمات اودَ قرآن دَ تلاوت نه لرې وى او ځان ساتى. امام ابوبكر جصاص رحمه الله فرمائى ((**الجنابة اسم شرعي يفيد لزوم اجتناب الصلاة وقراءة القرآن ومس المصحف ودخول المسجد إلا بعد الاغتسال، فمن كان مأموراً باجتناب ما ذكرنا من الأمور موقوف الحكم على الاغتسال فهو جنبٌ**)) (٩) يعنى جنابت داسې شرعى حكم دې په كوم سره چه مونځ دَقرآن كريم تلاوت قرآن كريم ته لاس لگول اودَ جمات دَ داخليدونه ځان ساتل لازم راځى البته غسل نه پس داټول كارونه كولې شى. نوچه كوم سړې هم دَ ذكرشوو څيزونونه په اجتناب كولوباندې مامووى اودَ دغه امورو حكم په غسل باندې موقوف وى نوداسې سړى ته جنب وئيلې شى.

**په جنابت حيض اونفاس كښې فرق**: جنابت حيض اونفاق سره دَدې چه وړاندې بيان كړې شوى احكام ((**اجتناب عن الصلاة، والمسجد ومس المصحف وقراءة القرآن**)) كښې برابر دى خو په دواړو كښې فرق په دې اعتبارسره دې چه حيض اونفاس مانع دى دَ وطى نه، تركومې چه ښځه دَ حيض اونفاس والاوى

---

(١) لسان العرب: ٢/٣٧٤.

(٢) أحكام القرآن: سورة المائدة، باب الغسل من الجنابة: ٢/٤٥٧.

(٣) اوگورئى: لسان العرب: ٢/٣٧٤، النهاية: ١/٢٩٥، معجم الصحاح ص: ١٩١، مجمع بحار الأنوار: ١/٣٩٦، عمدة القارى: ٣/٢٨٢.

(٤) لسان العرب: ٢/٣٧٤ الصحاح ص: ١٩١.

(٥) النهاية: ١/٢٩٥ لسان العرب: ٢/٣٧٤.

(٦) لسان العرب: ٢/٣٧٤ النهاية: ١/٢٩٥ عمدة القارى: ٣/٢٨٢.

(٧) معجم مفردات القرآن ص: ١١٣.

(٨) المجموع: ٢/١٥٥.

(٩) أحكام القرآن، سورة المائدة، باب الغسل من الجنابة: ٢/٤٥٧.

نوډ غسل نه باوجود به هم دې سره كوروالي جائزنه وي خو غسل جنابت ختموي او انسان پاكوي اوجنابت د جواز وطى نه هم مانع نه دې. (1)

**د جنابت اصطلاحي تعريف:** صاحب هدايه علامه ابوالحسن المرغيناني رحمه الله فرمائي چه په لغت كښې جنابت د منۍ په شهوت سره وتلوته وائي. «أجنب الرجل» هغه وخت ونيلې كيږي كله چه سړې په يوه ښځه سره خپل شهوت پوره كړي. (2).

علامه سعدي جلبي محشي هدايه وعنايه او صاحب كفايه رحمهما الله فرمائي چه جنابت په شهوت سره د منى وتلوډ وخت حالت ته وائي. (3) علامه عبدالحي لكهنوي رحمه الله صاحب د هدايه د ذكركړې شوى تعريف محل نظر ګرځولوسره ليكلى دى چه دده د ثبوت دپاره د لغت د معتبره كتابونو حواله ضروري ده، حالانكه د لغت په كتب معتبره كښې د جنابت معنى بُعد اولريوالى سره كړې شوې ده. (4)

علامه زبيدي رحمه الله فرمائي «الجنابة حالةٌ تحصل عند التقاء الختانين أو خروج المني على وجه الشهوة، فيصير من قامت به جنباً» (5)

علامه نووي رحمه الله فرمائي «تطلق في الشرع على من أنزل المني وعلى من جامع» يعنى د شريعت په اصطلاح كښې د جنابت اطلاق انزال منى او جماع كولوباندې كيږي. (6) ابن حزم رحمه الله فرمائي «الجنابة هي الماء الذي يكون من نوعه الولد» يعنى جنابت هغه اوبوته وائي د كوم نه چه بچې پيدا كيږي. (7)

**جنابت د حديث په رڼړا كښې:** د احاديث مباركه د تتبع نه معلوميږي چه جنابت د يو داسې شي نوم دې چه كوروالي، احتلام اوډ خروج منى نه پس د انساني بدن د دننه نه خارج كيږي او انساني بدن يا په دې باندې موجود هرويښته لاندې راځي اودريږي. لكه د امام ابوداود رحمه الله او ابن ماجه روايت «تحت كل شعرة جنابة» (8) اوډ امام احمد رحمه الله روايت «على كل شعرة جنابة» (9)

**د ابن فارس رائې:** ابن فارس نقل كړي دى چه خپلې بى بى سره كوروالي كونكې جنب هم دده نه مشتق دې ځكه چه هغه هم د دغه څيزونونه لرې وي كوم سره چه نور نيزدې وي لكه مونځ جمات وغيره. (10) په شريعت كښې جنابت د ښځې اوسړى اختلاط (جنسي) نوم دې. (1)

---

(1) احكام القرآن، سورة المائدة، باب الغسل من الجنابة:٢/٤٥٧.

(2) اوګورئى:الهداية:١/٤٦ الجنابة فى اللغة، خروج المنى على وجه الشهوة، يقال أجنب الرجل إذا قضى شهوته من المرأة

(3) اوګورئى: حاشية سعدى چلپي على الهداية:١/٦٤ ، الكفاية: ١/ ٢٠.

(4) اوګورئى:السعاية:١/ ٣١٠.

(5) أتحاف السادة المتقين بشرح إحياء علوم الدين، كتاب أسرار الطهارة، كيفية الغسل:٢/٥٩٨.

(6) المجموع شرح المهذب:٢/١٥٥.

(7) المحلى بالآثار:١/٢٥٠.

(8) سنن أبى داؤد، كتاب الطهارة، باب الغسل من الجنابة، حديث رقم:٢٤٨، سنن ابن ماجه، كتاب الطهارة وسننها، باب تحت كل شعرة جنابة:، رقم الحديث:١٠٦.

(9) مسندأحمد، مسندعائشة رضى الله عنها، رقم الحديث:٢٤٨٥١،٢٦٢٢٠. نه معلومي‌ږي. الإعجاز العلمى فى لفظ الجنابة وحكمها الشرعى ص:٢.

(10) مجمل اللغة لابن فارس:١/١٩٩.

**دَ سيدسابق رائې:** فقه سنه کښې سيدسابق ليکلى دى. چه جنابت دَ ښځې يا سړى په خوب يا بيدارئى کښې شهوت سره دَ منى وتلوته وائى اودا دَ رسول الله ﷺ دَ ارشاد «الماء من الماء»[2] دَ وجې نه موجب غسل دې.[3]

**موجبات غسل:** دَموجبات غسل باره کښې ائمه مجتهدين اوفقهاء کرامو په مينځ کښې اختلاف دې.

**دَ مالکيه مذهب:** دَمالکيه په نيز په څلورو شيانوسره غسل واجب کيږى: ①خروج منى ② غيوبت حشفه ③حيض ④نفاس.[4]

**دَ شوافع مذهب:** دَشوافع په نيز په پنځوشيانوسره غسل واجب کيږى ① مرګ ② حيض ③ نفاس دَ بچې په پيداکيدوسره، سره دَدې چه څه لوندوالې نه وى ④ جماع سره کله چه حشفه يا دَدې په اندازه په فرج کښې داخل شى او⑤ خروج منى سره که په معتاد طريقه سره وى اوکه په غيرمعتاد طريقه سره وى.[5]

**دَ حنابله مذهب:** حنابله په نيز په شپږو څيزونوسره غسل واجب کيږى. ①خروج منى که شهوت سره وى ② التقاء ختانين سره سره دَدې چه انزال اونه شى ③حيض ④ نفاس ⑤مرګ ⑥اودکافردَ اسلام قبلولوسره.[6]

**دَ احنافو مذهب:** دَ احنافو فقهاء په نيز دريوڅيزونوسره غسل واجب کيږى. ①جنابت ② حيض ③ نفاس[7] البته دَ ثبوت جنابت دوه سبب دى ①دَمنى په شهوت سره په توپ سره وتل ② دَ ښځې دَ متيازو په مقام کښې، يادَ سړى يا ښځې دَ کومتيازو په مقام کښې دخول سره، که انزال وى اوکه نه وى.[8] په دې کښې فاعل اومفعول دواړه برابردى. يعنى دَ دواړو حکم يودې.[9]

موجبات غسل کښې به دَهريووضاحت په خپل مقام باندې راځى، دلته چونکه دَغسل جنابت بيان روان دې په دې وجه جنابت اودَدې دَ اسباب سره متعلق به دَ ضرورى امورو وضاحت کولې شى.

---

[1] معجم مقاييس اللغة:٤٨٣/١.

[2] الحديث أخرجه مسلم واللفظ له فى كتاب الحيض، باب بيان أن الجماع كان فى أول الإسلام لايوجب الغسل إلا أن ينزل المنى وبيان نسخه وأن الغسل يجب بالجماع، رقم:٧٧٦، وأبوداؤد فى كتاب الطهارة، باب فى الإكسال، رقم:٢١٧وابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة، باب الماء من الماء، رقم:٦٠٦وأحمدفى مسنده، مسندأبى سعيدالخدرى، رقم:١١٢٦٣، والطحاوى شرح معانى الآثار، فى كتاب الطهارة، باب الذى يجامع ولاينزل:٤٥/١انظر كذلک جامع الأصول، الفصل الأول فى غسل الجنابة، النوع الثانى:الإنزال، رقم:٥٣٠٥.

[3] فقه السنة للسيدسابق:٤٩/١.

[4]الشرح الصغيرعلى أقرب المسالک إلى مذهب الإمام مالک:١٦٠/١حاشية الدسوقى على الشرح الكبير:٢٠٨/١.

[5] المجموع شرح المذهب:١٣٠/٢فتح العزيز:١٠٩/٢الحاوى الكبير:٢٥٥/١.

[6] المغنى:١٢٨/١الفقه الإسلامى وأدلته:٥٢١/١، ٥١٤.

[7] الهدية:٤٥/١ومابعدها، بدائع الصنائع:٢٧٣/١البحرالرائق:٩٩/١-٩٣.

[8] فتح القدير:٦٥/١بدائع الصنائع:٢٧٣/١البحرالرائق:٩٩/١المبسوط: ١٨٧،١٨٣/١.

[9] أحكام القرآن، سورة المائدة،باب الغسل من الجنابة:٤٥٧/٢.

**په خروج منی سره دَ غسل واجب کیدل**: په دې خبره خودټولو ائمه حضراتو اتفاق دې چه په خروج منی سره غسل واجب کیږی البته په دې خبره کښې اختلاف دې چه مطلقًا په خروج منی سره به غسل واجب کیږی یا شهوت سره کیدل هم ضروری دی؟

**مذاهب ائمه**: په دې سلسله کښې تفصیل دادې چه امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله اودَ راجح قول مطابق دَ مالکیه په نیز منی که شهوت سره وی نوبیاموجب غسل ده گنی نه ده.[1] خوامام شافعی رحمه الله اوبعض مالکیه رحمهم الله فرمائی چه مطلقاً په خروج منی سره به غسل واجب کیږی که منی په شهوت سره وتلې وی اوکه بغیردَ شهوت نه.[2]

لهذا که دَ وزن په اوچتولوسره منې اوخی یادَ یواوچت ځائی نه دَ راپریوتلودَ وجې نه وتلې وی یا په شاباندې په ډنډه وغیره سره وهلود وجې نه وتلې وی یادَ یوبیمارئی دَ وجې نه وتلې وی غرض چه په هریوه غیرمعتادطریقه سره دَمنی خروج سره دَ حنفیه او حنابله په نیز غسل نه واجب کیږی. (³)خودَ شوافع په نیز په دې قسم ټولو صورتونو کښې هم غسل واجب دې.(⁴)

**دَ شوافع دلیل**: دَ شوافع دلیل دَحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دې کوم چه امام مسلم رحمه الله امام ابوداؤد رحمه الله امام احمد رحمه الله اوامام طحاوی رحمه الله وغیره نقل کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ((إنما الماء من الماء)) (⁵)یعنی انزال دَمنی اوبوسره غسل واجب کیږی.(⁶)

علامه نووی رحمه الله فرمائی ((معناه يجب الغسل بالماء من إنزال الماء الدافق، وهو المني)) (⁷)ماء دافق یعنی دَمنی په انزال سره په اوبوباندې غسل واجب کیږی. شوافع دَ عموم حدیث نه استدلال کوی دلته دَ شهوت هیڅ قید نشته دې، مطلقًا خروج منی موجب غسل گرځولې شوې دی. (⁸)

**دَ احنافو دلیل**: دَحنفیه یودلیل خودَ قرآن کریم آیت دې. سورت مائده کښې دَالله تعالی ارشاد مبارک دې ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾(⁹)یعنی که تاسو په جنابت کښې شئ نوپاکی حاصله کړئ.علامه شبیر

---

[1]) اوگورئ: ردالمحتار علی الدرالمختار:۱/۱۱۸، الهدایة:۱/۴۵المبسوط: ۱/۱۸۵بدائع الصنائع:۱/۲۷۳المغنی لابن قدامة :۱/۱۲۸الإنصاف:۱/۲۲۷الشرح الصغیر:۱/۱۶۱-۱۶۰حاشیة الدسوقی:۱/۲۱۰بدایة المجتهد:۱/۵۳۸.

[2]) اوگورئ: کتاب الأم:۱/۴۸الحاوی الکبیر:۱/۲۵۵المجموع:۲/۱۳۸فتح العزیز:۱/۱۲۲،۱۱۴.

[3])اوگورئ:بدائع‌الصنائع:۱/۲۷۷المبسوط:۱/۱۸۵السعایة:۱/۳۱۰ردالمحتار:۱/۱۱۸المغنی:۱/۱۲۸الإنصاف :۱/۲۲۸

[4]) المجموع: ۲/۱۳۹الحاوی الکبیر:۱/۲۶۰بدائع الصنائع:۱/۲۷۷المبسوط:۱/۱۸۵بدایة المجتهد:۱/۵۳۸.

[5]) الحدیث أخرجه مسلم واللفظ له فی کتاب الحیض، باب بیان أن الجماع کان فی أول الإسلام لایوجب الغسل إلا أن ینزل المنی وبیان نسخه وأن الغسل یجب بالجماع، رقم:۷۷۶، وأبوداؤد فی کتاب الطهارة، باب فی الإکسال، رقم:۲۱۷وابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة، باب الماء من الماء، رقم:۶۰۶،وأحمدفی مسنده، مسندأبی سعیدالخدری، رقم:۱۱۲۶۳، والطحاوی شرح معانی الآثار، فی کتاب الطهارة، باب الذی یجامع ولاینزل:۱/۴۵انظر کذلک جامع الأصول، الفصل الأول فی غسل الجنابة، النوع الثانی:الإنزال، رقم:۵۳۰۵.

[6]) الحاوی الکبیر:۱/۲۶۰فتح الملهم:۳/۲۰۰الهدایة:۱/۴۶.

[7]) المجموع شرح المهذب:۲/۱۳۸.

[8]) الحاوی الکبیر:۱/۲۶۰المجموع شرح المهذب:۲/۱۳۹الهدایة۱/۴۶السعایة: ۱/۳۱۱.

[9]) المائدة:۶

احمد عثمانى رحمه الله فرمانى چه په جنابت سره دَ غسل واجب كيدو دارومدار دَمنى په توپ سره دَ شهوته وتلوباندې دې. لكه چه لفظ ((جنباً)) دَ الله تعالى ارشاد ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ كښې دې طرف ته اشاره ده لكه څنګه چه صاحب دَ هدايه دَ دې وضاحت كړې دې.[1]

**دَامام شافعى رحمه الله دَدليل جواب:** دَامام شافعى رحمه الله دَ طرف نه ذكركړې شوې حديث ((الماء من الماء)) دَ جمهورو دَ طرف نه مختلف جوابونه وركړې شوى دى دَ كوم تفصيل چه به انشاء الله دَ جنابت سبب ثانى په ذيل كښې دَ ير زر بيانولې شى. البته دلته صرف په يوجواب باندې اكتفاكوو.

**دَ صاحب هدايه توجيه:** صاحب دَ هدايه علامه ابوالحسن المرغينانى رحمه الله ((الماء من الماء)) باره كښې فرمانى((والحديث محمول على خروج المنى عن شهوة))[2] يعنى مذكوره حديث دَمنى په شهوت سره وتلو باندې محمول دې.

**دَعلامه عينى رحمه الله وضاحت:** علامه عينى رحمه الله فرمانى چه حديث ((الماء من الماء)) په ((خروج المنى على وجه الشهوة)) باندې په دې وجه محمول كړې دې چه په ادله كښې تطبيق وركړې شى.[3] په دې وجه چه حضورپاك په نورو رواياتو كښې ((خروج المنى على وجه الشهوة)) باندې خو غسل لازمى ګرځولې كړې دې نه چه دَ مطلقاً خروج ماء باندې. چنانچه امام ابوداؤد رحمه الله امام نسائى رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دَ حضرت على رضى الله عنه نه روايت نقل كړې دې((عن على قال: كنت رجلاً مذاءً فجعلت أغتسل حتى تشقق ظهري، فذكرت ذلك للنبي صلى الله عليه وسلم، أوذكرله، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لاتفعل إذا رأيت المذي فاغسل ذكرك وتوضأ وضوءك للصلاة، فإذا فضحت الماء فاغتسل".))[4] حضرت على رضى الله عنه فرمانى چه زمانه به په كثرت سره مذى وتله (اودَمسئلې نه معلوميدو دَ وجې نه) مابه په دې سره غسل كولو(او په كثرت سره به دَدې نوبت راتلو) تردې چه (دَيخنئى په موسم كښې دَ سختې يخنئى او باربار غسل كولوسره) زماپه ملا كښې دردپيداشوې وو. ماحضورپاك سره دَدې تذكره اوكړه يابل چا حضورپاك سره تذكره اوكړه نوحضورپاك اوفرمائيل داسې مه كوه يعنى دَ مذى سره غسل مه كوه اوكله چه ته مذى اووينې نوخپل اندام مخصوصه اووينځه اودمانځه والا اودس اوكړه اوكله چه ته دَ توپ والااوبه اووينې نوبياغسل كوه يعنى غسل ماء دافق (منى) سره واجب كيږى نه چه مذى سره.

په مسنداحمدكښې دَحضرت على رضى الله عنه هم دغه قصه مختصراًنقل ده په هغې كښې حضورپاك حضرت على رضى الله عنه ته فرمائيلى ((إذا خذفت الماء فاغتسل من الجنابة وإن لم تكن خاذفاً فلا تغتسل))[5] يعنى

---

[1] فتح الملهم:۲۰۷/۳،الهداية:۴۶/۱،فتح القدير:۶۵/۱.

[2] الهداية:۴۶/۱.

[3] البناية:۳۲۸/۱.

[4] الحديث أخرجه أبوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة، باب فى المذى، رقم:۲۰۶، والنسائى فى سننه فى كتاب الطهارة، باب الغسل من المنى، رقم:۱۹۳، وأحمدفى مسنده، مسندعلى بن أبى طالب:۳۲۱/۱،رقم:۸۶۸، انظركذلك جامع الأصول، باب الغسل، النوع الثانى، المذى:۱۹۹/۷،رقم:۵۲۱۹.

[5] الحديث، أخرجه الإمام أحمدفى مسنده، فى مسندعلى بن أبى طالب:۳۱۶/۱،رقم:۸۴۷.

کله چه په ټوپ سره اوبه وی نو دَ جنابت نه غسل اوکړه اوکه چرې اوبه (منی) دفق وشهوت سره نه وی نو غسل مه کوه.

په رومبې روایت کښې ((فضخت)) اودویم روایت کښې ((حذفت)) الفاظ راغلی دی فضخ اوحذف دَ منی دفق اوشهوت سره وتلوته وائی نولکه دَدوارو روایتونو مطلب دا اووتلو چه کله انزال دفق او شهوت سره وی نوغسل کوه ګنی مه کوه.[1] چونکه دَحضرت علی رضی الله عنه والا دواړه روایتونه مقیددی اوحدیث ((الماءمن الماء)) مطلق دی اودا هم یوې واقعه سره متعلق دی لهذا مطلق به په مقیدباندې محمول کولې شی. دَ امام شافعی رحمه الله په نیزخومختلف واقعاتوسره تعلق لرونکی مطلق روایات په مقیدباندې محمول کول صحیح دی نودلته په طریقه اولی سره به داسې کول صحیح وی.[2]

**دویمه توجیه:** حدیث ((الماءمن الماء)) دَ خروج منی بالشهوة باندې محمول کولو یوه وجه داهم ده چه ((الماءمن الماء)) دَخپل عمومی مفهوم په اعتبارسره دَدې چه منی مذی اوودی دریواړوته شامل دی لیکن دا په خپل عموم باندې باقی نه دې ځکه چه په مذی اوودی سره غسل نه واجب کیدو باندې اجماع ده.[3] لهذا ((الماء)) نه به دلته خاص اوبه مراد اخستې شی اودابه په خروج منی بالشهوة باندې محمول کولې شی.

دَدې دلیل دَ ام سلیم رضی الله عنها روایت دې چه هغه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضره شوه اووئی وئیل چه الله تعالی دَ حق بیانولوسره نه شرمیږی، آیا په ښځه باندې غسل شته کله چه هغې ته احتلام اوشی؟ حضورپاک اوفرمائیل چه او که چرې هغه اوبه اووینی[4] دَ روایت الفاظ دی ((نعم! إذارأت الماء)) نودلته دَ الماء نه خاص اوبه مراددی. ګنی مذی اوودی سره به هم غسل لازم راشی. خبره داده چه په اجماع سره په دې غسل نه واجب کیږی.[5]

**دَخروج منی من الذکر په وخت دَ شهوت حکم:** دَ احنافو علماء کرام په دې خبره باندې خومتفق دی چه دَ وجوب غسل دَپاره دا ضروری دی چه منی کله دَخپل ځائی نه یعنی صُلب نه جدا وی نوچه شهوت سره وی خوچه کله دَ اندام مخصوصه نه بهراوځی نوهغه وخت دَ شهوت موجود کیدل شرط دې که نه؟

---

[1] البنایة:۳۲۷/۱ السعایة:۳۱۱/۱ بذل المجهودفی حل سنن أبی داؤد:۱۴۹/۲-۱۴۸.

[2] اوګورئی: البنایة:۳۲۷/۱والسعایة:۳۱۱/۱.

[3] المنهاج:۲۰۴/۳البنایة:۳۲۷/۱الأوسط:۱۳۶/۱-۱۳۳بدائع الصنائع:۲۸۷/۱.

[4] الحدیث أخرجه البخاری فی کتاب العلم، باب الحیاء فی العلم، رقم:۱۳۰،وفی کتاب الغسل، باب إذا احتلمت المرأة، رقم: ۲۸۲ وفی کتاب أحادیث الأنبیاء، باب خلق آدم وذریته، رقم: ۳۳۲۸ وفی کتاب الأدب، باب التبسم والضحک، رقم:۶۰۹۱ وفیه أیضًا باب مالایستحیامن الحق للتفقه فی الدین، رقم:۶۱۲۱ومسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب وجوب الغسل علی المرأة بخرج المنی منها، رقم: ۳۱۳والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة، باب غسل المرأة تری فی منامهامایری الرجل، رقم: ۱۹۷،وابن ماجه فی أبواب التیمم، باب فی المرأة تری فی منامهامایری الرجل، رقم: ۶۰۰، انظر کذلک جامع الأصول، رقم:۵۳۱۰.

[5] البنایة شرح الهدایة:۳۲۷/۱.

**دَ طرفین رائې:** نو په دې باره کښې دَطرفین اوامام ابویوسف رحمه الله په مینځ کښې اختلاف دې. چنانچه امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائي چه دَ وجوبِ غسل دَپاره مني دَخپل ځائي نه یعنی صلب نه شهوت سره وتل ضروري دی که دَ اندام مخصوصه نه دَ وتلووخت کښې شهوت وی اوکه نه وی.
**دَامام ابویوسف رائې:** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي چه دَاندام مخصوصه نه دَ بنکاره کیدو په وخت هم دَ شهوت موجود کیدل ضروري دی. هغه دَ اندام مخصوصه نه دَ وتلوپه وخت مني دَ صلب نه جدا کیدو باندې قیاس کوی لکه څنګه چه دَ وجوب غسل دَپاره دَمني دَ خپل مقرنه په شهوت سره وتل ضروري دی هم دغه شان دَ اندام مخصوصه نه دَ وتلو وخت کښې هم دَ شهوت موجود کیدل ضروري دی. ځکه چه که مني دَ خپل مقرنه جدا شوه اودَ اندام مخصوصه نه وتل موجودنه شی نو بالاجماع غسل نه واجب کیږی. دَ غسل دَ واجب کیدودَپاره دَمقر نه جدا کیدو سره دَ اندام مخصوصه نه خروج هم ضروري دې اودَمقر نه دَ جدا کیدو په وخت په اتفاق سره شهوت موجود کیدل ضروري دی نو د قیاس تقاضاداده چه دَ خروج په وخت هم دَدې اعتبار اوکړې شي.(۱)
**دَ طرفین استدلال:** طرفین رحمهما الله فرمائي دَ انفصال مني په وخت چونکه شهوت وی نودَدې تقاضا داده چه غسل دې واجب وی ځکه چه دَ وجوب غسل دَپاره مطلق شهوت شرط دې نه چه کمالِ دَ شهوت. نوچه کله شهوت موجود شي نوغسل واجب کیدل پکاردی اوکله چه شهوت مفقودوی نودَ وجوب غسل حکم هم نه دی لګیدل پکار. اوکله چه دَخروج په وخت شهوت نه وی نودَدې تقاضا ده چه غسل دې واجب نه وی. نوچه کله دَ غسل واجب کیدو او نه واجب کیدو دواړو احتمال دې اومن وجه غسل واجب دې نومونږ په احتیاط باندې عمل کولوسره دَ غسل واجب کیدو اووئیل ځکه په عبادات کښې هم دَاحتیاط په طرف باندې عمل کولې شي.(۲)
**دَ اختلاف ثمره:** دَ پورته ذکرشوو اختلافاتو ثمره به هم په هغه ټولو صورتونوکښې راڅخي په کوم کښې چه دَمني انفصال دَمقر په وخت چه شهود موجود وی اودَاندام مخصوصه نه د وتلو په وخت نه وی لکه چه که یوسړی استمناء بالید اوکړو اومني دَخپل مقرنه شهوت سره اووتله اودغه سړی خپل اندام مخصوصه نیولې اوساتلو تردې چه شهوت ختم شو اومني بغیردَ شهوت نه اووتله نودَ طرفین په نیزبه په دې صورت کښې غسل واجب وی اودَ امام ابویوسف رحمه الله په نیزبه غسل واجب نه وی.(۳)
علامه قاضي خان رحمه الله فرمائي چه دَتیرو شوو مونځونوباره کښې به دَ امام ابویوسف رحمه الله دَ قول اعتبارکولې شي اونه به شي راګرځولې اودَ راتلونکومونځونو په سلسله کښې به دَ طرفین په قول باندې عمل کولوسره بغیردَ غسل نه نشي کولې.(۴)
علامه شرنبلالي رحمه الله فرمائي که چرې انسان یوداسې ځائي کښې میلمه وی چرته چه دَتهمت خطره وی نودَ امام ابویوسف رحمه الله په قول باندې به فتوی ورکولې شي اوپه عام حالاتوکښې دَ طرفین قول مفتی به دې.(۵)

---

(۱) الهدایة مع فتح القدیر:۱/۶۶ البنایة:۱/۳۳۰ السعایة:۱/۳۱۲البحر الرائق:۱/۱۰۲.
(۲) السعایة:۱/۳۱۲البنایة:۱/۳۳۰ البحر الرائق:۱/۱۰۳.
(۳) الدرالمختارمع ردالمحتار:۱/۱۱۸فتح القدیر:۱/۶۶ البحر الرائق:۱/۱۰۳فتاوی قاضی خان:۱/۴۶.
(۴) فتاوی قاضی خان:۱/۴۶البحر الرائق:۱/۱۰۳فتح القدیر:۱/۶۶.
(۵) السعایة:۱/۳۱۲ البنایة: ۱/۳۳۱الدر المختار مع ردالمحتار:۱/۱۱۸.

**دَ جنابت سبب ثاني:** دَ احنافو په نیز دَ جنابت سبب ثاني دَ ښځې دَ متیازو په مقام کښې یا دَ سړي یا ښځې دَ ډکو متیازو په مقام کښې دخول دې که انزال وي او که نه وي. (1)

**په التقاء ختانین سره وجوب غسل:** پورته بیان کړې شوی صورت کښې که چرې التقائې ختانین وي او په اندازه دَ حشفه دخول اوشي نوجمهور صحابه رضي الله عنهم تابعین، ائمه اربعه او جمهور علماء کرام په نیزغسل واجب کیږي. اِنزال ضروري نه دې سواد داؤد ظاهري نه دَ ددوي په نیز التقائې ختانین سره انزال هم ضروري دې. (2)

امام بخاري رحمه الله "کتاب الغسل" په آخر کښې "التقاء الختانین" په عنوان سره باب قائم کړې دې. په زیر بحث مسئله کښې دَهغوی رائې او نور حدیثي مباحث به هم دَدې باب لاندې راځي. ان شاء الله تعالیٰ.

**دَ اکسال دَ مسئلې باره کښې دَ صحابه کراموا ختلاف:** په عهدصحابه رضي الله عنهم کښې دَحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دَ زمانې پورې پخپله په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې اختلاف وو چه دَ وجوب غسل دَپاره انزال ضروري دې که نه؟ یا صرف التقاء ختانین یعنی په اکسال سره غسل واجب کیږي. چنانچه په صدر اول کښې د صحابه کرامو یوجماعت په کوم کښې چه حضرت ابوسعید خدري، ابي بن کعب، سعدبن ابي وقاص، ابوایوب انصاري، علي بن ابي طالب، عبدالله بن مسعود، رافع بن خدیج، ابن عباس، زید بن خالد جهني رضي الله عنهم وغیره دي. دَدې خبرې قائل وو چه صرف په اکسال سره غسل نه واجب کیږي ترکومې چه دې سره انزال نه وي. (3) لیکن دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې ازواج مطهرات سره دَ رجوع نه پس دَ ټولو صحابه کرامو په دې باندې اجماع اوشوه چه صرف هم التقاء ختانین موجب غسل دې که انزال وي او که نه وي. (4)

**دَ قائلین عدم وجوب غسل استدلال:** دَ قائلین عدم وجوب غسل دَ اختلاف په وخت استدلال یوخو په صحیح مسلم کښې روایت شوې دَ حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه روایت نه وو. حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه فرمائي:

«خرجت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم الاثنين إلى قباء، حتى إذا كنا في بني سالم، وقف رسول الله صلى الله عليه وسلم على باب عتبان، فصرخ به، فخرج يجر إزاره، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "أعجلنا الرجل"، فقال عتبان: يارسول الله! أرأيت الرجل يعجل عن امرأته ولم يمن، ماذا عليه؟ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إنما الماء من الماء"» (5)

---

(1) الهداية شرح بداية المبتدي، كتاب الطهارات، فصل في الغسل:۱/۴۷-۴۶فتح القدير، كتاب الطهارات، فصل في الغسل:۱/۶۷/۶۵بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع،كتاب الطهارة،فصل في أحكام الغسل:۱/۲۷۳-۲۷۶ومابعدها، البحر الرائق شرح كنزالدقائق، كتاب الطهارة:۱/۱۰۹-۹۹تبيين الحقائق شرح كنزالدقائق، كتاب الطهارة :۱/۶۹-۶۵ النهر الفائق شرح كنزالدقائق، كتاب الطهارة:۱/۶۶-۶۴ المبسوط، باب الوضوء والغسل:۱/۱۸۸-۱۸۷.

(2) بداية المجتهد:۱/۵۳۶الاستذكار:۱/۳۲۰الكنزالمتواري:۳/۲۳۷-۲۳۶فتح المالك:۱/۴۳۴الحاوي الكبير:۱/۲۵۵ الأوسط:۲/۸۱وقال ابن منذر: "لستُ أعلم اليوم بين أهل العلم فيه اختلافاً". اهـ

(3) الحاوي الكبير:۱/۲۵۵بذل المجهود:۲/۱۷۶ الاستذكار:۱/۳۲۱الأوسط في السنن والإجماع والاختلاف : ۲/۷۷ الاعتبار في الناسخ والمنسوخ في الحديث:۱/۱۸۵.

(4) أوجزالمسالك:۱/۵۱۶معارف السنن:۱/۳۷۰بداية المجتهد:۱/۵۳۸

(5) الحديث أخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الحيض، باب الماء من الماء، رقم:۷۷۳، وانفرد به، انظر تحفة الأشراف ، رقم:۴۱۲۲.

یعنی زه رسول الله ﷺ سره دَ پیر په ورځ دَ قباء طرف ته اووتلم، کله چه مونږ بنی سالم ته اورسیدو نو رسول الله ﷺ دَ عتبان په دروازه باندې اودریدو اوهغه ته ئې آواز ورکړو نوهغه خپل لنګ رابنکلوسره راووتلو (حضورپاك هغه په دې حالت کښې اولیدلو) نوونې فرمائیل: مونږ سرې په تادئې کښې اخته کړو، حضرت عتبان ﷺ اووئیل: اې دَالله تعالی رسول! کله چه سړې دَهغه ښځه په تادئې کښې اخته کړې او هغه انزال نه شی نو په هغه باندې څه دی؟ (یعنی په هغه به غسل وی؟) رسول الله ﷺ اوفرمائیل اوبه په اوبو سره واجب کیږی یعنی غسل خو په انزال سره واجب کیږی.

دَ حضرت ابوسعیدخدری ﷺ یوروایت کښې دی ((أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أرسل إلى رجل من الأنصار، فجاء ورأسه يقطر، فقال النبى صلى الله عليه وسلم: لعلنا أعجلناك، فقال: نعم! فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إذا أعجلت أو قحطت فعليك الوضوء)) یعنی رسول الله ﷺ څوك اولیګلواودانصار یوسړې راؤغوښتلو. هغه راغلونودَهغه دَ سر نه دَ اوبو څاڅکی پریوتل. حضورپاك اوفرمائیل: لعلنا أعجلناك؟ کیدې شی مونږ ته په تادئې کښې واچولې؟ هغه وئیل اوجی اې دَالله تعالی رسول! حضورپاك اوفرمائیل: ((إذا أعجلت أو قحطت، فلا غسل عليك، وعليك الوضوء)) یعنی کله چه دَ تادئې (څه کار) راشی یا تاسو ته انزال نه وی شوې نو په تاسوباندې غسل نشته او په تاسو باندې اودس دې.

دغه شان په صحیحین کښې دَ عطاء بن یسار ﷫ نه روایت دې: ((أن زيد بن خالد أخبره أنه سأل عثمان بن عفان قلت: أرأيت إذا جامع فلم يُمْن؟ قال عثمان: يتوضأ كما يتوضأ للصلاة، ويغسل ذكره قال عثمان: سمعته من النبى صلى الله عليه وسلم))[1] یعنی زید بن خالد الجهنی ﷫ دَحضرت عثمان ﷺ نه معلومه کړه که یو سړې صحبت اوکړې اوانزال دَمنی نه وی شوې (نوڅه حکم دې؟) حضرت عثمان ﷺ اوفرمائیل "يتوضأ كما يتوضأ للصلاة، ويغسل ذكره" یعنی اودس دې اوکړې خنګه چه دَ مانځه دَپاره اودس کوی او خپل اندام دې اووینځی. حضرت عثمان ﷺ وائی مادادَ رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی.

بخاری شریف کښې هم دَدې حدیث په آخره کښې راوی وائی ((فسألت عن ذلك عليا والزبير وطلحة وأبى بن كعب، فأمروه بذلك)) ([2]) یعنی ما په دې باره کښې دَحضرت علی ﷺ حضرت زبیر ﷺ حضرت طلحه ﷺ او ابی بن کعب ﷺ نه معلومه کړه تولودَغه سړی باره کښې هم دغه حکم ورکړو (یعنی صرف اودس دې اوکړې، دَغسل حاجت نشته دې). هم دغه خبره امام طحاوی ﷫ "شرح معانى الآثار" کښې نقل کړې ده.([3])علامه کرمانی ﷫ فرمائی دې حضراتو یعنی حضرت علی زبیر طلحه او ابی بن کعب ﷺ دَ طرف نه دا فتوی ورکړې شوې وه خو حضرت عثمان ﷺ دَ فتوې ورکولوسره دَدې خبرې نسبت دَحضورپاك طرف ته هم کوی. ([4])

---

[1]) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الوضوء، باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر، رقم:١٧٩، ومسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض، باب الماء من الماء رقم:٧٧٩انظر تحفة الأشراف رقم:٩٨٠١.

[2]) أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر، رقم:١٨٠ الاعتبارفى الناسخ والمنسوخ فى الحديث: ١٨٢/١.

[3]) شرح معانى الآثار، باب الذى يجامع ولاينزل:٤٤/١.

[4]) شرح الكرمانى:١٥٥/٣فتح البارى:٥٢٢/١.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ظاهر دادى چه دې حضراتو هم زيد بن خالد جهنى ته هم دَدې خبرې حكم وركړو دَ كومې خبرې چه حضرت عثمان رضي الله عنه امر كړې وو. ليكن دَمحدث اسماعيلى په روايت كښې دى «فقالوا مثل ذلك» يعنى هغوى دَ حضرت عثمان رضي الله عنه په شان اووئيل. دَدې روايت ظاهر دَ دغه حضراتو دَ روايت مرفوع كيدوطرف ته اشاره ده ځكه چه حضرت عثمان رضي الله عنه فتوې وركولوسره داخبره دَحضورپاك نه هم نقل كړې ده. لهذا دَ محدث اسماعيلى په روايت كښې "مثل" لفظ دَدې خبرې تقاضا كوى چه هغه هم فتوى وركولوسره دَدې نسبت دَحضور پاك طرف ته كړې دې. محدث اسماعيلى په يويل روايت كښې دَدې خبرې صراحت كړې دې چه دې حضراتو صحابه كرامو رضي الله عنهم داخبره هم دَحضورپاك نه نقل كړې ده.(١) حضرت مولانامحمديوسف كاندهلوى رحمه الله فرمائي چه علامه بيهقى رحمه الله هم دَدې حضراتو قول مرفوع كيدودَ "الحسين بن عيسى البسطامى" په طريق سره تصريح كړې ده اودَحسين نه پخپله امام بخارى رحمه الله هم روايت كړې دې.(٢)

**دَ اكسال نه په وجوب غسل باندې دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم اجماع:** بهرحال په صدراول كښې دَحضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم په خپل مينځ كښې دَ اكسال په مسئله كښې اختلاف پيداشو ليكن دَحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې بيا په دې خبره باندې اجماع اوشوه چه فقط التقائې ختانين سره غسل واجب كيږى سره دَدې چه انزال نه وى. امام طحاوى رحمه الله دَ حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كښې دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم په دې مسئله باندې خپل مينځ كښې اتفاق په روايت دَ حضرت رفاعه رضي الله عنه په تفصيل سره نقل كړې دى. حضرت رفاعه رضي الله عنه فرمائي: «قال: إني لجالس عند عمر بن الخطاب رضى الله عنه، إذ جاء رجل فقال: ياأمير المؤمنين، هذا زيد بن ثابت يفتى الناس فى الغسل من الجنابة برأيه. فقال عمر رضى الله عنه: أعجل عليّ به، فجاء زيد. فقال عمر رضى الله عنه: قد بلغنى من أمرك أن تفتى الناس بالغسل من الجنابة برأيك فى مسجد النبى صلى الله عليه وسلم. فقال له زيد: أمر والله ياأمير المؤمنين، فما أفتيت برأيى، ولكنى سمعت من أعمامى شيئاً فقلت به. فقال: من أي أعمامك؟ فقال: من أبى بن كعب، وأبى أيوب، ورفاعة بن رافع. فالتفت إلى عمر فقال: مايقول هذا الفتى؟ قال: قلت: إنا كنا لنفعله على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم لانغتسل. قال: أفسألتم النبى صلى الله عليه وسلم عن ذلك؟ فقلت: لا. قال: على بالناس، فاتفق الناس أن الماء لايكون إلا من الماء، إلا ماكان من على ومعاذ بن جبل فقالا: إذا جاوز الختان الختان، فقد وجب الغسل. فقال: ياأمير المؤمنين لاأجد أحداً أعلم بهذا من أمر رسول الله صلى الله عليه وسلم، من أزواجه. فأرسل إلى عائشة رضى الله عنها فقالت: "إذا جاوز الختان الختان، فقد وجب الغسل" فتحطم عمر، وقال: لئن أخبرت بأحد يفعله ثم لايغتسل لأنهكته عقوبة "أي لمالغت فى عقوبته"».

يعنى حضرت رفاعه رضي الله عنه وائي زه حضرت عمر رضي الله عنه سره ناست ووم چه يوسړې راغلو وئى وئيل اې اميرالمؤمنين زيد بن ثابت رضي الله عنه خلقوته دَ جنابت دَغسل باره كښې په خپله رائې سره فتوى وركوى. نوحضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل هغه زر ماله راولئى. حضرت زيد رضي الله عنه راغلو نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته اووئيل چه ماته دا معلومه شوې ده چه ته په مسجد نبوى (على صاحبها الصلاة والسلام) كښې خلقو ته دَ غسل جنابت باره كښې په خپله رائې سره فتوى وركوې؟ حضرت زيد رضي الله عنه اووئيل په الله قسم! اې

---

(١) فتح البارى: ٥٢٢/١أمانى الأحبار: ٢٧٥/١.

(٢) أمانى الأحبار فى شرح معانى الآثار: ٢٧٥/١.

امیرالمؤمنین په دَخپلې رائې نه فتوی نه ده ورکړې بلکه ماد اعمام (ترونو) نه چه څه اوریدلی وو هم هغه مې بیان کړی دی. حضرت عمر رضی الله عنه تپوس اوکړو ستا ترونه څوک دی؟ نوحضرت زید رضی الله عنه اووئیل حضرت ابی بن کعب، ابوایوب او رفاعه بن رافع رضی الله عنهم نه مې اوریدلی دی، حضرت رفاعه رضی الله عنه وائی چه حضرت عمر رضی الله عنه زماطرف ته متوجه شو وئی وئیل دا څه وائینې؟ حضرت رفاعه رضی الله عنه وائی چه ما اووئیل مونږ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې هم داسې (یعنی اکسال) کولو اوبیابه موغسل نه کولو. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل آیا تاسو خلقو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه کړې وه؟ نوما اووئیل نه حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل صحابه کرام رضی الله عنهم راجمع کړئی (صحابه کرام رضی الله عنهم راجمع شو) اوټولو په دې خبره باندې اتفاق اوکړو چه غسل په انزال سره واجب کیږی (صرف التقائی ختانین موجب غسل نه دې) سواد حضرت علی رضی الله عنه اومعاذبن جبل رضی الله عنه نه. دې دواړو اووئیل چه کله شرمګاه شرمګاه کښې داخل شی (د جماع نه کنایه ده) نوغسل واجب کیږی. حضرت رفاعه رضی الله عنه اووئیل اې امیرالمؤمنین په دې باره کښې دحضورپاك دطرزعمل په سلسله کښې د ازواج مطهرات نه زیات څوك عالم نه ګڼړم. حضرت عمر رضی الله عنه حضرت حفصه رضی الله عنها له څوك ورواولیګل نوهغې اوفرمائیل ماته ددې باره کښې څه علم نشته دې. بیا حضرت عمر رضی الله عنه حضرت عائشه رضی الله عنها له څوك ورواولیګل نوهغې اوفرمائیل چه شرمګاه شرمګاه سره متجاوز شی نوغسل واجب کیږی. حضرت عمر رضی الله عنه د غصې اظهاراوکړو اوونی وئیل دَنن نه پس که ماته پته اولګیدله چه چا اکسال کړې دې اوغسل ئې نه دې کړې نوزه به هغه ته ډیره سخته سزا ورکوم. (۱)

**د جمهورو استدلال:** جمهورائمه حضراتو استدلال دَ حضرت عائشه رضی الله عنها او حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ روایت نه دې چه حضورپاك فرمائیلی «إذا جلس بين شعبها الأربع ثم جهدها فقد وجب الغسل» (۲) یعنی کله چه سړې دَ ښځې په مینځ کښې په څلوربولی کینی او کوشش اوکړی (بعض روایاتوکښې دی "ومس الختان الختان" کله چه شرمګاه په شرمګاه کښې داخل شی) نوغسل واجب شو. حضرت ام کلثوم رضی الله عنها دَ رسو الله صلی الله علیه وسلم دَ بی بی حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه نقل کړی دی: «ان رجلاً سأل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الرجل يجامع أهله ثم يكسل، هل عليهما الغسل؟ وعائشة جالسة، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: انى لأفعل ذلك، أنا وهذه ثم نغتسل» (۳) یعنی یوسړی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دَ یوداسې سړی باره کښې تپوس اوکړو چه خپلې بی بی سره کوروالې کوی بیا اکسال کوی، آیا په دغه دواړو باندې غسل دې؟، حضرت عائشه رضی الله عنها هلته تشریف فرماوه، حضورپاك دهغې طرف ته اشاره کولوسره اوفرمائیل چه زه

---

(۱) شرح معانی الآثار:۱/۴۸فتح الملهم:۳/۱۰۴.

(۲) صحیح مسلم کتاب الحیض باب نسخ الماء من الماء ووجوب الغسل بالتقاء الختانین، رقم الحدیث:۳۵۰.

(۳) حدیث أبی هریرة رضی الله عنه أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب الغسل، باب إذا التقی الختانان، رقم: ۳۴۸ وأخرجه النسائی فی صحیحه فی کتاب الطهارة، باب وجوب الغسل إذا التقی الختانان، رقم:۱۹۱وانظر کذلک تحفة الأشراف، رقم:۱۴۶۵۹، وجامع الأصول رقم:۵۳۰۰، وحدیث عائشة رضی الله عنها أخرجه الترمذی فی صحیحه فی کتاب الطهارة، باب ماجاء إذا التقی الختانان وجب الغسل، رقم:۱۰۹-۱۰۸. وابن ماجه فی صحیحه فی کتاب الطهارة، باب فی وجوب الغسل إذا التقی الختانان، رقم:۶۰۸، الاعتبارفی الناسخ والمنسوخ فی الحدیث:۱/۱۸۷-۱۸۶.

اودا هم داسې كوو بيامونږ غسل كوو. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه ما اورسول الله ﷺ داسې كړى (يعنى اكسال كړې) اومونږ غسل كړې. [1]

**دَحديث "الماءمن الماء" توجيهات:** دَجمهور ائمه دَ طرف نه دَ حديث "الماءمن الماء" دير جوابونه وركړې شوى دى. يو جواب خودادې چه مذكوره حديث ((خروج المنى على وجه الشهوة)) باندې محمول دې [2]

امام ابوداؤد رحمه الله حديث "الماءمن الماء" منسوخ كيدل نقل كړى دى چنانچه هغوى په خپل سنن كښې سهل بن سعد الساعدى نه روايت نقل كړې دې هغه ته ابى بن كعب رضي الله عنه خبر وركړې دې چه رسول الله ﷺ "الماءمن الماء" دَ كپړو دَ كمى دَ وجې نه دَاسلام په شروع كښې دَخلقو دَپاره رخصت گرځولې وو بيائى دَغسل حكم وركړو اودَدې (يعنى اكسال) نه ئى منع اوكړه. [3] امام نووى رحمه الله هم دا دَ اسلام دَ شروع كښې واقعه گرځولې ده چنانچه هغوى په صحيح مسلم كښې په دې لاندينو الفاظوسره عنوان قائم كړې دې: ((باب بيان أن الجماع كان فى أول الإسلام لايوجب الغسل إلا أن ينزل المنى وبيان نسخه وأن الغسل يجب بالجماع)) [4] بيا دې نه پس هغوى ((باب نسخ الماء من الماء ووجوب الغسل بالتقاء الختانين)) عنوان قائم كړې دې. [5] دغه شان بعض صحابه كرام رضي الله عنهم لكه حضرت ابوايوب انصارى، حضرت على، حضرت طلحه او حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه وغيره چه دَ وجوب غسل دَپاره انزال ضرورى گرځولو هغه هم دَ اسلام په شروع كښې د رسول الله ﷺ دَ طرف نه وركړې شوى رخصت باندې محمول دى. [6]

ابن ارسلان فرمائي چه حديث "الماءمن الماء" مباشرت فى غير الفرج باندې محمول دې او په دې صورت كښې غسل دَ ټولو ائمه حضراتو په نيز هم په انزال باندې موقوف دې. [7] حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه "إنما الماءمن الماء فى الاحتلام" يعنى داحديث په احتلام باندې محمول دې. [8]

حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائي چه دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ قول مطلب دادې چه حديث "الماءمن الماء" جماع اليقظه دَپاره منسوخ شوې دې (البته جماع فى المنام كوم ته چه احتلام وائى) دَ پاره اوس هم محكم او واجب العمل دې اوداسې په كثرت سره كيږى چه يوحديث منسوخ بعض جزئيات دَپاره واجب العمل باقى پاتې كيږى. [9] دَحضرت گنگوهى رحمه الله نه نقل دى چه "الماءمن

---

[1] فتح المالک: ۱/ ۴۳۴.

[2] دَتفصيل دَپاره اوگورئى: كشف البارى كتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل:ص ۱۳۲-۱۳۰.

[3] كتاب الحيض ص: ۷۳۴.

[4] حواله سابق.

[5] الحديث أخرجه أبوداؤد فى صحيحه فى كتاب الطهارة باب فى الإكسال رقم: ۲۱۴.

[6] الحديث أخرجه أبوداؤد فى صحيحه فى كتاب الطهارة باب فى الإكسال رقم: ۲۱۵.

[7] بذل المجهود: ۲/ ۱۷۹.

[8] قول ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الترمذى فى صحيحه فى كتاب الطهارة باب ماجاء أن الماء من الماء رقم: ۱۱۲، انظر الاعتبار فى الناسخ والمنسوخ فى الحديث: ۱/ ۱۹۷.

[9] فيض البارى: ۱/ ۴۸ معارف السنن: ۱/ ۳۷۳.

**الماء** عام اوساتلې شي كه هغه حقيقي وي اوكه حكمي نو ايلاج «ادخال الذكر في الفرج» ماء حكمي دى يعنى دَ انزال په حكم كښې دې. (۱)

**دَ اجماع په مقابله كښې دَ داؤد ظاهرى دَ قول حيثيت:** باقي پاتې شوه خبره دَ داؤد ظاهرى دَ اختلاف، چه ددې څه اعتبارشته كه نه؟ نوحضرت بنوري رحمه الله علامه سبكى رحمه الله شرح التقريب په حواله سره نقل كړې دى چه «لاعبرة بخلافه عند المحققين» يعنى دَ محققين په نيز دَ اجماع په مقابله كښې دَ داؤدظاهرى دَ قول هيڅ اعتبارنشته دې. (۲)

علامه نووى رحمه الله فرمائى «فالمسألة اليوم مجمع عليها ومخالفة داؤد لاتقدح في الاجماع عند الجمهور» يعنى دَ داؤدظاهرى په اختلاف سره دَ جمهورو په نيز په اجماع باندې هيڅ اثر نه پريوځى.(۳)

**عقلى دلائل:** امام طحاوى رحمه الله په شرح معانى الآثاركښې صرف التقائي ختانين سره په وجوب غسل باندې دَ "نظر" په نوم سره درې دليلونه ذكر كړې دى.

**رومبې نظر:** **جماع مع الانزال دَه أغلظ الأحداث"** نه ده يعنى ددې په وجه سره غسل واجب كيږى او **جماع بغير الانزال** كښې اختلاف دې. كله چه **جماع مع الانزال** او **جماع بغير الانزال** په اتو احكامو كښې شريك او متساوى دى: ① دَ جماع په دواړو صورتونوكښې يعنى كه انزال شوې وې اوكه نه وى شوې دَ روژې ماتيدو نه پس قضاء اوكفاره واجب كيږى. ② په دواړو صورتونوكښې دَ حج فاسد كيدو نه پس قضا او دم واجب كيږى. ③ دَ حج او روژې په دواړو صورتونو كښې **في مادون الفرج** حرام دى.④ ښځې سره دَ زناكولوسره په دواړو صورتونوكښې حد واجب كيږى. ⑤ ښځې سره **زنا بالشبه** كولوسره په دواړو صورتونوكښې حد نشته صرف مهرواجب كيږى. ⑥ **وطى فيما دون الفرج....بدون شبهة** دَ وجې نه په دواړو صورتونوكښې حد اومهرنشته دې صرف تعزيرواجب كيږى.

⑦ ښځې سره صرف **جماع في الفرج** كولونه پس طلاق وركولودَ وجې نه په دواړو صورتونوكښې **مهر** اوعدت واجب كيږى اودَ زوج اول دَپاره هم دغه ښځه حلال كيږى. ⑧ ښځې سره صرف **جماع في مادون الفرج** نه پس طلاق وركولودَ وجې نه په دواړو صورتونوكښې نصف مهر يا متعه واجب كيږى.

خلاصه دكلام داده چه "**جماع مع الانزال**" او "**جماع بغير الانزال**" په اتواحكامو كښې شريك او متساوى دى. پدې احكامو باندې نظراوقياس كولوتقاضاداده چه غسل واجب كېدلواونه واجب كيدوكښې هم دواړه شريك اومتساوى كيدل پكاردى. اودَ انزال په صورت كښې چونكه په اتفاق سره غسل واجب كيږى پدې وجه "**جماع بغير الانزال**" په صورت كښې هم غسل واجب كيدل پكاردى دې دَپاره چه دَ دواړو حكم يوشى.(۴)

**دويم نظر:** دا نظر علامه طحاوى رحمه الله "حجة أخرى" په عنوان سره بيان فرمائيلې دې دَ كوم خلاصه چه داده چه كه يوسړې اوښځې نه التقائې ختانين اوشى نوپورته ذكرشوى اته احكام واجب كيږى اوكه

---

(۱) بذل المجهود:۱۷۹/۲.
(۲) معارف السنن:۱/۳۷۰ المجموع شرح المهذب:۱۳۷/۲.
(۳) المجموع شرح المهذب:۱۳۷/۲.
(۴) باب: الذى يجامع ولاينزل، ص: ۴۹.

چرې التقائې ختانين نه پس هم انزال اوشي نو په دې سره څه نوې حكم نه واجب كيږي مثلاً كه يوسړي زناكولوسره يوې ښځې سره التقائې ختانين اوكړونوحد واجب كيږي. اوس كه چرې د التقائې ختانين نه پس انزال هم اوشي نو په دې سره بل حد نه واجب كيږي، يا كه چا د شك د وجې نه جماع كولو سره التقائې ختانين اوكړو نومهرواجب كيږي.
اوس كه دَدې نه پس انزال هم اوشي نودې سره نوې مهر نه واجب كيږي.خلاصه دا چه كله دَالتقائې ختانين نه پس انزال مؤخرشي نوحد مهر او نور څيزونه واجب كيدوتعلق صرف التقائې ختانين سره كيږي په انزال باندې موقوف كيږي نه. په دې باندې نظر او قياس تقاضاداده چه دَغسل تعلق هم صرف التقائې ختانين سره كيدل پكاردى. انزال باندې موقوف كيدل نه دى پكار.لهذا دَ التقاء ختانين دَ وجه نه پكاردى چه انزال وى اوكه نه وى، په دواړو صورتونو كښې غسل واجب كيدل پكاردى.[1]

**دريم نظر**: دانظر هم علامه طحاوى رحمه الله "حجة أخرى" په عنوان سره بيان فرمائيلې دې دَ كوم خلاصه چه داده چه جماع مع الانزال په صورت كښې دَ ښځې اوسړى دواړو حكم يوشان دې يعنى په دواړو باندې غسل واجب كيږي.
په دې باندې دَ نظر اوقياس تقاضا داده چه دَ جماع بغيرالانزال په صورت كښې هم دَ ښځې اوسړى دواړو حكم يوشان كيدل پكاردى اوچونكه دَانزال نه كيدو په صورت كښې په ښځه باندې په اتفاق سره غسل واجب كيږي په دې وجه په دې صورت كښې په سړي باندې هم غسل واجب كيدل پكاردى دې دَپاره چه په دې صورت كښې هم دَدواړو حكم يوشان شى. [2]

**قوله** :: **يدء فغسل يديه**:(حضورپاك چه به كله دَغسل جنابت اراده كوله)نواول به ئې خپل دواړه لاسونه وينځل.

**دَ اودس نه وړاندې دَدواړو لاسونو وينځلووجه**: دَ اودس نه وړاندې دَ لاسونو وينځلو دوه وجوهات كيدې شي يوخودامكن دى چه وينځل په لاسونوباندې لګيدلې ګندګئى وغيره نه پاكى حاصلولودپاره وى لكه څنګه چه دَحضرت ميمونه رضي الله عنها دَ روايت نه ددې تائيدكيږي. يا داوينځل دَخوب نه په ويښيدو باندې چه دَ لاس دَ وينځلو حكم دې دَدې دَ وجې نه وى. دَدې تائيددَ ابن عيينه رحمه الله الفاظ ((قبل أن يدخلهما في الإناء)) سره كيږي چه هغوى په دې حديث كښې دَ هشام نه نقل كړى دى.
يعنى سړې چه كله دَ خوب نه بيدارشى نوهغه له پكاردى چه هغه دې خپل دواړه لاسونه په لوښى كښې دَ وهلونه وړاندې وينځى.[3] كه په لاسونوباندې څه پليتى لګيدلې وى نودَهغې وينځل واجب دى ګنې مستحب دى. [4]

**بهترين اضافه**: هم دَ ابن عيينه رحمه الله په روايت كښې دَدې الفاظو هم زياتوالې دې ((ثم يغسل فرجه)) چه بيادې خپل شرمګاه هم اووينځى. هم دغه خبره هشام نه امام مسلم رحمه الله دَ ابومعاويه په طريق سره نقل

[1] باب: الذى يجامع ولاينزل: ص۵۰-۴۹.
[2] باب: الذى يجامع ولاينزل: ص۵۰-۴۹.
[3] اوګورئى: فتح البارى:۴۷۵/۱عمدة القارى:۲۸۴/۳.
[4] أوجزالمسالك:۴۹۷،۳۲/۱.

كړې ده.(۱) او امام ابوداؤد د حمادبن زيد په واسطه سره هم دغه روايت نقل کړې دې. (۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه «ثم يغسل فرجه» يوه بهترين اضافه ده ځکه چه شرمګاه اول وينځلوسره دوران غسل دا «دوباره» د لاس لګولو ضرورت نه پاتې کيږي «وهذا على مذهب الشوافع».(۳)

**قوله: ثم يتوضأ كما يتوضأ للصلوة:** بيابه حضورپاك ﷺ هم هغه شان اودس کولولکه چه د مانځه دپاره به ئې اودس کولو.

**قوله: كما يتوضأ للصلوة:** د مانځه والا د اودس قيدئې ځکه اولګولو دې دپاره چه اودس لغوى يعنې صرف دلاسونود وينځلونه احتراز اوشي ځکه چه د اودس اطلاق صرف د لاسونو په وينځلو باندې کيږي. "توضأ كما يتوضأ للصلوة" وئيلو سره ئې اوخودل چه دلته مراد اودس لغوى نه دې بلکه د مونځ والا اودس مراددې. (۴) علامه کورانى رحمه الله فرمائي چه په حديث کښې راغلي لفظ "كان" په دې خبره باندې دلالت کوى چه حضورپاك به په عام توګه دغسل جنابت نه وړاندې اودس فرمائيلو.(۵)

**دغسل جنابت نه وړاندې د اودس حکم:** د غسل نه وړاندې د اودس په استحباب باندې د ائمه اربعه او جمهورو اتفاق دې. (۶) علامه ابن عبدالبر رحمه الله او ابن بطال رحمه الله وغيره په دې باندې اجماع نقل کړې ده. (۷)

ليکن روستنوعلماؤوضوء قبل الغسل کښې د داؤد ظاهرى اود ابوثور اختلاف نقل کړې دې حتى چه حافظ ابن حجر رحمه الله ددې دواړو حضراتو داختلاف د وجې نه د اجماع قول ته مردود وئيلې دى. (۸) د حافظ صاحب رحمه الله داخبره ځکه صحيح نه ده چه داجماع په مقابله کښې د محققينو په نيز د داؤدظاهرى د قول هيڅ حيثيت نشته دې لکه چه علامه سبکى رحمه الله او علامه نووى رحمه الله په دې باندې تنبيه فرمائيلې ده.(۹)

بهرحال روستنوعلماؤ اختلاف نقل کړې دې. چنانچه شيخ الحديث مولانا زکريا صاحب کاندهلوى رحمه الله اوابن ارسلان د داؤد ظاهرى او ابوثورمطلقاددې دوجوب قائل کيدل نقل کړى دى.(۱۰) خوحافظ ابن حجر رحمه الله ددې حضراتو په حواله سره نقل کړى دى که چرې څوك محدث وى نودهغه دپاره اودس

---

(۱) فتح البارى:۴۷۵/۱أخرجه مسلم فى صحيح فى كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة رقم:۷۱۸وانفردبه مسلم. انظر تحفة الأشراف رقم:۱۶۹۰۱.
(۲) فتح البارى:۴۷۵/۱.
(۳) فتح البارى:۴۷۵/۱.
(۴) الكوثر الجارى:۴۰۶/۱ عمدة القارى:۲۸۴/۳ فتح البارى:۴۷۵/۱أوجز المسالك:۴۹۷/۱.
(۵) مرقاة المفاتيح:۳۳/۲ أوجزالمسالك:۳۹۸/۱.
(۶) الكوثر الجارى:۴۰۶/۱.
(۷) فتح المالك يتبويب التمهيدلابن عبدالبرعلى مؤطاالإمام مالك:۴۲۰/۱شرح ابن بطال على صحيح البخارى:۳۷۹/۱ فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۲/۱.
(۸) فتح البارى:۴۷۶/۱.
(۹) معارف السنن:۳۷۰/۱المجموع:۱۳۷/۲.
(۱۰) أوجزالمسالك:۴۹۸/۱بذل المجهود:۲۵۵/۲.

واجب دي صرف غسل د اودي د طرف نه به کفایت نه کوي.[1] په یوروایت کښې دامام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله نه هم دغه مذهب نقل دي خو دَ صحیح قول مطابق دا دواړه حضرات هم جمهوروسره دی.[2] چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله دَغسل جنابت نه وړاندې دَ اودس دَ استحباب ذکر کولونه پس لیکی "امام شافعي رحمه الله فرمائی چه الله تعالی مطلقاً غسل فرض فرمائيلې دې دَ یوخاص عمل نه دَ غسل شروع کولوحکم ئی نه دې ورکړې چه په دې سره دَ غسل شروع اوکړئی لهذا غسل کونکې دې پوره بدن اووینځی نوچه څنګه هم غسل کوی صحیح به وی" ([3])

**دَ علامه عینی رحمه الله توجیه:** وړاندې دَغسل نه اودس کول چونکه دَ احنافو په نیز سنت دې په دې وجه علامه عینی رحمه الله دَحافظ ابن حجر رحمه الله او قائلین وجوب په رد کښې فرمائی چه نص قرآنی سره دَدې چه مطلق دې او په هغې کښې دَ یوداسې شی تذکره نشته دې په کوم سره چه دَغسل شروع اوکړې شی.مګر دَحضرت عائشه رضي الله عنها په روایت سره دا واضحه شوه چه حضورپاك به دَغسل نه وړاندې د مانځه والااودس په شان اودس کولو. لهذا دَ حضورپاك په عمل سره دَسنت ثبوت اوشو اوواجب په دې وجه نه دې چه دَ اودس تحقق دَ غسل په ضمن کښې کیږی. لکه چه حائضه بنځه چرته جنبی شی نودَهغې دپاره هم یوغسل کافی کیږی.([4]) بیادااودس کوم چه دَغسل په شروع کښې کیږي په دې کښې دوه احتماله دی یاخودې دادَ غسل نه وړاندې مستقل سنت وی یا دې دَغسل جزء وی؟ که چرې دامستقل سنت اومنلې شی نو غسل کښې دَ بدن اندامونوسره دَ اودس اندامونه وینځل هم ضروری کیږی اوکه چرې دا دَغسل جزء اومنلې شی نو دَ اودس اندامونه په اودس کښې وینځل کافی کیږی. دوباره په غسل کښې باقی بدن سره به دَدې وینځل ضروری نه وی.([5])

**دَ اودس دَتقدیم وجه:** حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره دَ تقدیم وضوء باره کښې فرمائی: ((إنما قدم غسل أعضاء الوضوء تشريفاً لها ولتحصيل لها صورة الطهارتين الصغري والكبري))[6] داودس دَ اندامونو شرافت او فضیلت دَ وجې نه اودس په غسل باندې مقدم کړې شوې دې یادَدې وجې نه مقدم کړې شوې دې چه طهارت صغریٰ او طهارت کبریٰ دواړه حاصل شی.

که چرې دَ تشریف اوفضیلت دَ وجې نه دَ اودس اندامونه وینځل مقدکړې دی نو چه دَ کومو حضراتو په نیز اودس کښې نیت شرط دې نودَهغوی په نیز به په شروع کښې نیت کول وی اوکه چرې دَغسل جزنه دې بلکه مستقل سنت دی نو بیا په اودس کښې به دَ جنابت دَازاله کولو نیت هم کولې کیږی.

علامه داؤدی فرمائی چه په غسل کښې دَ اودس اندامونه داودس په ترتیب باندې وینځلوکښې مقدم کړی لیکن په شروع کښې دې دَ جنابت دَغسل نیت هم اوکړی.([7])

---

[1] فتح الباری: ۴۷۶/۱.
[2] أوجز المسالك: ۴۹۸/۱ بذل المجهود: ۵۳۱/۱.
[3] فتح الباری: ۴۷۵/۱ کتاب الأم: ۱۵۹/۱.
[4] عمدة القاري: ۲۷۳/۳.
[5] فتح الباری: ۴۷۵/۱ الکنز المتواری: ۱۸۸/۳.
[6] تحفة الباری: ۲۱۸/۱ فتح الباری: ۴۷۵/۱ شرح ابن بطال: ۳۸۹/۱.
[7] فتح الباری: ۴۷۵/۱.

شیخ الاسلام علامه زکریا انصاری رحمه الله نقل کړی دی چه راجح دادې که دَ جنابت نه وړاندې دې باندې څه پلیتی نه وی نودَ جنابت دَ غسل نه وړاندې په اودس کښې دې دَغسل دسنت نیت اوکړی اوکه جنابت اوحدث دواړه راجمع شی نودَغسل نه وړاندې اودس سره دې دَحدث اصغردَ لرې کولونیت اوکړی.[1]

**دَغسل نه پس دَاودس حکم:** بعض حضراتودَغسل نه پس اودس واجب ګرځولې دې.[2]علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دَ علماؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه دَغسل نه پس به دوباره اودس نه شی کولې[3]

**اعتراض:** په دې باندې دااعتراض کیدې شی چه مصنف ابن ابی شیبه کښې دَابوالبختری نه روایت دې «أن علیاً کان یتوضأ بعد الغسل»[4] یعنی حضرت علي رضي الله عنه به دَ غسل نه پس اودس کولو.

**جواب:** ابن بطال رحمه الله فرمائی چه دَحضرت علی رضي الله عنه روایت مرسل دې ځکه چه یحیی بن معین فرمائیلی دی دَابوالبختری الطائی نوم سعیدبن عبیددې اودا ثقه راوی دې لیکن دَ حضرت علی رضي الله عنه نه دَدَه سماع ثابته نه ده اوکه چرې دَحضرت علی رضي الله عنه نه داعمل ثابت هم شي نودَهغوی داعمل به یا دَ انتقاض وضوء دَ وجې نه به وی یا په اودس کښې دَ کیدو اونه کیدو دَ شک دَ وجې نه به وی.[5]

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه حضرت علی رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه نه دَ غسل نه پس دَ اودس نه انکار نقل دې.[6]دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه دَ غسل نه پس دَ اودس باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نو هغوی اوفرمائیل «أي وضوء أعم من الغسل؟»[7]یعنی آیا یواودس دَغسل نه هم زیات اعم دې. هم دغه خبره دَ حضرت علقمه رضي الله عنه نه هم نقل ده چه هغوی فرمائیلی «أي وضوء أعم من الغسل؟»[8]حضرت سعید بن جبیر رضي الله عنه نه وضوء بعدالغسل باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغه دا ناخوښه کړه.[9]

دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه په صراحت سره دَدې انکار مروی دې. چنانچه اسود بن یزید دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کړی دی «کان رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یتوضأ بعد الغسل»[10]یعنی رسول الله ﷺ دَ غسل جنابت نه پس اودس نه کولو. بلکه په یوروایت کښې وضوء بعدالغسل ناخوښه کیدل ذکرشوی دی. چنانچه ابن عباس رضي الله عنهما وائی چه حضورپاک فرمائیلی دی «من توضأ بعد الغسل فلیس منا» یعنی څوک

---

[1]) اوګورئی: تحفة الباری:۲۱۸/۱.

[2]) عمدة القاری:۲۸۳/۳البنایة: ۳۱۹/۱.

[3]) الاستذکار:۳۰۴/۱.

[4]) مصنف ابن ابی شیبه کتاب الطهارة فی الوضوء بعدالغسل من الجنابة، رقم:۷۵۹.

[5]) شرح ابن بطال:۳۸۹/۱.

[6]) عمدة القاری:۲۸۳/۳البنایة:۳۱۹/۱فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۴۲/۱-۱۴۱.

[7]) مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة، فی الضوء بعدالغسل من الجنابة:۷۴۸.

[8]) مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة، فی الضوء بعدالغسل من الجنابة:۷۵۲.

[9]) مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة، فی الضوء بعدالغسل من الجنابة:۷۵۴.

[10]) مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة،فی الوضوء، بعدالغسل من الجنابة:۴۷۶/۱-۴۷۵ رقم الحدیث:۷۴۹.

چه دَغسل نه پس اودس اوکړی هغه زمونږ نه نه دې. (۱)علامه هیثمي رحمه الله په مجمع الزوائد کښې دَدې روایت نقل کولونه پس فرمائي چه علامه طبراني رحمه الله په معجم کبیر او صغیر او اوسط کښې دا روایت ذکرکړې دې. دَمعجم اوسط په سندکښې سلیمان بن احمدنومې راوی دې ابن معین دَده تکذیب کړې دې اوعبدان ئې توثیق کړې دې. (۲)علامه بنوی رحمه الله فرمائي ((ولم ینبه علی إسناد "الکبیر" و"الصغیر" ،فعسی أن یکون إسنادهما لامغمز فیه)) (۳) علامه هیثمي رحمه الله معجم کبیراوصغیر په اسنادباندې کلام نه دې کړې کیدې شي دَدې وجې نه چه دَدې دواړو په اسناد کښې دَکلام څه ګنجائش نشته دې.

**په وضوء قبل الغسل کښې دَ سردَمسح حکم:** په وضوء قبل الغسل کښې به دَ سرمسح کولې شي که نه؟ په دې کښې اختلاف دې. اسحاق بن راهویه په یوغیرمشهور روایت کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نیز به وضوء قبل الغسل کښې مسح دَ سر نه شي کولې بلکه په دوران غسل کښې په سرباندې اوبه بهیول دَسردَ مسح دَ طرف نه کافي کیږي. (۴)

هم دغه خبره دَابن عمر رضی الله عنهما نه په صراحت سره مروی ده او امام ابوداؤد رحمه الله دَ امام احمد رحمه الله نه هم دغه شان قول نقل کړې دې. (۵)

ابن رجب حنبلي رحمه الله فرمائي چه وضوء قبل الغسل کښې دَ مسح په ځائې دَ سرپه وینځلو اکتفاء کول دَدې خبرې دلیل دې چه په اودس کښې دَ سر وینځل کافي دی دَمسح ضرورت نشته دې لیکن په عام اودس کښې داسې کول مکروه دی البته هغه اودس چه غسل سره یوځائې وی نو په هغې کښې داسې کول صحیح دی. (۶)

په یوروایت کښې حسن بن زیاد رحمه الله دَامام ابوحنیفه رحمه الله نه دانقل کړی دې چه په وضوء قبل الغسل کښې به دَ سرمسح نه شي کولې ځکه چه دَ جنابت دَ وجې نه په هغه باندې دَ سروینځل ضروري دی او دَ سروینځل فرض دی نوفرضیت مسح به نه ظاهریږي. (۷)دَسفیان ثوری رحمه الله امام مالك رحمه الله اودَ مشهورقول مطابق دَ امام شافعي رحمه الله او حنابله نه خلال او اودَهغه شاګرد ابوبکر په نیزوضوء قبل الغسل کښې به دَ سرمسح کولې شي. (۸)

دَ احنافو ظاهری روایت هم دغه دې چه په دغه اودس کښې به دَ سرمسح کولې شي. (۹)

---

(۱) والحدیث أخرجه الترمذی فی سننه فی کتاب الطهارة باب ماجاء فی الوضوء بعدالغسل، رقم:۱۰۷والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة، باب ترک الوضوء بعدالغسل، رقم: ۲۵۳، وابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة، باب فی الوضوء بعدالغسل، رقم:۵۷۹،انظر کذلک تحفة الأشراف، رقم:۱۶۰۱۹، وجامع الأصول، رقم:۵۳۳۳.

(۲) اوګورئي: معجم الطبرانی الکبیر:۲۱۳/۱۱رقم:۱۱۶۹۱ومجمع الزوائد، کتاب الطهارة، باب فیمن توضأ بعد الغسل :۲۷۳/۱معارف السنن:۳۶۸/۱.

(۳) اوګورئي: معارف السنن:۳۶۸/۱.

(۴) فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۳۸/۱.

(۵) فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۳۸/۱.

(۶) فتح الباری بشرح صحیح البخاری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۷) المبسوط للسرخسی:۱۴۸/۱،عمدة القاری:۲۸۴/۳البنایة:۳۱۹/۱.

(۸) فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۹) المبسوط:۱۴۸/۱البنایة: ۳۱۹/۱عمدة القاری:۲۸۴/۳.

علامه عینی رحمه الله دَحسن بن زیاد رحمه الله قول ذکر کولونه پس ظاهر روایت ته ترجیح ورکوی هغه فرمائی چه وضوء قبل الغسل کښې دَ سر په مسح کولو کښې دَ غسل پوره والې دې. (۱)کوم حضرات چه په وضوء قبل الغسل کښې دسردَمسح قائل نه دې هغه وائی چه دَنبی کریم ﷺ نه دَ غسل جنابت نه وړاندې اودس کول خونقل دی لیکن په دغه اودس کښې چرته په یوروایت کښې دَ سردَمسح تصریح نه دغه راغلې.(۲)

**دَ قائلین مسح دلیل:** دَ سردَ مسح قائلین دَحضرت امام بخاری رحمه الله تخریج کړې شوې دَحضرت عائشه رضی الله عنها دَ حدیث باب دَ ظاهر نه استدلال کوی هغه وائی چه دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په روایت کښې دَحضورپاك دَ مانځه والادَ اودس په شان اودس کول منقول دی اودَمانځه والا په اودس کښې دَ سرمسح کولې شی. لهذا دلته به هم دَ سرمسح کولې شی.(۳)

شارحین حدیث ((توضأکما یتوضأ للصلوة)) نه دَ اودس کامل مراد اخستې دې بغیردَ خپو دَ وینځلو دَ تاخیر ،ځکه چه بعض روایاتوکښې دَتاخیرغسل رجلین یعنی دَ خپوروستو وینځلو ذکرموجوددې.(۴)

دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه دَدې اودس باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغوی اوفرمائیل ((توضأوضوءك للصلوة إلا رجليك)) (۵)یعنی دَ خپل مونځ والادَاودس په شان اودس اوکړئی بغیردَخپو دَ وینځلو (چه هغه به دَ اودس نه فارغ کیدو باندې وینځلې شی). ابن رجب حنبلی رحمه الله فرمائی چه دَابن عمر رضی الله عنهما دَ قول نه داخبره معلومیږی چه وضوء قبل الغسل کښې به دَ سرمسح کولې شی. (ځکه چه دَ مانځه والا اودس کښې کولې شی).(۶)

**دَحضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا صاحب کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه زما په نیزپه دې مسئله کښې توسع ده یعنی که دَ سرمسح اوکړی نوبیاهم صحیح ده اوکه دسرمسح اونه کړی نو بیاه م صحیح دی. ځکه چه دَحضرت عائشه رضی الله عنها روایت سره دَ سرمسح کول معلومیږی او دَ حضرت میمونه رضی الله عنها په روایت کښې دَ سردَ وینځلوذکرخوشته لیکن دَ سرد مسح چرته هم تصریح نشته دې.(۷)

**دَ خپو وینځل دَ غسل جنابت نه وړاندې که روستو؟:** خپې په غسل جنابت کښې وړاندې په اودس کښې اووینځلې شی یادَ غسل جنابت نه فارغ کیدونه پس؟ یعنی دَ جنابت دَغسل نه وړاندې به دَ اودس تکمیل کولې شی که نه؟ په دې سلسله کښې دواړه شان روایات موجوددی. په دې وجه په ائمه کرامو کښې په دې مسئله کښې اختلاف پیداشوې دې. چنانچه دَ ائمه اربعه نه په دې سلسله کښې څلور اقوال نقل دی. اودَ مذکوره مسئلې صورتونه هم څلور جوړیږی په دې وجه به دَ ائمه رائې هم دې څلورو صورتونو کښې ذکرکولې شی.

---

(۱) عمدة القاری: ۲۸۳/۳.

(۲) فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۳) فتح الباری بشرح صحیح البخاری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۴) أوجزالمسالک إلی مؤطامالک: ۴۹۷/۱ فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱۳۶/۱.

(۵) فتح الباری بشرح صحیح البخاری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۶) فتح الباری بشرح صحیح البخاری لابن رجب الحنبلی:۱۳۹/۱.

(۷) أوجزالمسالک:۵۰۶/۱-۵۰۵.

**رومبۍ صورت:** دَ جنابت دَغسل نه وړاندې هم په اودس کښې خپې وينځلې شي يعنى دَ غسل دَ شروع نه وړاندې اودس پوره کړې شي، خپې وينځل دَ غسل نه پس پورې روستونه کړې شي هم دغه دَ امام شافعى رحمه الله اشهر، اصح او مختار رائې ده.[1]
دَعلى بن زياد رحمه الله دَروايت مطابق دَ امام مالك رحمه الله هم دغه رائې ده[2]شرح العمده کښې علامه فاکهانى رحمه الله فرمائى((وهوالمشهور))يعنى هم دغه دَ امام مالك رحمه الله مشهورقول دې[3]امام احمدبن حنبل رحمه الله په يوروايت کښې هم دا قول اختيارکړې دې.[4]ابن رجب حنبلى رحمه الله فرمائى چه هم دغه زمونږ په اصحاب کښې مشهوردې اوخلال اودغه ملګرې ابوبکر هم دغه رائې ده.[5]
دَ احنافو يوروايت هم دغه دې چه خپې اول اووينځلې شى. صاحب درمختار علامه حصكفى رحمه الله دا مستحب ليکلې دى.[6]اوعلامه شامى رحمه الله دَ صنيع نه هم دَدې ترجيح معلوميږى.[7]
**دويم صورت:** دويم صورت دادې چه دَغسل په شروع کښې دَ اودس پوره والې اونه کړې بلکه خپې وينځل روستوکړې اودَ غسل جنابت نه پس خپې اووينځې. هم دغه دَ امام شافعى رحمه الله دويم قول دې.[8]امام نووى رحمه الله داضعيف ګرځولې دې.[9] داشان قول دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه هم نقل دې.[10]

ابن وهب په مبسوط کښې دامام مالك رحمه الله نه نقل کړې دى که څوك خپې وينځل دَ غسل نه دَ فارغيدوپورې روستوکول غواړى نو داسې کولې شى[11]اکثرمشائخ حنفيه رحمهم الله مطلقًا دَ خپو دَ روستو وينځلو قائل دى[12]امام محمدبن حسن الشيبانى رحمه الله هم دا اختيارکړې دى.[13]
**دريم صورت:** دريم صورت دادې چه دخپو وينځل دجنابت غسل کښې په تقديم اوتاخيرسره دواړه برابردى که غواړى نو اول دې اووينځې اوداودس تکميل دې اوکړى اوکه غواړى نوخپې وينځل دې روستوکړى اودَغسل نه پس دې اووينځى.دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه په يوروايت کښې داسې نقل دى.[14]
**څلورم صورت:** که دَ غسل ځائى پاك وى ختې وغيره نه وى اوابه هم نه حصاريږى لکه چه په يو کانړى يادلګى په تخته باندې غسل کولې شى ياهغه ځائى پوخ وى نو خپې دې دَغسل نه وړاندې

---

[1]) المنهاج شرح صحيح مسلم للنووى:٣/٢٢٩فتح البارى لابن رجب الحنبلى:١/١٣٩ فتح البارى:١/٤٧٧.
[2]) المنتقى شرح مؤطأمالك لأبى الوليد الباجى:١/٣٩٢.
[3]) إرشاد السارى لشرح صحيح البخارى للقسطلانى:١/٤٨٧.
[4]) المغنى لابن قدامة الحنبلى:١/١٣٨الإنصاف لأبى الحسن المرداوى الحنبلى:١/٢٥٢.
[5]) فتح البارى لابن رجب الحنبلى:١/١٣٩الإنصاف:١/٢٥٢.
[6]) البحرالرائق:١/٩٤ الدرالمختارمع ردالمحتار:١/١١٧-١١٦أوجزالمسالك:١/٤٩٨.
[7]) ردالمحتار مع الدرالمختار ١/١١٦بذل المجهود:٢/٢٥٨.
[8]) المنهاج شرح صحيح مسلم للنوى:٣/٢٢٠المجموع:٢/١٨٢تلخيص الحبير:٢/١٨٠.
[9]) المنهاج شرح صحيح مسلم للنوى:٣/٢٢٠.
[10]) المغنى لابن قدامة الحنبلى:١/١٣٨الإنصاف للمرداوى الحنبلى:١/٢٥٢.
[11]) المنتقى لأبى الوليد الباجى:١/٣٩٢ أوجزالمسالك:١/٣٩٨الشرح الصغير:٢/١٧٢.
[12]) ردالمحتار:١/١١٦البحرالرائق:١/٩٤البناية: ١/٣١٩عمدة القارى:٣/٢٨٧.
[13]) ردالمحتار:١/١١٦.
[14]) فتح البارى لابن رجب الحنبلى:١/١٣٩المغنى لابن قدامة الحنبلى:١/١٣٨الإنصاف:١/٢٥٢.

اووينځي اوداودس تکميل دې اوکړی اوکه هلته ختې يااوبه جمع کيږی نودخپو وينځل دې روستو کړی اود غسل نه فراغت نه پس يوپاك ځائی ته راشی اوخپې دې اووينځی. دَ احناف اومالکيه نه يو قول داشان هم نقل دې.(١)

**دَ جنابت دَغسل دَ پوره کولونه وړاندې دَ اودس دليل: اکمال وضوء قبل الغسل** يعنی دَ غسل نه وړاندې دَخپودوينځلودَاستحباب دَقائلينو دليل دَبخاری شريف حديث الباب دې.داحضرات فرمائی چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها اکثر رواياتوکښې «يتوضأكمايتوضأللصلاة» الفاظ راغلی دی. ظاهر حديث نه تقديم غسل رجلين معلوميږی ځکه چه دې نه کامل اودس مراددې په کوم کښې چه دَ خپو وينځل هم داخل دی.(٢)

**يواعتراض:** په دې استدلال باندې يواعتراض دا کيږی چه دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په اکثرو رواياتوکښې دَمانځه دَ اودس په شان دَاودس ذکردې په کوم سره چه تقديم معلوميږی دَ خپو روستو وينځلو هيڅ ذکرنشته دې ليکن امام مسلم رحمه الله دَ ابومعاويه عن هشام په طريق سره دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم داشان روايت نقل کړې دې دَ دې په آخره کښې دا الفاظ دی:«ثم أفاض على سائر جسده ثم غسل رجليه» (٣)دَدې الفاظو په نقل کولو دَ هشام په شاګردانوکښې سره دَدې چه ابومعاويه متفرددې ليکن امام بيهقی رحمه الله دَده تفرد صحيح ګرځولې دې. (٤)

دغه شان دَدې زياتی شاهدهم موجود دې. ابوداؤد طيالسی رحمه الله دَ ابوسلمه رضي الله عنه په واسطه سره دَ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت نقل کړې دې دَدې په آخره کښې دی«فإذافرغ غسل قدميه» (٥) يعنی کله چه دَغسل جنابت نه فارغ شی نو دواړه خپې دې اووينځی.(٦)

دَدې نور تائيددَدې نه هم کيږی چه مسنداحمد کښې دَحضرت عائشه رضي الله عنها په روايت کښې دَ تاخير غسل الرجلين صراحت دې. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی«كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذاأرادأن يغتسل من جنابة يغسل يديه ثلاثاً، ثم يأخذ بيمينه ليصب بيمينه على شماله فيغسل فرجه حتى ينقيه، ثم يغسل يده غسلاً حسناً، ثم يمضمض ثلاثاً، ويستنشق ثلاثاً، ويغسل وجهه ثلاثاً، وذراعيه ثلاثاً، ثم يصب على رأسه الماء ثلاثاً، فإذاخرج غسل قدميه» (٧)

يعنی رسول الله ﷺ چه به کله دَ جنابت دَغسل اراده کوله نودرې ځله به ئی خپل دواړه لاسونه وينځل، بيابه ئی په خپل ښی لاس سره اوبه اخستلې چه هغه په ګس لاس باندې واچوی، بياچه به ئی کله خپل شرمګاه وينځلو تردې چه ښه به پاك شو، بيابه حضورپاك خپل لاس په ښه شان سره وينځلو،

---

١) عمدة القاری:٢٨٧/٣ إرشادالساری:٤٨٧/١ردالمحتار:١١٦/١البحرالرائق:٩٤/١شرح الزرقانی علی مؤطأ مالک: ٩٠/١فتح الباری للعسقلانی:٤٧٧/١.

٢) فتح الباری للعسقلانی:٤٧٧/١ فتح الباری لابن رجب الحنبلی:١٣٩/١عمدةالقاری:٢٨٥/٣المنتقی للباجی المالکی:٣٩٢/١المنهاج للنووی:٢٢٠/٣ أوجز المسالک:٤٩٨/١معارف السنن:٣٥٩/١.

٣) فتح الباری:٤٧٥/١أخرجه مسلم فی صحيحه فی كتاب الحيض، باب صفة غسل الجنابة، رقم:٧١٨وانفرد به مسلم، انظر تحفة الأشراف، رقم:١٦٩٠١.

٤) فتح الباری: ٤٧٧/١معارف السنن:٣٦٠/١فتح الملهم:١٤٥/٣نيل الأوطار للشوكانی:٢٦٤/١.

٥) الحديث أخرجه أبوداؤد الطيالسی فی مسنده من طريق أبی سلمة بن عبدالرحمن:٢٠٢/٢رقم:١٥٧٧.

٦) فتح الباری:٤٧٧/١فتح الملهم:١٤٥/١.

٧) انظرمسنداحمد، فی مسنده عائشة رضي الله عنها:١٥٧/٨رقم:٢٥١٥٥.

بيا به ئې درې ځله غړغړې كولې اودرې ځله به ئې پوزه كښې اوبه اچولې اودرې ځل به ئې خپل مخ وينځلو اودرې ځل خپلې متې، بيابه ئې په خپل سرباندې درې ځل اوبه بهيولې، بياچه به كله د «مغه» ځائې نه وتلو نوخپلې دواړه خپې به ئې وينځلې.

**جواب:** دَمسنداحمد دَ روايت جواب د ادې لګه څنګه چه په دې كښې دَتاخير صراحت راغلې دې هم دغه شان په دې كښې دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه دَ تقديم صراحت هم نقل دې. چنانچه شعبى رحمه الله دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل كړې دى «كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا اغتسل من الجنابة بدأ فتوضأ وضوءه للصلاة، وغسل فرجه وقدميه، ومسح يده بالحائط، ثم أفاض عليه الماء، فكأني أري أثر يده في الحائط» (١)

يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم چه به كله دَ جنابت دَغسل اراده كوله نودَمانځه والا اودس په شان اودس به ئې كولواوخپل شرمګاه به ئې وينځلواودواړه خپې، اوپه ديوال پورې به ئې خپل لاس مږلو، بيا به حضور پاك په خپل ځان باندې اوبه بهيولې، حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائى لګه چه زه دَ حضورپاك صلى الله عليه وسلم په ديوال باندې دَلاس مږلو اثر وينم.

لهذا دَحضرت عائشه رضي الله عنها روايت الباب اونور دَدې معنې ټول روايتونه په خپل ظاهرباندې محمول دى اومراد ترې نه هم تقديم غسل الرجلين دې. باقى پاتې شوه خبره دَابومعاويه عن هشام والا روايت «اوابوداؤدطيالسى اومسنداحمد كښې تاخيرغسل الرجلين والا روايتونه» نودَدې دوه جوابونه وركړې شوى دى. يودا چه په دې سره تفريق وضوء جواز بيانول مقصوددى يعنى په اودس كښې څه اندامونه وړاندې اوڅه دَغسل كولونه پس وينځل جائزدى. دويم جواب دا وركړې شوې دې چه ابومعاويه عن هشام يادَدې په شان معنى والا روايتونوكښې چه كوم «ثم غسل رجليه» په شان الفاظ راغلى دى نودې نه مراددادې «أعاد غسلهما لاستيعاب الغسل بعدأن كان غسلهما في الوضوء» يعنى په اودس كښې دَخپو وينځلونه پس دَ استيعاب دَ وجې نه دوباره دا اووينځلې. دَدې توجيه نه دا «ثم يفيض على جلده كله» بيا ئې په خپل ټول بدن باندې اوبه اوبهيولې، موافق به شى چه دَدې نه هم استيعاب غسل مقصود دې. (٢) بيا داحضرات فرمائى چه دَ حضرت عائشه رضي الله عنها ضبط حديث اود طول صحبت دَ وجې نه دَدې روايت ته دَحضرت ميمونه رضي الله عنها په روايت باندې ترجيح حاصله ده. (٣)

**دَ قائلين تاخيردليل:** دَغسل جنابت نه وړاندې په اودس كښې دَ خپو نه وينځل اوداَ غسل نه پس روستوكولوپورې قائل حضرات وائى چه دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها په اكثرو رواياتوكښې دَ خپو روستوو ينځلو صراحت موجوددې. حضرت ميمونه رضي الله عنها «وضوءه للصلاة» سره دَ غيررجلين زياتوالې هم نقل كړې دې او په روايت كښې دَدې خبرې صراحت هم موجوددې چه حضورپاك دَغسل نه فارغيدونه پس يوطرف ته كيدوسره خپې مباركې وينځلى دى. (٤) امام مسلم رحمه الله پخپله دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ ابو معاويه عن هشام په طريق سره تاخيرغسل الرجلين نقل كړې دې. (٥)

---

(١) انظر مسندأحمد، فى مسند عائشه رضي الله عنها: ٤٦٣/٨ رقم: ٢٦٥٢٣.

(٢) اوګورئى: فتح البارى للعسقلانى: ٤٧٧/١ فتح الملهم: ١٤٥/١.

(٣) فتح الملهم: ١٤٥/١ معارف السنن: ٣٦٠/١ البناية: ٣٢٠/١.

(٤) فتح البارى: ٤٧٥/١ أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض، باب صفة غسل الجنابة، رقم: ٧١٨ وانفرد به مسلم، انظر تحفة الأشراف، رقم: ١٦٩٠١.

(٥) قدمر تخريجه آنفاً، انظر ص: ١٥٧ رقم الحاشية: ٣.

په دې روایت باندې سره دَدې چه کلام کړې شوې دې چه دَ ابومعاویه تفرددې لیکن علامه بیهقی رحمه الله داصحیح ګرځولې دې. [1]اومحدثین شراح حدیث دَ ابوداؤدطیالسی دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دَدې شاهد ګرځولې دې. (کماتقدم) [2] په مسنداحمدکښې هم دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه تاخیر نقل دې. په کوم سره چه دَدې نور تائیدکیږی[3] دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه هم صراحتاً تاخیرغسل الرجلین نقل دې. [4]

**دَ تقدیم والا روایاتو توجیه:** دَ حضرت عائشه رضي الله عنها هغه روایتونه په کوم کښې چه «**یتوضاکما یتوضأ للصلاة**» په شان الفاظ نقل دی دکوم نه چه قائلین تقدیم اکمال وضوء قبل الغسل باندې استدلال کوی. قائلین تاخیردَدې په جواب کښې وائي چونکه دَحضرت میمونه رضي الله عنها په اکثرو روایاتوکښې دَ تاخیرصراحت راغلې دې اوپخپله دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه تاخیرهم روایت دې لهذا «**یتوضأکماي توضأ للصلاة**» نه «**أکثره سوي الرجلین**» یعنی بغیردَ خپودَ وینځلونه به اکثراودس مراد اخستلې شی. [5]

علامه قسطلانی رحمه الله دَعلامه کرمانی رحمه الله دا توجیه ردکړې ده هغه فرمائی چه دَ حضرت عائشه رضي الله عنها روایت مطلق او دَحضرت میمونه رضي الله عنها روایت مقید ګرځول صحیح نه دی ځکه چه دَ اطلاق اوتقیید تعلق صفات سره دې دَ یواندام وینځلواونه وینځلوسره نه دې. [6]بیاعلامه قسطلانی رحمه الله وائی چه زیاتوالې خودَحضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کښې دې چه هغې دَغسل نه وړاندې په اودس کښې خپې وینځل نقل کړی دی.

لهذا دَحضرت میمونه رضي الله عنها په روایت باندې به دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت ته تقدیم حاصل وی. [7]علامه کرمانی رحمه الله دَدې دا جواب ورکړې دې چه دَ محدثینو په نیزدَ ثقه دَ زیاتی نه مراد الفاظ کښې زیاتوالې وی اودَالفاظو زیاتې دَحضرت میمونه رضي الله عنها په روایت کښې دې دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کښې نشته دې. [8]حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت په مجازباندې محمول کولوسره دې نه اکثراودس مراد اخستې شی. [9]

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَحافظ ابن حجر رحمه الله داخبره صحیح نه ده چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها روایت په مجاز باندې محمول کړې شي ځکه چه بغیردَ ضرورت نه دَ مجاز طرف ته نه شی تللې اودَحضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کښې دَ مجازطرف ته دَ تللو هیڅ داعیه او سبب هم موجودنه دې. [10]

---

[1] الحدیث أخرجه أبوداؤد الطیالسی فی مسنده من طریق أبی سلمة بن عبدالرحمن:۲۰۲/۲رقم:۱۵۷۷.
[2] فتح الباری:۴۷۷/۱ نیل الأوطار:۲۶۴/۱فتح الملهم:۱۴۵/۳معارف السنن:۲۶۰/۱.
[3] مسندأحمد، مسندعائشه رضي الله عنها:۱۵۷/۸رقم:۲۵۱۵۵.
[4] فتح البّاری لابن رجبِ الحنبلی:۱۳۹/۱.
[5] فتح الباری:۴۷۷/۱شرح الکرمانی:۱۱۲/۳.
[6] إرشادالساری بشرح صحیح البخاری:۴۸۹/۱.
[7] إرشاد الساری للقسطلانی:۴۸۹/۱شرح الکرمانی:۱۱۲/۳.
[8] شرح الکرمانی علی صحیح البخاری:۱۱۲/۳.
[9] فتح الباری للعسقلانی:۴۷۷/۱عمدة القاری:۲۸۷/۳.
[10] عمدة القاری للعینی:۲۸۷/۳.

**دغسل رجلین دتاخیر حکمت:** امام قرطبی رحمه الله فرمائی «الحکمة فی تأخیر غسل الرجلین لیحصل الافتتاح والاختتام بأعضاء الوضوء» (۱) د غسل جنابت نه وړاندې په اودس کښې دخپو په وینځلو کښې تاخیر کښې حکمت دادې چه غسل جنابت افتتاح او اختتام د اودس په اندامونو سره وی.

**دریم صورت توجیه:** دخپو وینځلو وړاندې کول او روستو کول دواړه برابر دی که غواړی نو اول دې اووینځی او که غواړی نو روستو دې اووینځی. په یوروایت کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم دغه نقل دی. (۲)

صاحب مغنی علامه ابن قدامة حنبلی رحمه الله ددې قول په توجیه کښې فرمائی چه دخپو وینځلو وړاندې والې او روستو والی کښې داحادیثو اختلاف په دې خبره باندې دلالت کوی چه «دلته» موضع غسل مقصود نه دې بلکه مقصود خو اصل غسل (خپې) دی. (که هغه وړاندې حاصل وی او که روستو) (۳)

**دڅلورم صورت توجیه:** د احنافو او مالکیه د یوروایت مطابق که چرې غاسل په داسې ځائی کښې غسل کوی چرته چه اوبه نه جمع کیږی او ختې وغیره هم نه وی نو خپې وینځل دې وړاندې کړی ګنې روستو دې کړی. داقول په جمع بین الروایات باندې مبنی دی ددې قائلین فرمائی چه بعض روایاتو کښې تقدیم او بعض کښې تاخیر ذکر دې لهذا که چرې په داسې ځائی کښې غسل اوکړې شی چرته چه اوبه نه جمع کیږی یا ختې وغیره نه وی نو دخپو وینځل دې وړاندې کړی لکه چه د حضرت عائشه رضی الله عنها په روایاتو کښې راغلی دی او که چرې اوبه جمع کیږی یا ختې وغیره وی نو دخپو وینځل دې روستو کړی. لهذا د تاخیر والا تول روایتونه هم په دې صورت باندې محمول دی. (۴)

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه مجمع الماء کیدو د وجې نه تاخیر غسل رجلین قول د ماء مستعمل په نجس کیدو باندې مبنی دې. (۵) دعلامه ابن عابدین شامی رحمه الله د صنیع نه تقدیم غسل رجلین افضل کیدل معلومیږی. د پورته ذکرشوی تفصیلاتو د ذکرکولو نه پس هغوی فرمائی چه د مفتی به قول مطابق چونکه ماء مستعمل طاهر یعنی پاکې وی او بیادا چه اوبو ته ترهغه وخته پورې مستعمل نه شی وئیلې ترکومې چه دټول بدن نه جدا نه شی. لهذا کله چه غسل کونکې خپل ځائی بدل کړی نو بیا به د اوبو د مستعمل کیدو حکم لګولی شی. (۶) باقی پاتې شوه خبره د روایاتو د اختلاف نو علامه ابن نجیم مصری رحمه الله فرمائی چه په روایاتو کښې د تقدیم او تاخیر اختلاف اولویت او غیراولویت دې نه چه د جواز او عدم جواز. (۷)

حاصل دا چه د جنابت د غسل نه وړاندې په اودس کښې خپې وینځل افضل دی البته حضور پاک به کله د تنظیف په توګه او د جواز د بیان د پاره ددې وینځل روستو کول. (۸)

---

(۱) فتح الباری: ۴۷۸/۱ المنتقی: ۳۹۲/۱ إرشاد الساری: ۴۸۸/۱.

(۲) المغنی لابن قدامة الحنبلی: ۱۳۸/۱ الإنصاف للمرداوی: ۲۵۲/۱.

(۳) المغنی لابن قدامة الحنبلی: ۱۳۸/۱.

(۴) عمدة القاری: ۲۸۵.۲۸۷/۳ إرشاد الساری: ۴۸۹/۱.

(۵) البنایة شرح الهدایة للعینی: ۳۲۲/۱.

(۶) ردالمحتار مع الدرالمختار: ۱۱۷/۱-۱۱۶.

(۷) البحرالرائق شرح کنزالدقائق: ۹۴/۱ فتح الملهم: ۱۴۵/۳.

(۸) الکوثرالجاری: ۴۰۸/۱ بذل المجهود: ۲۵۸/۲.

**قوله: ثم یدخل أصابعه فی الماء فیخلل بها أصول الشعر:** بیا به (حضورپاك) خپلې گوتې په اوبو کښې ډوبولې او په هغې سره به ئې د ویښتو په جرړوکښې خلال کولو. فیخلل بها، یعنی په خپلو گوتوسره به ئې د ویښتو خلال کولو کومې چه به ئې په اوبو کښې ډوبې کړې وې. (١)

د امام مسلم رحمه الله په روایت کښې ((ثم یأخذ الماء، فیدخل أصابعه فی أصول الشعر)) (٢) یعنې بیا به حضورپاك اوبه اخستلې اوخپلې گوتې به ئې د ویښتو په جرړوکښې داخلولې. امام ترمذی رحمه الله او امام نسائی رحمه الله د ابن عیینه رحمه الله په طریق سره روایت نقل کړې دې ((ثم یشرب شعره الماء)) (٣) یعنې بیا به حضورپاك خپل ویښته په اوبوسره لمدول. مقصد د ټولو روایاتو دا خودل دی چه حضورپاك به د ویښتو جرړې په اوبوسره لمدولې.

**اصول الشعر:** د مستملی اوحموی په روایت کښې أصول الشعر یعنی الشعر لام د تعریف سره راغلې دې. (٤) خودکشمیهنی په روایت کښې أصول الشعر په ځائې باندې أصول شعره الفاظ راغلی دی یعنی د خپل سرمبارك د ویښتو جرړوته به ئې اوبه رسولې. (٥)

د دې تائید د امام بیهقی رحمه الله د هشام عن حماد بن سلمه په روایت سره کیږی په دې کښې دی ((فیخلل بها شق رأسه الأیمن، فیتبع بها أصول الشعر، ثم یفعل بشق رأسه الأیسر)) (٦) یعنی حضورپاك به په خپلو لویدو گوتوسره د سرد ښی طرف خلال فرمائیلو اود ویښتو جرړو پورې به ئې اوبه رسولې، بیابه ئې د سرد گسې حصې خلال کولو. قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه بعض حضرات وائی چه د ټول بدن د ویښتو خلال به کولې شی. هغه یا خود أصول الشعر په عموم سره استدلال کوی یاد بدن د باقی حصو د ویښتو د سرپه ویښتوباندې قیاس کوی (٧) علامه کورانی رحمه الله فرمائی چه أصول شعره الفاظ په دې خبره باندې دلالت کوی چه د ویښتو جرړوته اوبه رسول ضروری دی (٨) د یو بل روایت نه هم د دې تائید کیږی چه حضورپاك اوفرمائیل ((إن تحت کل شعرة جنابة)) (٩) یعنې د هرویښته لاندې جنابت (نجاست) وی.

**د ویښتو د خلال حکمت اوفائده:** ابن حجر رحمه الله وغیره د تخلیل شعر حکمت اوفائده بیانولوسره فرمائی: ((فائدة التخلیل إیصال الماء إلی الشعر والبشرة، ومباشرة الشعر بالید لیحصل تعمیمه بالماء، وتأنیس البشرة لئلا

---

(١) فتح الباری:١/٤٧٦عمدة القاری:١/٢٨٤.

(٢) أخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب صفة غسل الجنابة:رقم: ٧١٨.

(٣) الحدیث أخرجه الترمذی فی جامعه، فی أبواب الطهارة، باب ماجاء فی الغسل من الجنابة، رقم:١٠٤ والنسائی فی سننه کتاب الطهارة، باب تخلیل الجنب رأسه، ولفظه: "کان یشرب رأسه" رقم:٢٥٠.

(٤) إرشاد الساری بشرح صحیح البخاری:١/٤٨٧تحفة الباری:١/٢١٩.

(٥) عمدة القاری:٣/٢٨٥فتح الباری:١/٤٧٦.

(٦) أخرجه البیهقی فی السنن الکبری، کتاب الطهارة، باب تخلیل أصول الشعر بالماء وإیصاله إلی البشرة، رقم:٨٢٥

(٧) شرح الزرقانی:١/٩١فتح الباری:١/٤٧٦.

(٨) الکوثر الجاری إلی ریاض أحادیث البخاری:١/٤٠٧.

(٩) الحدیث أخرجه أبوداؤد فی سننه فی کتاب الطهارة، باب فی الغسل من الجنابة، رقم:٢٤٨وابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة، باب تحت کل شعرة جنابة، رقم:٥٩٧والترمذی فی جامعه فی أبواب الطهارة، باب ماجاء أن تحت کل شعرة جنابة، رقم:١٠٦وانظر جامع الأصول، النوع الأول فی کیفیة الغسل، رقم:٥٣١٦وتحفة الأشراف، رقم:١٤٥٠٢.

يصيبها بالصب ماتتأذي به» (١)دَ تخليل فائده دَ ويښتوجرړو ته او څرمن ته اوبه رسول دی دې دَپاره چه په عمومی توګه باندې دَ بدن هرڅائي ته اوبه اورسيږی اوڅرمن نرمه شي، اوبغيردَ خلال نه اوبه بهيولوسره دکيدونکي ممکن تکليف نه بچاؤاوشي. امام نووی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله «فيدخل أصابعه في أصول الشعر»په شرح کښې فرمائی:«والحکمة في هذا تليين الشعر وترطيبه ليسهل مرور الماء عليه ويکون أبعد من الإسراف في الماء» (٢)

دَ خلال حکمت دادې چه ويښته نرم تازه اوښکلې شی دې دَپاره چه په هغې باندې اوبه بهيول آسان وی اودَ اوبو په استعمال کښې دَ اسراف نه بچ شي.

**دَ سردَ ويښتودَخلال حکم:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه زرقانی رحمه الله ليکلی دی چه په غسل کښې په اتفاق سره دَ سردَ ويښتو خلال غيرواجب دې الايه چه دَ سر ويښته په څه څيزسره ترلې شوې وی يعنی ويښته اينختې وی او څه څيزسره کلك شوې وی دَ کوم په وجه چه بغيردَ تخليل نه اوبه دَ ويښتو جرړو ته نه شی رسيدې. «نوبيابه خلال کول ضروری وی دې دَپاره چه اوبه دَ ويښتو جرړو ته اورسيدې شي» (٣)

**تخليل لحيه:** دَ ائمه په مينځ کښې مختلف فيه ده دَ دې وضاحت په کتاب الوضوء کښې راغلې دې.

**قوله: ثم يصب على رأسه ثلاث غرف بيديه:** بيا حضورپاك په خپلو لاسونو باندې درې لپې «اوبه» په خپل سرباندې واچولې. **ثلاث غرف:** غرف دَ غين په ضمه او راء فتحه سره دَ **غرفة** جمع ده. **الغرفة** «دَ غين ضمه سره»يوه لپه اخستې شوې اوبوته وائی.او**الغَرفة** «دَغين فتحه سره»مصدرمرة دې يوځل لپه ډکولو ته وائی. (٤)

**دَعلامه انورشاه کشميری رحمه الله رائې:** علامه انورشاه کشميری رحمه الله فرمائی چه **الغَرفة** په فتح دَغين په لوښی سره لړې اوبوته وائی او**الغُرفة** په ضمه دَ غين دَنهر نه لړې اوبه اخستوته وائی.لکه چه ارشاد باری تعالی دې ﴿إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ﴾ (٥) يعنی مګرڅوك چه واخلی يوه لپه په خپل لاس سره. (٦)دَ **الغُرفة** جمع **غُرُفات،غُرَفات** او **غُرْفات** دَ راء په ضمه فتحه اوسکون سره هم راځی. (٧)

**دَ نسخواختلاف:** علامه عينی رحمه الله وائی چه دکشميهنی په روايت کښې «**ثلاث غرف**» راغلې دې. (٨) خو حافظ ابن حجر رحمه الله غرفات دَ کشميهنی روايت ګرځولې دې. (١)علامه قسطلانی رحمه الله وائی چه

---

(١) اوګورئي: فتح الباري:٤٧٦/١شرح الزرقاني على موطأ للإمام مالک:٩١/١.

(٢) اوګورئي: المنهاج شرح صحيح مسلم للنووی:٢٢٠/٣،إرشادالساری بشرح صحيح البخاری:٤٨٨/١.

(٣) فتح الباري:٤٧٦/١شرح الزرقاني على موطأالإمام مالک:٩١/١فتح الملهم بشرح صحيح الإمام مسلم:٣/١٤٤.

(٤) الصحاح للجوهری، ص:٧٢٢لسان العرب:٥٤/١٠مجمع بحار الأنوار:٢٩/٤فتح الباري:٤٧٦/١عمدة القاری : ٢٨٥/٣إرشاد الساری:٤٨٨/١.

(٥) البقرة:٢٤٩.

(٦) فيض الباري:٤٥٣/١.

(٧) الصحاح للجوهري ص:٧٢٢لسان العرب:٥٤/١٠مجمع بحارالأنوار:٢٩/٤.

(٨) عمدة القاری:٢٨٥/٣.

غرفات دَ اصیلی روایت دی. (۲) بهرحال دَ نسخواختلاف په خپل ځائې دلته هم لفظ غرفات راجح دې ځکه چه غرفات جمع قلت ده اوپه عام توګه دَ ثلاث عدد تمیزجمع قلت راځی. (۳)

**دَ لفظ غرف رومبې توجیه:** البته په کومونسخوکښې چه غرف راغلې دې دَهغې یوه توجیه داده چه لفظ غرف سره ددې چه دَ جمع کثرت وزن دی لیکن دلته دا جمع دَ قلت قائم مقام ده ځکه چه کله جمع کثرت جمع قلت په ځائې او جمع قلت دَ جمع کثرت په ځائې راوړلې شی. (۴)

**دویمه توجیه:** ددې دویمه توجیه داده چه غرف په وزن دَ فُعل کوفیین په نیزجمع قلت دَ اوزان نه ده. هغه وائی چه دَ فُعل فاء ضمه اوکسره سره دجمع قلت وزن دې لکه دالله تعالی ارشاد ﴿فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ﴾ (۵) او ﴿ثَمَانِيَ حِجَجٍ﴾ (۶) کښې لفظ "سور" په وزن فعل اولفظ "حجج" په وزن دَ فِعل جمع قلت دَ اوزان نه ده. (۷)

**دَ ثلاث غرف نه دَ شوافع تثلیث فی الغسل باندې استدلال:** ثلاث غرف الفاظ نه شوافع دَ «تثلیث فی الغسل» په استحباب باندې استدلال کړې دې. (۸) چنانچه امام نووی رحمه الله په مسلم شریف کښې دَ جبیر بن مطعم رضی الله عنه روایت «فإني أفيض على رأسي ثلاث أكف» (۹) یعنی زه په خپل سرباندې درې لپې اوبه اچوم. په ذیل کښې لیکلی دی: "په دې حدیث سره په سرباندې درې ځل دَ اوبواچولو استحباب معلومیږی په دې باندې اتفاق دې. زمونږ اصحاب (فقهاء شافعیه) په سر اوباقی دَاودس په اندامونو باندې قیاس کولوسره ټول بدن دې سره ملحق کړې دې. ځکه چه په اودس کښې تخفیف دې اوباربار دَدې ضرورت پیښیږی. لهذا چه کله په اودس کښې تثلیث مستحب دې نو په غسل کښې به په طریقه اولی مستحب وی. په دې مسئله کښې دَ چا په نیزڅه اختلاف زمونږ په علم کښې نشته دې بغیردَ قاضی القضاة ماوردی رحمه الله هغه وائی چه په غسل کښې تکرار مستحب نه دې دهغه دا قول شاذ اومتروک دې." (۱۰)

---

۱) فتح الباری:۱/۴۷۶.

۲) إرشاد الساری:۱/۴۸۸.

۳) فتح الباری:۱/۴۷۶عمدة القاری:۳/۲۸۵إرشادالساری:۱/۴۸۸.

۴) فتح الباری:۱/۴۷۶عمدة القاری:۳/۲۸۵إرشادالساری:۱/۴۸۸.

۵) سورت هود:۱۳.

۶) سورت القصص:۲۷.

۷) عمدة القاری:۳/۲۸۵إرشادالساری:۱/۴۸۸.

۸) فتح الباری:۱/۴۷۶إرشادالساری:۱/۴۸۸.

۹) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه فی کتاب الغسل باب من أفاض علی رأسه ثلاثاً رقم:۲۵۴ومسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض باب استحباب إفاضة الماء علی الرأس وغیره ثلاثاً رقم:۷۴۰وأبوداؤد فی سننه فی کتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة رقم:۲۳۹والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة باب ذکر مایکفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه رقم:۲۵۰ وأخرجه أیضاً فیه فی کتاب الغسل والتیمم باب مایکفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه رقم:۴۲۳وابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة وسننها، باب فی الغسل من الجنابة رقم:۵۷۵انظر تحفة الأشراف رقم:۳۱۸۶.

۱۰) المنهاج:۳/۲۳۵-۲۳۴.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه (عدم استحباب صرف دَماوردى رحمه الله نه دې) بلكه هم دغه خبره ابو على السنجى رحمه الله په شرح الفروع كښې ذكر كړې ده اوامام قرطبى رحمه الله هم دَدې قائل دې. [1] په مذكوره روايت كښې تثليث ته «باب من بدأ بالحلاب أو الطيب عند الغسل» كښې حضرت قاسم رحمه الله دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه په روايت باندې محمول كړې شوې دې دَدې مقتضى داده چه هريولپه دَ سر دَ مختلف طرفونونه اچولې شوې وى. [2]

چنانچه ماوردى رحمه الله هم دا اختياركړې دې هغه فرمائى چه دَغسل شروع دَ ښى طرف نه اوبه بهيولوسره كوئى. دَ قاسم رحمه الله دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ روايت دَ وجې نه، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه كله به رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ جنابت دَ غسل اراده كوله نو په خپلو دوارو لاسونوكښې به ئى اوبه اخستلې اودَسر مبارك دَښى طرف نه به ئى شروع كوله بيابه ئى كس طرف باندې اوبه اچولې. [3]

دَ بخارى شريف په روايت كښې حلاب دَ راغوښتلوهم ذكر دې. دَدې تفصيلى بحث به په مذكوره باب كښې راځى. ان شاء الله. دَ احنافو په نيزهم په غسل كښې درې ځل اوبه بهيول سنت دى ليكن داياد ساتئى چه درې لپې اوبه اچول مسنون نه دى بلكه سنت درې ځل استيعاب سره غسل كول دى. چنانچه ابن نجيم رحمه الله ليكلى دى «السنة تكرار الغسلات المستوعبات لاالغرفات» [4] يعنى تكرارسره داسې غسل كول چه پوره بدن اووينځلې شى سنت دى نه چه (درې ځل) لپې اوبه اچول. علامه زرقانى رحمه الله فرمائى چه تثليث رأس سره خاص دې. هم دغه دَ حديث (الفاظ "ثم يصب على رأسه") مدلول دې. [5]

**قوله: ثم يفيض الماء على جلده كله**: بيا به حضورپاك په خپل ټول بدن مبارك باندې اوبه بهيولې. **يفيض الماء**: أفاض، يفيض، إفاضة دَ باب افعال نه دَمضارع معروف صيغه ده. «**أفاض الماء على نفسه**» په بدن باندې اوبه بهيولوته وائى. [6]

علامه مطرزى رحمه الله وائى «**أفاض الماء: صبه بكثرة**» په كثرت سره اوبه بهيولوته وائى. [7] علامه كورانى رحمه الله ليكلى دى چه «**الإفاضة: الصب من الأعلى بكثرة، من فاض الماء إذا سال عن جوانب الحوض**» [8] افاضه دَ

---

[1]) فتح البارى:۱/۴۷۶.

[2]) فتح البارى:۱/۴۷۶.

[3]) الحاوى الكبير:۱/۲۶۸والحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الغسل باب من بدأ بالحلاب أوالطيب عندالغسل رقم:۲۵۸ومسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض، باب صفة غسل الجنابة رقم:۷۲۵ أبوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة رقم:۲٤۰والنسائى فى سننه فى كتاب الغسل والتيمم، باب استبراء البشرة فى الغسل من الجنابة رقم:٤۲۲ انظرتحفة الأشراف رقم:۱۷٤٤۷.

[4]) البحرالرائق:۱/٤۷.

[5]) شرح الزرقانى:۱/۹۱.

[6]) اوګورئى: لسان العرب:۱۰/۳۶۶الصحاح للجوهرى ص:۸۳۰النهاية لابن الأثير:۲/٤۰٤.

[7]) المغرب فى ترتيب المعرب للمطرزى:۲/۱۵٤الكوثر الجارى للكورانى:۱/٤۰۷.

پورته طرف نه په کثرت سره اوبه بهیولوته وائی. اودا «فاض الماء» نه ماخوذ دې. «فاض الماء» هغه وخت وئیلې شی کله چه په حوض کښې دَ اوبو ډکیدونه پس دَدې دَ اطرافونه بهیدل شروع شی. فاض الماء فیضاً دَسمع نه دَ اوبوچپه راتلل ډکیدوسره بهیدل اوپه کثرت سره بهیدوته وائی.(۲)

دَعلامه لکهنوی رحمه الله وائی: علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله دَ "دُرر" په حواله سره لیکلی دی چه «الإفاضة: الصب» یعنی دَ پورته نه اوبه راغورزولوته وائی. لهذا په غیرجاری اوبوکښې که چرې صب نه وی نوغسل ته به مسنون نه شي وئیلی سره دَدې چه پلیتی لرې شی. (اوطهارت حاصل شی) البته په بهیدلو اوبوکښې که څوك غوپه اووهی او په اندازه دَ اودس اوغسل په هغې کښې حصارشی نوهغه دَ سنت تکمیل اوکړو. (۳)

کوم حضرات چه دلك شرط نه گرځوی هغه «یفیض الماء» نه استدلال کوی (چه یفیض صرف اوبه بهیولوته وائی نه چه مږلوته) نودَدې نه معلومه شوه چه دلك ضروری نه دې. دَ حنفیه شافعیه حنابله اوبعض مالکیه په نیز «دلك فی الغسل» مستحب دې خو امام مالك رحمه الله او امام مزنی رحمه الله دا په اودس باندې قیاس کولوسره واجب گرځوی. (۴)

علامه مازری رحمه الله وائی چه دَ جمهورو «الإفاضة» په «الإسالة» معنی کښې اخستلوسره په عدم دلك باندې استدلال کول صحیح نه دی ځکه چه «فاض» دَ «غَسَل» په معنی کښې هم راځی لهذا په غسل کښې به اختلاف باقی پاتې وی. (۵)حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ولایخفی مافیه» (۶)یعنی علامه مازری رحمه الله په دې قول کښې چه کوم ضعف دې هغه دَچانه هم پټ نه دې. دَعلامه مازری رحمه الله دَدې قول باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله «ولا یخفی مافیه» وئیلو وجه داده چه دَ لغت دَیومعتبر کتاب نه «فاض» په معنی دَ «غَسَل» ثبوت نشته دې. (۷)

**قوله: جلده:** دَ جلدنه مراددلته بدن دې علامه رافعی رحمه الله وائی «وقدیکنی بالجلد عن البدن» (۸) یعنی جلد وئیلو سره بدن مراد اخستې شی.

**قوله: کلّه:** کله دَتاکید په توگه راوړلې شوې دې دې دَپاره چه چاته دا وهم نه وی چه دَدې نه اکثر بدن مراددې بلکه دَ کله تاکید په دې خبره دلالت کوی چه رسول الله ﷺ په غسل کښې ټول بدن

---

(۱) الکوثر الجاری:۱/۴۰۷.
(۲) لسان العرب:۱۰/۳۶۶الصحاح ص:۸۳۰النهایة:۲/۴۰۴.
(۳) السعایة فی کشف مافی شرح الوقایة للإمام عبدالحی اللکهنوی:۱/۲۹۶.
(۴) اوگورئی: فتح الباری للعسقلانی:۱/۳۷۶عمدة القاری:۳/۲۸۵إرشادالساری:۱/۴۸۸شرح الزرقانی:۱/۹۱.
(۵) اوگورئی: فتح الباری للعسقلانی:۱/۴۷۶شرح الزرقانی علی موطأالإمام مالک:۱/۹۱.
(۶) فتح الباری:۱/۴۷۶.
(۷) اوگورئی: لسان العرب:۱/۳۶۶المغرب:۲/۱۵۴الصحاح ص:۸۳۰ النهایة:۲/۴۰۴.
(۸) شرح الزرقانی علی موطأالإمام مالک:۱/۹۱.

مبارك اووینځلو.(۱)دَ کله په تاکیدسره دَدې خبرې تائیدهم کیږی چه دَ غسل نه وړاندې اودس کول مستقل سنت دی اوپه دې سره دَ اودس پوره کول وړاندې دَغسل په استحباب باندې هم استدلال اوکړې شو چه غسل نه وړاندې په اودس کښې خپې اووینځلې شی روستودې نه کړې شی لکه چه «کمایتوضأللصلوٰة» دَ الفاظو نه ښکاره کیږی. (۲)

**فائده:** په حدیث باب کښې دَ «کان إذا اغتسل» نه اراده دَغسل مراد ده او «من الجنابة» کښې "من" دَ سببیت دپاره دې. یعنی «لأجل الجنابة» دَ جنابت دَ وجې نه. (۳)

په حدیث مبارك کښې "بدأ"، "فغسل" او "ثم توضأ" دَماضی په صیغه سره راوړل او "یدخل"، "فیخلل"، "یصب" او "یفیض" دَ مضارع راوړلوکښې نکته داده چه که چرې "إذا" شرطیه اومنلې شی نوماضی به دَمستقبل په معنی کیږی لهذا ټول به دَمستقبل په معنی کښې وی. باقی پاتې شوه خبره دَ الفاظو دَ اختلاف نوهغه دَدې خبرې طرف ته دَ اشارې کولودپاره راوړلې شو چه په دې کښې کوم افعال غسل کښې داخل دی اوکوم خارج دی. لهذا دَماضی والا درېواړه افعال دَغسل نه خارج او مضارع والا افعال دَ غسل نه دی.(۴)که چرې "إذا" ظرفیه اومنلې شی نو ماضی خو به په خپل اصل وی اودَ مضارع والوصیغوکښې دَاصل نه دَمستقبل طرف ته عدول په دې وجه کړې شوې دې چه سامعین ته دَ غسل دَ صورت استحضار اوشی.(۵)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث شریف ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په حدیث کښې هم دَ غسل جنابت نه وړاندې دَ اودس کولو صراحت موجوددې.

**دَحدیث نه مستنبط شوی احکام:** ① دَ اودس شروع کولو نه وړاندې دَلاسونو وینځل مستحب دی. (که چرې څه پلیتی نه وی لګیدلې نو ګنې دَ لاسونو وینځل به واجب وی)(۶). ② دَغسل نه وړاندې اودس کول سنت دی.(۷) ③ دَغسل نه وړاندې دَ اودس پوره والې اوکړی خپې وینځل دې روستوکوی نه. (۸)④ دَ سرویښتوکښې خلال اودَ ږیرې ویښتوکښې خلال په غسل کښې واجب دې اوپه اودس

---

۱) اوګورئی: فتحالباری:۴۷۶/۱عمدةالقاری:۲۸۵/۳إرشادالساری:۴۸۸/۱شرحالزرقانی:۹۱/۱الکوثرالجاری: ۴۰۷/۱.

۲) اوګورئی: فتح الباری:۴۷۶/۱عمدة القاری:۲۸۵/۳إرشادالساری:۴۸۸/۱شرح الزرقانی :۹۱/۱الکوثرالجاری: ۴۰۷/۱.

۳) فتح الباری:۴۷۵/۱عمدة القاری:۲۸۴/۳إرشادالساری:۴۸۷/۱.

۴) شرح الکرمانی علی صحیح البخاری:۱۱۲/۱-۱۱۱عمدة القاری:۲۸۴/۳تحفة الباری:۲۱۹/۱-۲۱۸.

۵) اوګورئی: فتح الباری:۴۷۶/۱عمدة القاری:۲۸۴/۳شرح الکرمانی:۱۱۲/۱.

۶) عمدة القاری:۲۸۵/۳شرح الکرمانی علی صحیح البخاری:۱۱۲/۱تحفة الباری:۲۱۹/۱

۷) عمدة القاری:۲۸۵/۳فتح الباری علی صحیح البخاری:۴۷۵/۱شرح ابن بطال:۳۷۹۹/۱إرشادالساری:۴۸۸/۱.

۸) فتح الباری:۴۷۶/۱عمدةالقاری:۲۸۵/۳.

کښې سنت دي. (¹)⑤ په خپل لاس باندې درې لپې اوبه په خپل سر باندې اچول مستحب دی. (²)⑥ دَ جنابت په غسل کښې ګوتې په اوبو کښې داخلول جائزدی. (³)

## الحدیث الثالث

۲۴۹ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ: «تَوَضَّأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُضُوءَهُ لِلصَّلاَةِ، غَيْرَ رِجْلَيْهِ، وَغَسَلَ فَرْجَهُ وَمَا أَصَابَهُ مِنَ الأَذَى، ثُمَّ أَفَاضَ عَلَيْهِ المَاءَ، ثُمَّ نَحَّى رِجْلَيْهِ، فَغَسَلَهُمَا، هَذِهِ غُسْلُهُ مِنَ الجَنَابَةِ» [حدیث باب ۲۵۷، ۲۵۴، ۲۵۶، ۲۲۲، ۲۲۳، ۲۷۰، ۲۷۲، ۲۷۷] (⁴)

**ترجمه:** مونږ ته محمدبن یوسف بیان اوکړو چه اووئیل مونږ ته سفیان (ثوری) هغه دَاعمش نه هغه دَ سالم بن ابی الجعد نه هغه دکریب نه اوهغه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه هغوی دَ حضرت میمونه رضی الله عنها نه چه حرم محترم وه دَ حضورپاک ﷺ هغې اووئیل رسول الله ﷺ (دَ غسل جنابت نه وړاندې) دَ مانځه په شان اودس اوکړو صرف خپې ئې اونه وینځلې اوخپل شرمګاه ئې اووینځلو اوکوم ګندګی چه لګیدلې وه (هغه ئې وینځله) بیائې په خپل ځان باندې اوبه اوبهیولې بیائې دواړه خپې اوځنډلې هغه ئې وینځلې (سالم اووئیل) دَ حضورپاک دَ جنابت غسل هم دغه وو.

## تراجم رجال:

---

¹) عمدة القاری:۲۸۵/۳إرشادالساری:۴۸۸/۱.

²) شرح الکرمانی:۱۱۲/۱تحفة الباری:۲۱۹/۱.

³) عمدة القاری:۲۸۶/۳شرح الکرمانی:۱۱۲/۱.

⁴) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه أیضاً فی کتاب الغسل باب الغسل مرة، رقم: ۲۵۷،وأخرجه أیضاً فی الکتاب نفسه، فی باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة رقم:۲۵۹بنحوه، وفیه أیضاً، باب مسح الید بالتراب لتکون أنقی رقم:۲۶۰وفیه أیضاً، باب تفریق الوضوء والغسل رقم:۲۶۵، بنحوه مختصراً، وفیه أیضاً باب من أفرغ بیمینه علی شماله فی الغسل رقم:۲۶۶ بنحوه وفیه أیضاً باب من توضأ فی الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم یعد غسل مواضع الوضوء منه مرة أخری رقم: ۲۷۴، بنحوه، وفیه أیضاً باب نفض الیدین من الغسل عن الجنابة رقم:۲۷۶، وفیه أیضاً فی باب التستر فی الغسل عند الناس رقم:۲۸۱، مختصراً نحوه وفیه أیضاً، باب الغسل بالصاع ونحوه رقم:۲۵۳، وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب تسترالمغتسل بثوب ونحوه، رقم:۷۶۴، مختصراً، وفیه أیضاً باب صفة غسل الجنابة رقم: ۷۲۲، وأخرجه أبوداؤد فی سننه مطولاً فی کتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة، رقم: ۲۴۵، وأخرجه الترمذی فی جامعه فی کتاب الطهارة باب ماجاء فی الغسل من الجنابة، بنحوه مختصراً، وقال هذا حدیث حسن صحیح رقم: ۱۰۳، وأخرجه النسائی فی سننه فی کتاب الطهارة باب غسل الرجلین فی غیرالمکان الذی یغتسل فیه رقم:۲۵۳، وأیضاً فی کتاب الغسل والتیمم باب إزالة الجنب الأذی عنه قبل إفاضة الماء علیه بنحوه، مختصراً، رقم: ۴۱۸، أیضاً فی الکتاب نفسه، باب مسح الیدبالأرض بعدغسل الفرج:۴۱۹، وفیه أیضاً باب الاستتار عندالغسل، مختصراً رقم:۴۰۶، وفیه أیضاً باب الغسل مرة واحدة رقم: ۴۲۸وأخرجه ابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة وسننها، باب المندیل بعد الوضوء وبعد الغسل، مختصراً رقم:۴۶۷، انظرجامع الأصول رقم:۵۳۲۱وتحفة الأشراف رقم:۱۸۰۶۴.

**محمدبن يوسف**: دامحمدبن يوسف فريابي رحمه الله دي. دَدوی تفصیلي حالات «كتاب العلم باب ماكان النبي صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة والعلم كي لاينفروا» لاندې تيرشوی دی. [1]

**سفيان**: دامشهورامام محمدث سفيان بن سعيد ثوري رحمه الله دې. دَدوی حالات «كتاب الإيمان باب علامة المنافق» لاندې بيان کړې شوی دی. [2]

**الاعمش**: دامشهورمحدث سليمان بن مهران الاعمش رحمه الله دې. دَدوی حالات «كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيرشوی دی. [3]

**سالم بن ابي الجعد**: داسالم بن ابی الجعد کوفی رحمه الله دې. دَدوی حالات «كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال، عندالوقاع» لاندې تيرشوی دی. [4]

**كُريب**: داکريب بن ابی مسلم قرشي دې. دَدوی حالات «كتاب الضوء باب التخفيف في الوضوء» لاندې تيرشوی دی. [5]

**ابن عباس** رضي الله عنه: دادَحضورپاك دَ تره خوئی عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. دَدوی تفصیلي حالات «بدء الوحي باب كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، الحديث الرابع» لاندې تيرشوی دی. [6]

**ميمونة** رضي الله عنها: دادَ حضورپاك زوجه مطهره ام المؤمنين حضرت ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها ده. دَدې حالات «كتاب العلم باب السمر في العلم» دَويم حديث لاندې تيرشوی دی. [7]

## شرح حديث

**قوله:: توضأ رسول الله صلى الله عليه وسلم وضوءه للصلاة غير رجليه**: رسول الله صلى الله عليه وسلم (دَغسل جنابت نه وړاندې) دَ مانځه والا دَ اودس په شان اودس کړې دې. صرف خپې اونه وينځلې.

**قوله:: غير رجليه**: دَحضرت ميمونه رضي الله عنها په الفاظوکښې دَغسل جنابت په اودس کښې دَ خپو دَ وينځلو دَ روستوکولو صراحت دې اوداده حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت کړې شوې دَتيرشوی روايت مخالف هم دې. [8]

**دَعلامه شبيراحمدعثماني رحمه الله توجيه**: حضرت مولاناعلامه شبيراحمدعثماني رحمه الله دَحضرت عائشه رضي الله عنها اودَحضرت ميمونه رضي الله عنها دَ روايتونو توجيه بيانولوسره ليکي: "دَدې ترجمه په ذيل کښې امام

---

[1] اوګورئی: کشف الباری:۳/۲۵۴-۲۵۲
[2] اوګورئی کشف الباری:۲/۲۷۸.
[3] اوګورئی: کشف الباری:۲/۲۵۱.
[4] صحيح البخاري كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال، وعندالوقاع.
[5] صحيح بخاري كتاب الضوء باب التخفيف في الوضوء.
[6] اوګورئی: کشف الباری:۱/۴۳۷-۴۳۵.
[7] اوګورئی کشف الباری:۴/۴۲۲-۴۰۲.
[8] فتح الباري:۱/۴۷۷عمدة القاري:۳/۲۸۷.

بخاری رحمه الله دوه روایتونه نقل کړدي دی دحضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کښې دخپو د وینځلو جدا ذکرنشه دې اودحضرت میمونه رضي الله عنها په روایت کښې د خپود وینځلوجدا تذکره موجودده چه حضورپاك دغسل نه فارغ کېدونه پس خپې د هغه ځائی نه اخواکیدوسره او ونی وینځلې. حضرات فقهاء ددې دواړو روایتونود صحت د وجې نه دا په جدا جدا صورتونوباندې محمول کوی. کله دا صورت وی چرته چه غسل کولې شی هلته داستعمال شوی اوبود وتلو لار وی، په داسې صورت کښې به خپې اودس سره وینځلې شی اوکله دغسل په مقام کښې د استعمال شوې اوبو د وتو لار نه وی اواوبه هم هلته جمع کیږی. په داسې صورت کښې به خپې د غسل نه پس هم وینځلې شی. د دوو جدا صورتونو د روایت د وجې نه دامعلومیږی چه دحضرت عائشه رضي الله عنها په کورکښې به د اوبو د وتلو لار وی په دې وجه حضورپاك خپې وینځل روستونه کړې اود حضرت میمونه رضي الله عنها کره دغسل په مقام کښې د اوبووتلو لار نه وه په دې وجه حضورپاك خپلې خپې دهغه ځائی نه اخوا کیدوسره اووینځلې".(1)

**قوله: وغسل فرجه وما أصابه من الأذى**: اوحضورپاك خپل شرمګاه اووینځلو اوکومه ګندګی چه لګیدلې وه (هغه ئې اووینځله). وغسل فرجه: **وغسل فرجه** کښې واو دترتیب دپاره دې یانه دې یاد بل څه معنې دپاره مستعمل دې په دې باره کښې شراح حدیث مختلف توجیهات بیان کړی دی.

**اعتراض**: علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه که څوك دا اووائی چه د شرمګاه وینځل خود اودس نه وړاندې وی نو بیا په حدیث کښې اودس ولې مقدم کړې شوې دی؟

**دعلامه کرمانی رحمه الله توجیهات**: ددې اعتراض علامه کرمانی رحمه الله درې جوابونه ورکړی دی: ① د اودس د شرمګاه په وینځلوباندې مقدم کول واجب نه دی په دې وجه تقدیم اوتاخیر واقع کیږی. ② یادلته واؤ دترتیب دپاره نه دې (لهذا په دې سره شرمګاه وینځلوتاخیر لازم نه راځی) ③ یا واؤ حالیه دې (یعنی د مانځه والاد اودس په شان اودس ئې اوکړو په داسې حال کښې چه شرمګاه ئې اووینځلو) (2)

**دعلامه عینی رحمه الله په علامه کرمانی رحمه الله باندې نقد**: علامه عینی رحمه الله دعلامه کرمانی رحمه الله په دریواړو توجیهاتو باندې نقدکړې دې. هغه فرمائي چه هغه دا څنګه اووئیل چه د شرمګاه وینځل مقدم کول واجب نه دی. (حالانکه واجب دی) دهغه ددې قول هیڅ حیثیت نشته دې. (3)

اودهغه دا وینا چه دلته واؤ ترتیب دپاره نه دې دا تعسف دې (بې ځایه خبره) ده. داپخپله دهغه خلاف یودلیل دې څکه چه دهغوی په نیزخو واؤ اصل کښې د ترتیب دپاره راځی. حالانکه یومحقق هم ددې قائل نه دې. (4)

د علامه کرمانی رحمه الله واؤ حالیه ګرځول هم صحیح نه دی ددې هیڅ صحیح توجیه هم نه شی کیدې څکه چه حضورپاك شرمګاه وینځلوسره به څنګه اودس کړې وی؟ (5)

---

(1) فضل الباری:۲/۴۲۶.

(2) اوګورئی: شرح الکرمانی علی صحیح البخاری:۱/۱۱۲عمدة القاری:۳/۲۸۷ إرشادالساری للقسطلانی:۱/۴۸۹.

(3) عمدة القاری:۳/۲۸۷.

(4) عمدة القاری:۳/۲۸۷.

دَعلامه عینی رحمه الله توجیه: علامه عینی رحمه الله دَ واؤ باره کښې دا توجیه بیان کړې ده صحیح خبره داده چه واؤ دَاصل وضع په اعتبارسره مطلق دَ جمع دَپاره راځی نودَحدیث معنی دا شوه چه حضورپاک ﷺ اودس اوشرمګاه وینځلوعمل جمع کړې. (۱)بیا واؤ مطلق دَ جمع دَپاره کیدل دا سره دَدې چه علی التعیین دَ یوعمل په بل عمل باندې دَتقدیم مقتضی نه دې. لیکن په دویم روایت کښې دَدې صراحت راغلې دې چه حضورپاک اول شرمګاه اووینځلو بیائی اودس اوکړو لکه چه امام بخاری رحمه الله پخپله ((باب التستر في الغسل عند الناس)) کښې عبدالله ابن المبارك عن الثوری په طریق سره نقل کړې دی. په دې کښې اول لاسونه وینځل بیاشرمګاه وینځل او په دیوال باندې لاس مږل اوصفاکول اوبیا دَاودس کولوسره دَ خپو وینځل نقل دی. (۳)

چنانچه حضرت میمونه رضی الله عنها فرمائی: ((سترتُ النبي صلى الله عليه وسلم وهو يغتسل من الجنابة، فغسل يديه، ثم صبّ بيمينه على شماله، فغسل فرجه وما أصابه، ثم مسح بيده على الحائط، أو الأرض، ثم توضأ وضوءه للصلاة غير رجليه ثم أفاض الماء على جسده، ثم تنحى، فغسل قدميه)) (۴)

یعنی کوم وخت چه نبی کریم ﷺ دَ جنابت غسل کولو نوما دَهغوی پرده کړې وه. حضورپاك خپل لاسونه اووینځل بیائی په ښی لاس سره په ګس باندې اوبه اوبهیولې اوشرمګاه ئی اووینځلو، اوڅه چه په هغې باندې لګیدلې وو هغه ئی اووینځل، بیاخپل لاس په زمکه یا په دیوال باندې مږلوسره اووینځلو، بیادَمانځه دَ اودس په شان اودس اوکړو دَخپو نه علاوه، بیائی اوبه په خپل بدن باندې اوبهیولې بیا دَهغه ځائی نه اخوا شو او خپلې خپې ئی اووینځلې.

په دې روایت کښې ټول ا فعال په "ثم" سره بیان کړې شوی دی کوم چه په ترتیب باندې دلالت کوی. بیا چونکه بعض احادیث دَ بعض نورو وضاحت کوی (لهذا دَدې روایت دَ وجې نه ((ثم غسل فرجه)) باره کښې به داسې وئیلې شی چه دلته مطلق اودس او شرمګاه وینځل دواړه راجمع کړې شوی دی حالانکه دَترتیب مطابق دَ شرمګاه وینځل مقدم دی. (۵)

**قوله: فرجه**: دلته دَ فرج نه مراد عضومخصوص (اندام مخصوصه) دې علامه کرمانی رحمه الله فرمائی ((هذا دليل صحيح على صحة إطلاق الفرج على الذكر)) (۶)

**الاذی**: الأذی نه ((المستقذر الطاهر)) پاك خیری وغیره مراددې. (۷) علامه عینی رحمه الله دَ بعض خلقو داقول چه ((وما أصابه من الأذى)) نه نجاست مرادنه دې، دائی مکابره ګرځولې ده. (۸)

---

(۱) عمدة القاری:۳/۲۸۷.
(۲) عمدة القاری:۳/۲۸۷.
(۳) عمدة القاری:۳/۲۸۷ فتح الباری للعسقلانی:۱/۴۷۸ إرشادالساری: للقسطلانی:۱/۴۸۹.
(۴) رقم الحدیث:۲۸۱وقد مر تخریجه بالتفصیل، انظرص: ۱۷۴، حاشیة رقم:۷.
(۵) عمدة القاری:۳/۲۸۷إرشادالساری:۱/۴۸۹فتح الباری:۱/۴۷۸.
(۶) شرح الکرمانی:۱/۱۱۲عمدة القاری:۳/۲۸۷تحفة الباری:۱/۲۱۹.
(۷) عمدة القاری:۳/۲۸۷شرح الکرمانی:۱/۱۱۳.
(۸) عمدة القاری:۳/۲۸۷.

**قوله: :ثم أفاض عليه الماء ثم نحى رجليه فغسلهما**: بیا حضورپاك په خپل ځان باندې اوبه اوبهیولې بیا ئې هغه ځائی نه اخوا شو خپې ئې اووینځلې.
دَ تیرشوی حدیث په تشریح کښې داخبره تیره شوې ده چه ددې افاضه ماء نه مراد استیعاب غسل دې اوخپې روستو کولو سره بیا ئې هغه ځائی نه اخواکیدل او وینځلوتوجیهات هم بیان کړې شوی دی.

**قوله: :هذه غسله من الجنابة**: هم دغه دَ نبی کریم ﷺ دَ جنابت غسل وو. **هذه غسله**: هذه اسم اشاره دَ تانیث دپاره راوړلې شوې ده مشار الیه، الأفعال المذکوره دی. یعنی افعال مذکوره دَ حضورپاك دَ جنابت دَغسل صورت دې. (۱)

یا «**هذه صفة غسله**» تقدیردې یعنی مضاف محذوف دې. مطلب دا شوه چه دادَ رسول الله ﷺ دَ غسل جنابت صفت اوطریقه ده. دا دَ ابن عساکر رحمه الله توجیه ده.(۲)

دَ کشمیهنی رحمه الله په روایت کښې «**هذا غسله**» دې اسم اشاره دَ پاره دَ مذکرراوړلې شوې دَخبرمذکرکیدودَ وجې نه یعنی دادَ حضورپاك غسل جنابت دې.(۳)

**هذه غسله دَچاقول دې؟**: «**هذه غسله من الجنابة**» دادَ حضرت میمونه رضی الله عنها الفاظ نه دی بلکه دَ سالم بن ابی الجعد دَ طرف نه ادراج دې لکه چه محدث اسماعیلی رحمه الله ددې طرف ته اشاره کړې ده. خوزائده بن قدامه رحمه الله دَ اعمش رحمه الله نه په خپل روایت کښې دابیان کړې دې چه دادَ سالم بن ابی الجعدقول دې.(۴)

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه په حدیث کښې صراحتًا دَ وضوء قبل الغسل تذکره موجود ده.

**دَحدیث نه مستنبط شوې احکام**: ① دَغسل جنابت نه وړاندې شرمګاه وینځل. ② که په شرمګاه باندې څه نجاست لګیدلې وی نوهغه ختمول. ③ دَ غسل جنابت نه وړاندې په اودس کښې دَ خپو وینځل روستوکول. ④ دَغسل نه پس خپې وینځل.(۵)

امام بخاری رحمه الله دَ حضرت میمونه رضی الله عنها داروایت په کتاب الغسل کښې اته ځایونوکښې روایت کړې دې اوددې نه ئې مختلف مسائل جدا جدا ثابت کړی دی. دلته ددې روایت نه ئې «**وضوء قبل الغسل**» ثابت کړې دې. والله اعلم بالصواب.

---

(۱) شرح الکرمانی:۱/۱۱۳فتح الباری: ۱/۴۷۸عمدة القاری:۳/۲۸۸.
(۲) إرشادالساری:۱/۴۸۹فتح الباری:۱/۴۷۸.
(۳) فتح الباری:۱/۴۷۸عمدة القاری:۳/۲۸۷شرح الکرمانی:۱/۱۱۳إرشاد الساری:۱/۴۸۹تحفة الباری:۱/۲۱۹.
(۴) فتح الباری للعسقلانی:۱/۴۷۸عمدة القاری للعینی:۳/۲۸۸فتح الباری لابن رجب الحنبلی:۱/۱۴۱.
(۵) فتح الباری:۱/۴۷۸عمدة القاری:۳/۲۸۸.

# ۲-باب: غُسْلِ الرَّجُلِ مَعَ امْرَأَتِهِ

## دَ سړي خپلې ښځې سره (په يولوښى سره) غسل كول

**دَترجمة الباب مقصد:** دَامام بخارى رحمه الله دَ دې ترجمه نه دَ غرض اومقصد ډير احتمالات دى. علامه عينى رحمه الله علامه قسطلانى رحمه الله او شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمه الله دَ رائې مطابق امام بخارى رحمه الله په دې باب سره دَسړى اوښځې په يولوښى سره دَ غسل حكم بيانوى. (۱)

**دَحضرت شاه ولى الله رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى ((أي أنه جائز وفيه خلاف البعض)) (۲) يعنى دَعلماؤ په دې خبره كښې اختلاف دې چه دَ سړى خپلې ښځې سره غسل كول جائزدى كه نه؟ نو امام بخارى رحمه الله دَ عدم جوازقائليتوپاندې رد فرمائى. دَهغوى مقصد په دې ترجمة الباب سره دَدې جواز بيانول دى. دَ مولانا محمد ادريس كاندهلوى رحمه الله هم دغه رائې ده چه دَترجمة الباب مقصد داخودل دى چه دَ ښځې اوسړى په يولوښى سره په يوځائى غسل كول جائزدى. (۳)

**يواشكال:** دَ سړى اوښځې په يوځائى په يولوښى باندې طهارت حاصلولوتوجيه باندې دااشكال كيږى چه امام بخارى رحمه الله دامسئله ((باب وضوء الرجل مع امرأته)) كښې بيان كړې ده بيادلته دوباره دَدې دَ ذكركولوڅه ضرورت دې؟

**جواب:** دَدې جواب دادې چه امام بخارى رحمه الله په كتاب الوضوء كښې په يولوښى سره اودس كول ثابت كړې وو. اوس دلته دَ سړى اوښځې په يولوښى سره غسل كول ثابتوى. (نولكه چه هلته ئې طهارت صغرىٰ كښې اشتراك بيان كړې وو نودلته طهارت كبرىٰ كښې اشتراك بيانول مقصوددې.) (۴)

**دَ سړي اوښځې په يوځائى باندې غسل كولودَبيانولو وجه:** دَدې بيانولو ضرورت غالباً ځكه پيښ شو چه ابن ابى شيبه رحمه الله دَحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه نقل كړى دى ((أنه نهى أن تغتسل المرأة والرجل من إناء واحد)) (۵) يعنى هغوى په يولوښى سره دَ سړى اوښځې لامبل منع كړى دى.

دَدې حديث سندسره ددې چه صحيح دې ليكن امام بزار رحمه الله په سندحسن سره دَحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه دَدې جواز نقل كړې دې. چنانچه((كشف الأستار)) كښې دى ((أن النبى صلى الله عليه وسلم كان هووأهله أوبعض أهله يغتسلون من إناء واحد)) (۱) يعنى نبى كريم صلى الله عليه وسلم اودَهغوى كوروالا يابعض كور والا (ازواج مطهرات) به دَ يولوښى نه غسل كولو.

---

(۱) عمدة القارى:۲۹۰/۳،إرشادالسارى:۴۸۹/۱،تحفة البارى:۲۱۹/۱.

(۲) رسالة شرح تراجم أبواب صحيح البخارى للإمام الشاه ولى الله الدهلوى ص:۱۸،الأبواب والتراجم لصحيح البخارى لشيخ الحديث محمدزكريا الكاندهلوى ص:۶۰، الكنزالمتوارى:۱۹۰/۳.

(۳) الأبواب والتراجم للشيخ محمدإدريس الكاندهلوى ص:۲۵۷.

(۴) اوګورئى:فضل البارى:۴۲۶/۲.

(۵) الحديث أخرجه ابن أبى شيبه فى المصنف، كتاب الطهارة باب من كره ذلك: ۳۶۱/۱،رقم الحديث: ۳۸۶.

(۱) كشف الأستار كتاب الطهارة باب اغتسال ا لرجال والنساء من إناء واحد:۱۶۴/۱،رقم الحديث: ۳۲۴،المصنف لابن أبى شيبه مع تحقيق الشيخ محمدعوامه حفظه الله:۳۶۲/۱-۳۶۱.

**دَ دې روايت دَ رواتو توثيق:** علامه هيثمي رحمه الله فرماني «**رواه البزار ورجاله ثقات**» (۱)يعني بزار رحمه الله دَدې حديث روايت کړې او دَدې ټول راويان ثقه دي. دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل شوې دَ جواز والا روايت تائيد دَ نورو هم ډيرو احاديثو او آثارنه کيږي. «**كما قاله الشيخ محمد عوامه حفظه الله في تعليقاته على المصنف**» (۲) علامه طحاوي رحمه الله علامه قرطبي رحمه الله او امام نووي رحمه الله دَ سړي اوښځې په يولوښي باندې غسل کولو په جواز باندې اتفاق نقل کړې دې. (۳)علامه عيني رحمه الله دَ نهه صحابه کرامو رضي الله عنهم نه دَدې جواز نقل کړې دې په کوم کښې چه حضرت علي بن ابي طالب، حضرت ابن عباس، حضرت جابر، حضرت انس، حضرت ابوهريره، حضرت عائشه صديقه، حضرت ام سلمه، حضرت ام هاني او حضرت ميمونه رضي الله عنهم شامل دي. (۴)دَمذکوره بحث دَ تفصيل دَپاره **كتاب الوضوء باب وضوء الرجل مع امرأته وفضل وضوء المرأة** اوګورئي.

**دَ بعضې حضراتو توجيه:** بعض حضراتو دَ ترجمة الباب مقصد داخودلې دې چه امام بخاري رحمه الله په **كتاب الوضوء** کښې **وضوء من فضل المرأة** ثابت کړې وو. دلته **غسل من فضل المرأة** ثابتوي ځکه چه کله هغوي په يوځائې غسل کوي نوچه کوم وخت يوکس اوبه اخلي نوهغه اوبه به دَ بل دَ پاره فضل جوړيږي. (۵)

**دَ بعض حضراتو په توجيه باندې يونظر:** يوبعيدتوجيه داده ځکه چه دلته دَ فضل المرأة هيڅ تصريح نشته دې الايه چه څوك په زبردستئي سره دا ثابته کړي چه کله سړې اوښځه په يوځائې غسل کوي نو بهرحال دواړه به په يوځائې اوبوکښې لاس نه وهي کله به دَ يولاس وړاندې کيږي او کله دَ بل. اوس که دَ ښځې لاس اول پريوتلو نواوبه به فضل مرأة جوړې شي. دَدې قسم تکلفات ضرورت به هغه وخت وي کله چه بله څه صحيح توجيه ممکن نه وي. والله اعلم.

**دَ شيخ الحديث حضرت مولانامحمدزکريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث حضرت مولانا محمدزکريا کاندهلوي رحمه الله فرمائي «**والأوجه أن المصنف أشار بذلك إلى جواز نظر المرأة إلى عورة زوجها وعكسه**» (۶)اوجه داده چه دَامام بخاري رحمه الله مقصد ترجمة الباب نه دَ سړي اوښځې دَ يوبل شرمګاه کتلو جواز بيانول دي.

**دَزوجين دَ يوبل شرمګاه کتل:** دَ زوجين په يوځائې په غسل کولوکښې داخبره بعيده ده چه دَ يونظر دَ بل په شرمګاه باندې پرينوځي. حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې نقل کړي دي چه داؤدي دَ حديث باب نه دَ زوجين دَ يوبل شرمګاه ته دَ کتلو په جواز باندې استدلال کړې دې. (۷)

دَدې تائيد دَ ابن حبان رحمه الله دَ روايت نه هم کيږي چنانچه ابن حبان رحمه الله فرمائي: «**حدثنا محمد بن شعبه قال حدثني عتبة بن أبي حكيم أنه سأل سليمان بن موسى عن الرجل ينظر إلى فرج امرأته فقال: سألت عنها عائشة**

---

(۱) مجمع الزوائد:۱/۳۷۳كشف الأستار:۱/۱۶۴.

(۲) المصنف لابن أبي شيبة مع تحقيق الشيخ محمدعوامه حفظه الله:۱/۳۶۲.

(۳) فتح الباري:۱/۳۹۷عمدة القاري:۳/۱۲۶المنهاج للنووي:۳/۲۲۷.

(۴) عمدة القاري:۳/۱۲۶.

(۵) الأبواب والتراجم لصحيح البخاري ص:۶۰الكنز المتواري:۳/۱۹۰.

(۶) الأبواب والتراجم لصحيح البخاري ص:۶۰الكنز المتواري:۳/۱۹۰.

(۷) اوګورئي: فتح الباري:۱/۴۸۰.

**فقالت: كنت أغتسل أنا وحبهي صلى الله عليه وسلم من الإناء الواحد تختلف فيه أكفنا، وأشارت إلى إناء في البيت قدرستة أقساط» (١).**

يعني محمدبن شعيب رحمه الله واني چه ماته ابوحكيم رحمه الله اووئيل چه ماد سليمان بن موسى رحمه الله نه دسړي د ښځې شرمګاه ته دكتلو متعلق تپوس اوكړو نوهغوى اووئيل چه ماد عطاء رحمه الله نه پوښتنه اوكړه هغه اووئيل چه ماد حضرت عائشه رضي الله عنها نه ددې باره كښې تپوس اوكړو نوهغې اوفرمائيل چه ما او زما محبوب ﷺ به په يولوښي غسل كولو دكوم نه چه به مونږ وار په وار اوبه اخستلې او په كوركښې موجود د شپږ قسط په اندازه د يولوښي طرف ته ئې اشاره اوفرمائيله.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه داحديث په مذكوره مسئله كښې دنص حيثيت لرى.(٢) د ابن حبان رحمه الله د روايت نه دامعلومه شوه چه سړې او ښځه د يوبل شرمګاه ته كتلې شى.

**په مذكوره استدلال باندې يواشكال:** په دې استدلال باندې دا اشكال كيدې شى چه دابن ماجه او شمائل ترمذى په روايت كښې پخپله دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه ددې خلاف روايت دې. چنانچه هغه فرمائي «**ما نظرته أوقالت: مارأيت فرج رسول الله صلى الله عليه وسلم**» (٣)يعنى كله هم زما نظر دحضورپاك په شرمګاه باندې نه دې پريوتې. په يوبل روايت كښې دى «**مارأيت من رسول الله صلى الله عليه وسلمولارأي مني**» (٤) يعنى نه ماد رسول الله ﷺ شرمګاه ليدلې نه هغوى زما.

**د شيخ الحديث مولانازكريا رحمه الله جواب:** شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله ددې اشكال په جواب كښې فرمائي: «**يمكن الجمع بينهما بأن النفي للرؤية قصداً، وأما رواية الإثبات محمولة على وقوع النظر من غيرقصده كمايكون في صورة الاغتسال معاً**» (٥)يعنى په دواړو روايتونوكښې جمع ممكن ده په داسې توګه په يوځائې غسل كولوسره نظر پريوتل سره ددې چه مستبعدنه دې ليكن نبى كريم ﷺ اوحضرت عائشه رضي الله عنها په قصداً ددې نه احتراز كولو.

**مدعیٰ څنګه ثابته شوه؟:** اوس سوال دا پيداكيږى چه كله ئې د كتلونه ځان ساتلو نوبيا مدعیٰ يعنى د زوجين د يوبل شرمګاه ته كتل څنګه ثابت شو؟

**جواب:** ددې جواب هم هغه پورتنئ توجيه ده چه مدعیٰ اقرب حالت باندې نظركولوسره ثابتيږى يعنى چه كله سړې اوښځه په يوځائې ناست وى غسل كوى نودير زيات مستبعددى چه نظر پرينوځى،

---

(١) صحيح ابن حبان بترتيب ابن بلبان مع تحقيق الشيخ شعيب الأرنوؤط، كتاب الحظر والإباحة، رقم:٥٥٧٧وقال الشيخ شعيب الأرنوؤط: إسناده حسن

(٢) فتح البارى:١/٤٨٠.

(٣) الحديث أخرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب الغسل باب: النهى أن يرى عورة أخيه، رقم:٦٦٢، والترمذى فى الشمائل باب ماجاء فى حياء رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:١٦٣،رقم:٣٦٠،انظر تحفة الأشراف رقم:٧٨١٦.

(٤) اوګورئى جمع الوسائل فى شرح الشمائل باب ماجاء فى حياء رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:-٢١٧ ٢١٨،اداره تاليفات اشرفيه ملتان، أشرف الوسائل إلى فهم الشمائل اللهيتمى، باب ماجاء فى حياء رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٥٢١رقم:٣٤٤،الأبواب والتراجم لصحيح البخارى:ص٦٠، الكافى الشاف فى تخريج أحاديث الكشاف للحافظ ابن حجر رحمه الله وهوفى ذيل الكشاف سورة الأعراف (تحت آية رقم:٢١):٢/٩٤، ط:نشر البلاغة رقم: سوق القدس.

(٥) اوګورئى:الأبواب والتراجم لصحيح البخارى:ص:٦٠

نظر پريوځي. دا يوه بله خبره ده چه حضرت عائشه رضي الله عنها او نبي کريم ﷺ په عام توګه دَدې نه ځان ساتلو. والله اعلم بالصواب.

**دکتاب الغسل دَ ابواب په خپل مينځ کښې مناسبت:** علامه عيني رحمه الله دکتاب الغسل دَ ابواب په خپل مينځ کښې مناسبت باره کښې فرمائي «وجه المناسبة بين أبواب هذا الكتاب أعني: كتاب الغسل، ظاهر، لأن كلها فيما يتعلق بالغسل وما يتعلق بالجنب»[1] يعنې دکتاب الغسل په ابواب کښې په خپل مينځ کښې مناسبت بالکل واضح دې ځکه چه په دې کښې ذهريو تعلق غسل او جنابت اوددې سره متعلق امورو سره دې.

## الحديث الأول

۲۵۰- حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، مِنْ قَدَحٍ يُقَالُ لَهُ الفَرَقُ» [حديث باب [۲۴۷] [۶۹۰۸، وانظر: ۲۵۸]][2]

**ترجمه:** مونږ ته آدم بن ابي اياس بيان اوکړواووئيل مونږ ته ابن ابي ذئب بيان اوکړو، هغه دَ (ابن شهاب) زهري نه هغه د عروه نه هغه دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه هغې اووئيل ما او نبي کريم ﷺ (دواړو يوځائي) په خانك[3] په شان لوښي سره غسل کولو کوم ته چه فرق وئيلې شي.

## تراجم رجال

**ادم بن ابي اياس:** دا آدم بن ابي اياس عبدالرحمن بن محمد العسقلاني دې.[4] ابوالحسن دَدوی کنيت دې.[1]

---

[1] اوګورئې: عمدة القاري: ۲۹۰/۳.

[2] الحديث أخرجه البخاري أيضاً في كتاب الغسل، باب هل يدخل الجنب يده في الإناء أن يغسلها إذا لم يكن على يده قذرغير الجنابة، رقم: ۲۶۲-۲۶۱ وفي باب تخليل الشعر حتى إذا ظن أنه قد أروى بشرته أفاض عليه، رقم: ۲۷۳ وفي كتاب الحيض، باب مباشرة الحائض رقم: ۲۹۹، وفي كتاب اللباس، باب ماوطئ من التصاوير رقم: ۵۹۵۶، وفي كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب ماذكر النبي صلى الله عليه وسلم وحض على اتفاق أهل العلم وما اجتمع عليه الحرمان: مكة والمدينة وما كان بهما من مشاهد النبي صلى الله عليه وسلم والمهاجرين والأنصار، ومصلى النبي صلى الله عليه وسلم والمنبر والمقبر، رقم: ۷۳۳۹، وأخرجه مسلم في سننه في كتاب الحيض، في باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة، وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة، وغسل أحدهما بفضل الآخر رقم: ۳۱۹، وابوداؤد في الطهارة في باب مقدار الماء الذي يجزئ به الغسل رقم: ۲۳۸ والترمذي في سننه في كتاب اللباس ما جاء في الجمة واتخاذ الشعر، رقم: ۱۷۵۵ والنسائي في الطهارة في باب ذكر القدر الذي يكتفي به الرجل من الماء للغسل، رقم: ۲۲۹ وأيضاً فيه، باب ذكرالدلالة على أنه لاوقت في ذلك، رقم: ۲۳۲، وأخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب الطهارة باب الرجل والمرأة يغتسلان من إناء واحد، رقم: ۳۷۶، وانظر جامع الأصول في أحاديث الرسول رقم: ۵۳۳۳.

[3] دَ اوړو اغړلو دَ خاورو لوښې خانك، فيروز اللغات اردو جامع ص: ۱۰۳۶.

[4] د دوی مختصر حالات کشف الباري کتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده: ۶۷۸/۱ لاندې تيرشوی دی.

دَ هغه پلار ابوایاس په نوم کښې اختلاف دې. امام بخاری رحمه الله ابن ابی حاتم رحمه الله وغیره عبدالرحمن بن محمد نقل کړې دې. (۱)علامه مغلطائی رحمه الله فرمائی «قال أبواسحاق لحبال: اسم أبی إیاس عبدالرحمن، یعرف بناهیة»(۲) ابواسحاق الحبال اووئیل دَ ابوایاس نوم عبدالرحمن دې اوهغه دَ ناهیه په نوم سره مشهوردې. هغه اصلاً دَ خراسان اوسیدونکې وو. (۳)ابن حبان رحمه الله فرمائی «مولده بمرو الروذ» (۵)یعنی دَهغوی پیدائش ځائې مروالروز (خراسان) دې. په بغدادکښې لوئې شوې هم هلته ئې علم حدیث حاصل کړې. بیا هم ددې مقصد دَپاره کوفه بصره حجاز مصر اوشام سفرکړې. عسقلان ئې خپل وطن جوړکړو اوعسقلانی ورته وئیلې شی.(۶)

**دَهغوی شیوخ حدیث:** دَهغوی په استاذانو او شیوخ کښې ابن ابی ذئب، امام شعبه،شیبان النحوی، حمادبن سلمه، امام لیث، اسرائیل، مسعودی، ورقاء، ابان بن تغلب، اسماعیل بن رجاء، حبیب بن ابی ثابت، سلیمان الاعمش، سماك بن حرب، طلحه بن مصرف، عاصم بن بهدله، عبدالرحمن بن الاسود بن یزید، عدی بن ثابت، محارب بن دثار، نهال بن عمرو او دَدوی پلار یزیدبن عبدالرحمن الاردی وغیره دی. دَچانه چه به دوی حدیث روایت کول.(۷)

**تلامذه:** دَهغوی نه روایت کونکوکښې امام بخاری، امام دارمی اودَهغه ځوئې عبیدبن آدم، ابوحاتم، ابوزرعه الدمشقی، یعقوب الفسوی، یزیدبن محمدبن عبدالصمد، اسماعیل سمویه، ایوب بن سویدالرملی، ابواسامه، حماد بن اسامه، سفیان ثوری، عمروبن ابی سلمه تینسی، عیسیٰ بن ابراهیم العبدی، مخلدبن شداد، وکیع بن الجراح، یحیی بن زکریا بن ابی الحواجب، یحیی بن زکریا بن ابی زائده، یعلی بن عبیدطنافسی رحمهم الله وغیره دی، اسحاق بن اسماعیل رملی دَهغوی آخری شاګرد او روایت کونکی دی. (۸)

**جلالت شان اوتوثیق کښې دَ ائمه اقوال:** خطیب بغدادی رحمه الله فرمائی «کان أحمد عباد الله الصالحین»(۹) آدم بن ابی ایاس به دَالله تعالی په کثرت سره عبادت کونکودَ نیکوبندګانونه وو. امام ابوداؤد، ابن

---

(۱)تاریخ بغداد:۲۹/۷ رقم الترجمة:۳۴۹۲،کتاب الثقات لابن حبان التمیمی:۸۳/۵رقم الترجمة:۵۸۰تهذیب التهذیب ۱۹۶/۱ رقم الترجمة:۳۶۸.

(۲) التاریخ الکبیر جزء:۱ قسم:۲ رقم الترجمة:۳۹ الجرح والتعدیل:۱۹۵/۲رقم:۹۷۰.

(۳) إکمال تهذیب الکمال:۲۹/۲رقم الترجمة:۳۵۱.

(۴) کتاب الثقات:۸۳/۵رقم الترجمة:۵۸۰تاریخ بغداد:۲۹/۷رقم الترجمة:۳۴۹۲.

(۵) کتاب الثقات:۸۳/۵رقم الترجمة:۵۸۰وفی الجرح والتعدیل:۱۹۵/۲،وأصله من مروزی مولی بنی تمیم.

(۶) تاریخ بغداد:۲۹/۷ رقم الترجمة:۳۴۹۲،تهذیب الکمال:۳۰۱/۲،رقم الترجمة:۲۹۴.

(۷) دَنور تفصیل دَپاره اوګورئی: تاریخ بغداد:۳۰/۷-۲۹ رقم الترجمة:۳۴۹۲،کتاب الثقات لابن حبان التمیمی :۸۳/۵رقم الترجمة:۵۸۰تهذیب الکمال:۳۰۳/۲-۳۰۲رقم الترجمة:۲۹۴ تهذیب التهذیب:۱۹۶/۱رقم الترجمة :۳۶۸،إکمال التهذیب:۳۰/۲رقم الترجمة:۳۵۱، الجرح والتعدیل:۱۹۵/۲رقم الترجمة:۹۷۰.

(۸)دَنور تفصیل دَپاره اوګورئی: تاریخ بغداد:۳۰/۷-۲۹ رقم الترجمة:۳۴۹۲،کتاب الثقات لابن حبان التمیمی :۸۳/۵رقم الترجمة:۵۸۰تهذیب الکمال:۳۰۳/۲-۳۰۲رقم الترجمة:۲۹۴ تهذیب التهذیب:۱۹۶/۱رقم الترجمة : ۳۶۸،إکمال التهذیب:۳۰/۲رقم الترجمة:۳۵۱، الجرح والتعدیل:۱۹۵/۲رقم الترجمة:۹۷۰.

(۹) تاریخ بغداد:۳۰/۷رقم الترجمة:۳۴۹۲.

معین، ابوحاتم، خطیب بغدادی، امام عجلی، ابونعیم، ابن عبدالبر او سمعانی رحمهم الله دَدوی توثیق کړې دې. (۱)ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې دَ ده تذکره کړې ده.(۲) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه آدم بن ابی ایاس امیرالمؤمنین فی الحدیث دَامام شعبه په مجلس کښې دَحدیث لیکونکونه وو. امام شعبه به دَ حدیث املا کوله اوهغوی به په ولاړه لیکل. (۳)آدم بن ابی ایاس پخپله فرمائی چه مابه امام شعبه سره حدیث لیکل، زه په تیز لیکونکوکښې ووم خلقو به زمادَ لیکلې شوی نه نقل کولو.امام نسائی رحمه الله فرمائی ((لابأس به)) (۴)خطیب بغدادی رحمه الله فرمائی ((کان آدم مشهوراً بالسنة شدید التمسك بها والحض علی اعتقادها)) (۵)یعنی آدم بن ابی ایاس په سنت باندې په سختئی سره عمل کونکې اوپه دې باندې عقیده کولوکښې مشهوررو.دابواحمدبن عدی کتاب مشایخ بخاري کښې دی((کان من الزهاد)) (۶)

**دَخطیب بغدادی رحمه الله یوروایت:** خطیب بغدادی رحمه الله په خپل سندسره نقل کړې دې. "ابوبکر الاعین وائی چه زه آدم عسقلانی له راغلم اوهغه ته مې اووئیل چه دَامام لیث کاتب عبدالله صالح تاسو ته سلام کوی. نوهغه اووئیل چه هغه ته زما سلام مه وایه، ما وئیل ولې؟ نوهغه اوفرمائیل ځکه چه هغه قرآن ته مخلوق وائی. ما هغه ته اووئیل چه هغه دَدې نه توبه او رجوع کړې ده. اوخلقوته ئې دَخپلې رجوع خبر ورکړې دې. نوآدم بن ابی ایاس اووئیل که چرې داسې وی نو بیا هغه ته زما سلام وایه، راوی وائی ما هغه ته اووئیل چه زه بغداد ته تلل غواړم که ستاسو څه کار وی نو اوښایه. هغه وئیل او (یوکار دې) کله چه ته بغداد ته اورسې نو امام احمدبن حنبل له لاړشه اوزما سلام ورته وایه او ورته وایه ته دَالله تعالی نه اوویریږه، په کوم څیزکښې چه ته اخته ئې دَهغې په ذریعه سره دَالله تعالی قرب حاصل کړه، ځوك دې تا په ویره او پریشانئی کښې راګیرنه کړی، ان شاء الله ته ډیر زر جنت ته تلونکې ئې اوهغه ته اووایه: حدثنا اللیث بن سعد عن محمد بن عجلان، عن أبی الزناد عن الأعرج عن أبی هریرة: قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: من أرادکم علی معصیة الله فلاتطیعوه". یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی چه که څوك تاسو ته دَالله تعالی دَ نافرمانئی اووائی نودَهغه تابعداري مه کوه، راوی وائی زه امام احمدبن حنبل رحمه الله له جیل ته راغلم اوسلام مې اوکړو اوهغوی ته مې دَ آدم بن ابی ایاس سلام اورسولو اودَهغه پیغام او حدیث مې واؤرولو.

امام احمد رحمه الله خپل سر تیټ کړو بیائی خپل سر اوچت کړو اوونی فرمائیل رحمه الله حیاً ومیتاً، فلقد أحسن النصیحة الله تعالی دې په هغه باندې په دنیا او آخرت کښې رحم اوکړی هغه دَنصیحت حق اداکړو یعنی بهترین نصیحت ئې اوکړو. (۷)

---

۱) اوګورئی: تاریخ بغدادی:۷/۳۱-۳۰ ، الجرح والتعدیل:۲/۱۹۵تهذیب الکمال:۲/۳۰۴إکمال التهذیب:۲۸-۲/۳۱،تهذیب التهذیب:۱/۱۹۶.

۲) کتاب الثقات لابن حبان:۵/۸۳.

۳) تاریخ بغدادی: ۷/۳۰ تهذیب الکمال:۲/۳۰۴، الجرح والتعدیل:۲/۱۹۵.

۴) تهذیب التهذیب:۱/۱۹۶.

۵) تاریخ بغدادی: ۷/۳۰ ،إکمال التهذیب:۲/۳۰.

۶) إکمال تهذیب الکمال:۲/۲۹.

۷) تاریخ بغدادی:۷/۳۱ رقم الترجمة:۳۴۹۲، تهذیب الکمال:۲/۳۰۶-۳۰۵رقم الترجمة:۲۹٤.

**وفات**: ابوعلی الحسین بن القاسم الکوکبی وایی ابوعلی المقدسی خودلی دی چه کله دَ آدم بن ابی ایاس دَ انتقال وخت رانیزدې شو نوېوقرآن نی پوره لوستلو سره ختم کړو په داسې حال کښې چه هغوی په ارخ باندې ملاست وو. بیانی اوفرمائیل اې الله تاته دې زما دَ محبت واسطه وی ته په دې خطرناك وخت کښې زما ملګرې جوړشه، ما تاته هم ددې ورځې امید اوتمنا لرله. دَدې نه پس نی لاأله ألاالله اووونیل او روح ترې لاړو. رحمه الله رحمةً واسعةً. [1]

**ابن ابي ذئب**: داامام محمدبن عبدالرحمن بن المغیره بن الحارث بن ابی ذئب،قرشی عامری مدنی رحمه الله دې[2]دَدوی تفصیلی حالات کشف الباري کتاب العلم، باب حفظ العلم ددویم حدیث لاندې تیرشوی دی.[3]

**زهري**: [4]د امشهورمحدث امام ابوبکرمحمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن عبدالله بن شهاب بن عبدالله بن الحارث بن زهره بن کلاب بن کعب بن لؤی الزهری المدنی دی. [5]

**دَ حدیث استاذان**: دَامام زهری رحمه الله استاذان اوشیوخ کښې ابراهیم بن عبدالله بن حنین، ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف، اسماعیل بن محمدبن سعید بن ابی وقاص، ثابت بن قیس الزرقی، ثعلبه بن ابی مالك القرظی، جعفربن عمرو بن امیه الضمری، حبیب مولی عروة بن الزبیر، حرمله مولی اسامه بن زید، الحسن بن محمدبن الحنفیه، حفص بن عاصم بن عمر بن ا لخطاب، خارجه بن زید ثابت، خالدبن المهاجربن خالدبن الولید، سالم بن عبدالله بن عمر، السائب بن یزید، سعیدبن خالدبن عمرو بن عثمان بن عفان، سلیمان بن یسار، طاؤس بن کیسان، عامربن سعدبن ابی وقاص، عبدالله بن ابی بکر بن محمد بن عمرو بن حزم، عبدالله بن عبدالله بن عمر بن الخطاب، عبیدُالله بن عبدالله بن عمر بن الخطاب، عروه بن الزبیر، عطاء بن ابی رباح، علقمه بن وقاص اللیثی، علی بن الحسین بن علی بن ابی طالب، عمربن عبدالعزیز، القاسم بن محمد ابن ابی بکرالصدیق، نافع مولی ابن عمر، یزیدبن الاصم، ابو ادریس الخولانی رحمهم الله وغیره دی.[6]

**تلامذه**: ابن شهاب زهری رحمه الله نه روایت کونکوکښې ابان بن صالح، ابراهیم بن ابی علبه، اسامه بن زید اللیثی، ایوب السختیانی، بکربن وائل، زمع بن صالح، زیاد بن سعد، سفیان بن عیینه، عبدالله بن دینار، عبدالله بن عیسیٰ بن عبدالرحمن بن ابی لیلی، عبدالله بن مسلم ابن شهاب الزهری، عبدالرحمن بن خالد بن مسافر، عبدالرحمن بن عمرو الاوزاعی، عطاء بن ابی رباح، عقیل بن خالد الایلی، عمربن عبدالعزیز، عمروبن دینار، عمرو ابن شعیب، قتاده بن دعامه، لیث بن سعد، مالك بن انس، محمدبن عبدالرحمن بن ابی ذئب، محمدبن المنکدر، معاویه بن سلام، هشام

---

[1]) تاریخ بغدادی:۷/۳۲-۳۱ تهذیب الکمال: ۲/ ۳۰۵ ،إکمال التهذیب الکمال:۲/ ۳۱.

[2]) اوګورئی تهذیب الکمال:۲۵/ ۶۳۰.

[3]) کشف الباری:٤/ ٤٤٩-٤٤٢.

[4]) دَدوی مختصر حالات، کشف الباری:۱/ ۳۲۶بدء الوحی، باب کیف کان بدء الوحی الی رسول الله صلی الله علیه وسلم دَدریم حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی.

[5])اوګورئی:تهذیب الکمال:۲۶/ ٤۲۰-٤۱۹رقم الترجمة:۵۶۰۶ سیرأعلام النبلاء: ۵/ ۳۶۶رقم الترجمة: ۱۶۰.تهذیب التهذیب :۹/ ٤٤۵رقم الترجمة:۷۳۲.

[6]) اوګورئی: تهذیب الکمال:۲۶/ ٤۲۶-٤۲۰،تهذیب التهذیب:۹/ ٤٤۷-٤٤۶.

بن عروه، يحيى بن سعيد الانصاري، يوسف بن يعقوب بن ماجيشون، ابوسلمة العاملي، ابوعلي بن يزيد الايلي رحمهم الله وغيره دي. [1]

**مقام اوجلالت شان:** امام بخاري رحمه الله دَ ابراهيم بن منذر رحمه الله نه نقل کړي دي «**أنه أخذ القرآن في ثمانين ليلة**» يعنى ابن شهاب زهري رحمه الله په اتياؤشپو کښې قرآن کريم ياد کړو. [2]

ابراهيم بن سعد رحمه الله دَ خپل پلار نه نقل کوي: «**ماسبقنا ابن شهاب بشيء من العلم إلا أنه كان يشد ثوبه عند صدره، ويسأل عن مايريد، وكنا تمنعنا الحداثة**» [3] يعنى ابن شهاب رحمه الله زمونږ نه دَ يوځيزپه ذريعه په علم کښې زيات نه دې سوادَ دې نه چه هغه به خپله کپړه خپلې سينې سره تړله اوڅه چه به هغه غوښتل دهغې باره کښې به ئې تپوس کولو اوزمونږ کم عمرې به مانع کيدلو.

**دَامام زهري رحمه الله حالات هم دَهغوي په ژبه:** ما زهري نه واؤريدله هغوي فرمائيل چه زه لوئى شوم په داسې حال کښې چه زه هلك ووم اوماسره څه مال نه وو اونه دَ ديوان نه دَخليفه دَ طرف نه زماځه حصه مقرروه اوزه عبدالله بن ثعلبه بن صعير نه دَخپل قوم نسب زده کولو. يوسړي هغه له راغلواودَ طلاق دَ مسئلې پوښتنه ئې ترې اوکړه نوهغه دهغې جواب ورنه کړې شو اوسوال کونکي ته ئې دَ سعيدبن المسيب نه دَ معلومات کولودَپاره اووئيل. ما په خپل زړه کښې اووئيل چه زه داسې بوډا سړى سره يم چه دا وائى رسول الله ﷺ دهغه په سرياندې دَ شفقت لاس راښکلې دې او هغه دَ طلاق يوه مسئله هم نه پيژنې. ما ثعلبه پريخودو او دَ سائل سره سعيدبن المسيب له راغلو. «دې نه پس» زه عروه ، عبيدالله او دَ ابوبکر بن عبدالرحمن په صحبت کښې کيناستم تردې چه مادَ شريعت مسائل زده کړل.

بيا زه شام ته راغلم دَ پيشمنى په وخت دَ دمشق په جمات کښې داخل شوم نومقصوره «وړې کمرې» مخې ته يوه ډيره لويه حلقه قائم وه زه په هغې کښې کيناستم. خلقو زمادَ نسب باره کښې پوښتنه اوکړه نوماوئيل قريشي يم. نوهغوي تپوس اوکړو چه آيا تاته دَ ام ولد دَ حکم باره کښې څه علم شته؟ نوماهغوي ته دَ عمر بن الخطاب رضي الله عنه قول واؤرولو. هغوي اووئيل دادَ قبيصه بن ذؤيب مجلس دې هغه به په دې باره کښې ستا حمايت کوي. قبيصه تشريف راورو نوهغوي ته په دې باره کښې اوخودلې شو. هغه زما دَ نسب پوښتنه اوکړه اودَ سعيدبن المسيب اودهغه دَ ملګرو باره کښې ئې پوښتنه اوکړه. ما هغوي ته اوخودل نو هغه اووئيل زه به تا اميرالمؤمنين له بوځم. دَ سحر مونځ کولونه پس قبيصه واپس راؤګرځيدو نوزه هغه سره شوم. قبيصه اميرالمؤمنين عبدالملك له لاړو. زه دروازې سره لږساعت اودريدم تردې چه نمر راؤختلو. بيا خادم «اجازت ورکونکې» بهرراغلو اووئى وئيل چه چرته دې مدينى اوقرشي؟ ما وئيل چه زه دلته يم. دغه خادم سره زه اميرالمؤمنين له راغلم. ما اوکتل چه دَهغه مخې ته قرآن کريم پروت دې کوم چه اميرالمؤمنين بند کړې دې. دَاميرالمؤمنين په حکم باندې مصحف دَهغه ځائى نه اوچت کړې شو. هغه سره دَ قبيصه نه علاوه بل څوك ناست نه وو. ما هغوي ته سلام اوکړو. اميرالمؤمنين زما باره کښې تپوس اوکړو نوما ورته اووئيل چه زه محمدبن مسلم يم. دې نه پس ئې دَ ام ولدباره کښې تپوس اوکړو نوما دَ ام ولدباره کښې دَ حضرت عمر رضي الله عنه

---

[1] تهذيب الكمال:٢٦/٤٣١-٤٢٧،تهذيب التهذيب: ٩/٤٤٧.

[2] تاريخ الكبير:١/٢٢٠.

[3] ذيب الكمال:٢٦/٤٣٣.

حدیث بیان کړو. نوړ قبیصه طرف ته متوجه کیدوسره امیرالمؤمنین اوفرمائیل: دا د ټولو آفاق طرف ته اولیکئی. (۱)

محمدبن سعد رحمه الله د امام زهری رحمه الله تذکره اهل مدینه طبقه رابعه کښې کړې ده. (۲)سفیان بن عیینه عمرو بن دینار نه نقل کوی هغه فرمائی ما د زهری رحمه الله نه زیات صحیح حدیث بیانونکې نه دې لیدلی. (۳)هم دعمرو بن دینار رحمه الله نه نقل دی چه ما د زهری رحمه الله نه زیات څوك نه دی لیدلی چه درهم اودینار د هغه په نیز بې قیمت وی. دنانیر اودرهم دهغه په نیزد سوټونه زیات حیثیت نه لرلو. (۴) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه زهری رحمه الله په خلقوکښې د ښه حدیث او بهترین سندوالا دې. (۵)

**تدوین حدیث:** دتابعینو په زمانه کښې د تدوین حدیث عظیم الشان کارنامه سر ته رسونکو محدثینوکښې امام زهری رحمه الله نوم د ټولونه په سردې. عمربن عبدالعزیز رحمه الله په مدینه کښې خپل عامل ابوبکربن حزم رحمه الله اونورعاملان په دې خبره باندې ماموركړل چه هغوی دې د رسول الله ﷺ سنت راجمع کړی.

چنانچه ابوبکربن حزم رحمه الله او ابن شهاب زهری رحمه الله داعظیم کار په ښه طریقه سره سر ته اورسولو. خاص کر ابن شهاب زهری رحمه الله د جمع اوتدوین حدیث په سلسله کښې کوم خدمات سرته رسولی دی هغه د یوصاحب علم نه پټ نه دی.

ابن عساکر او نور مؤرخین اوعلماء کرامو د امام مالك رحمه الله نه نقل کړی دی چه هغوی فرمائیلی دی «**أول من دوّن العلم ابن شهاب**» (۶)یعنی دټولونه اول علم (حدیث) تدوین کونکې ابن شهاب رحمه الله دې. عبدالعزیز بن محمد دراوردی رحمه الله فرمائی «**أول من دوّن العلم وكتبه ابن شهاب**» (۷)یعنی د ټولونه اول علم (حدیث) تدون کونکې اولیکونکې ابن شهاب رحمه الله دې. ددې تصریحات نه معلومه شوه چه د ټولو نه اول حدیث جمع کونکې اومدون کولوشرف ابن شهاب زهری رحمه الله ته حاصل دې. ددې نه پس بیا علماء سلف د جمع اوترتیب سلسله جاری اوساتله.

**په امام زهری رحمه الله باندې د مستشرقینو اعتراضات او شبهات:** دامام زهری رحمه الله ثقاهت دیانت اوامانت باندې ائمه اسلام اتفاق کړې دې. مستشرقین نه د جرمنی یومتعصب یهودی "اګنس ګولډز یهر" د مسلمانانود حدیث ذخیره مشکوك ګرځولو په فاسد غرض په امام زهری رحمه الله باندې د حدیث د خان نه جوړولو تهمت اولګولو. دغه خبیث الباطن یهودی باطل ګمان دې چه د امام زهری رحمه الله د بنو امیه حکمرانانوسره تعلقات وو په دې وجه امام زهری رحمه الله دهغوی داغراض او خواهش موافق ډیر احادیث جوړکړل او خپل نوم سره ئې د ډیرو زیاتو احادیثومنسوب کولو اجازت ورکړو وغیره. ددې نه ګولډزیهر دا نتیجه اوویستله چه کله دومره ثقه راوی هم احادیث وضع کول نود نورو معامله خو بهرحال اهون ده لهذا په دې وجه د احادیثو موجوده ذخیره جعلی ده.

---

۱) یراعلام النبلا:۵/۳۳۰.

۲) الطبقات الکبری: ۴/۱۲۶.

۳) الجرح والتعدیل: ۸/۶۸رقم الترجمة:۳۱۸.

۴) تهذیب الکمال:۲۶/۴۳۵.

۵) سیر أعلام النبلا:۵/۳۳۵.

۶) تاریخ دمشق:۵۵/۳۳۴حملیة الأولیاء:۳/۳۶۳البدایة والنهایة: ۹/۳۵۸.

۷) تاریخ دمشق: ۵۵/۳۴۳. سیرأعلام النبلاء: ۵/۳۳۴إکمال تهذیب الکمال: ۱۰/۲۵۳.

**دَ ګولډزيهر په شبهاتو باندې رد:** دَ ګولډ زيهر يهودى مستشرق دا شبهات په بنيادى توګه سره بالکل غلط دى.دادَ يهودو اومستشرقينودَاسلام دښمنئى اودَاحاديثوذخيره شکمنه جوړولو په سلسله کښې کيدونکوکوششونو تسلسل دې.علماء اسلام په هره زمانه کښې په دې بې ځايه اعتراضاتو بالخلدې ښه پوره ردونه کړى اودَهغې ئى محققانه کافى اوشافى جوابونه ورکړى دى.

چنانچه ډاکټر مصطفى حسنى سباعى صاحب خپل کتاب «السنة ومكانتها في التشريع الإسلامي» کښې دَ ګولډزيهر په ټولواعتراضاتو باندې محققانه کلام کړې دې. ډاکټر صاحب ليکى چه نه ده معلومه امام زهرى رحمه الله غوندې ثقه ثبت حجت او صادق امام دَ بنواميه حکمرانانوسره تعلقات دَ بنواميه حکمرانانو دَ وضع حديث دَ پاره څنګه غنيمت اوګڼړلو. حالانکه دَ پخوانئى زمانې نه دَ علماء کرامو دا دستور پاتې دې چه عامة المسلمين دَ مصالح په خاطر، يا حکمرانانوته نصيحت کولو ياهغوى ته دَ يودينى خبرې تعليم ورکولو يادَهغوى دَاولاد تربيت کولوپه غرض سره به هغوى له تلل راتلل. خپل يوذاتى غرض حاصلول ئى مقصد نه وو.

«العقد الفريد» کښې ذکردى چه امام زهرى رحمه الله وليدبن عبدالملک له تشريف راوړو نوهغه اووئيل چه اهل شام مونږ ته يوحديث بيانوى. امام زهرى رحمه الله اووئيل کوم يوحديث؟ نووليداووئيل چه هغوى وائى «أن الله إذا استرعى عبداً رعيته، كتب له الحسنات، ولم يكتب له السيئات»يعنى کله چه الله تعالى يوبنده حاکم جوړوى نودَهغه نيکئى ليکلې کيږى اوبدئى نه ليکلې کيږى. امام زهرى رحمه الله اوفرمائيل دا حديث باطل دې. آيا يونبى چه خليفه هم وى هغه دَالله تعالى په نيززيات قابل اکرام احترام دې ياغيرنبى څوک چه صرف خليفه وى؟ نو وليدووئيل داسې نه ده بلکه چه کوم نبى خليفه وى هغه زيات دَ اکرام اواحترام قابل دې. نو امام زهرى رحمه الله اوفرمائيل الله تعالى خپل نبى داؤد عليه السلام ته مخاطب کولوسره اوفرمائيل ﴿ يَٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلۡنَٰكَ خَلِيفَةٗ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَٱحۡكُم بَيۡنَ ٱلنَّاسِ بِٱلۡحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ ٱلۡهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ لَهُمۡ عَذَابٞ شَدِيدُۢ بِمَا نَسُواْ يَوۡمَ ٱلۡحِسَابِ ﴾ (۱)نوچه کله الله تعالى خپل نبى چه خليفه هم دې ته دا تنبيه فرمائى نوستاڅه خيال دې چه دَهغه سرى باره کښې څوک چه صرف خليفه وى نبى نه وى؟

وليد اووئيل داخلق اهل شام مونږ زمونږ دَ دين باره کښې ګمراه کوى.(۲)غوراوکړئى چه دَ امام زهرى رحمه الله اوخليفه وليد په مينځ کښې تعلق سره امت ته چه کوم فکرى فائده حاصليږى هغه په کومه اندازه ده.

بل دا چه آيا امام زهرى رحمه الله دَ حکمرانانو مخکښې تيتيږى. آيا دَ دغه خلقو په خواهش باندې په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې دَ ځان نه احاديث جوړوى يا په مکمل خيرخواهئى سره دَ دروغژنوخلقو نه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ سنتو حفاظت کوى بلکه ددې نه زيات امام زهرى رحمه الله خليفه مسلمين دَ کذاب راويانو دَاثر لاندې پاتيکيدو سره استمرار في الظلم والباطل نه منع کوى.

---

(۱) سورة ص:۲۶، ترجمه: اې داؤد! ته مونږ ګرځولې نائب په ملک کښې بس ته حکومت کوه خلقوکښې په انصاف سره اومه زه د زړه په خواهش باندې بيابه هغه تا ګمراه کړي دَ لارې دَالله تعالى نه، بيشکه چه کوم خلق ګمراه کيږى دَالله تعالى دَ لارې نه دَهغوى دَپاره سخت عذاب دې په دې خبره باندې چه هغوى هيره کړه ورځ دَ حساب.

(۲) الجزء الأول ص:۶۰ الطبعة الجديدة.

دَ امام زهري رحمه الله يوه واقعه ده كومه چه ابن عساكر رحمه الله په خپل سندسره دَ امام شافعي رحمه الله نه نقل كړې ده. چه هشام بن عبدالملك دَ سليمان بن يسار نه دَالله تعالى دَ ارشاد ﴿ وَالَّذِيْ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ مِنْهُمْ لَهٗ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴾ (۱)دَ تفسير باره كښې تپوس كولوسره اووئيل چه ﴿ تَوَلّٰى كِبْرَهٗ ﴾ نه څوك مراددى؟ سليمان په جواب كښې اووئيل چه عبدالله بن ابى بن سلول، هشام دَ حق باره كښې دَهغه سختى او غيرت ازمينښت كولوډپاره اووئيل نه تاغلط بيانى اوكړه بلكه دې نه مرادعلى بن ابى طالب رضي الله عنه دې. سليمان اووئيل چه اميرالمؤمنين دَخپلې خبرې باره كښې ډيربهترپوهيږى. په دې كښې ابن شهاب زهري رحمه الله تشريف راوړو نوهشام هم دغه سوال دَهغه نه تپوس اوكړو. هغه هم په جواب كښې اوفرمائيل چه دې نه مراد عبدالله بن ابى بن سلول دې.

هشام دَ وړاندې په شان امام زهري رحمه الله ته هم اووئيل چه تادَ غلط بيانئى نه كارواخستو دې نه خوعلى بن ابى طالب رضي الله عنه مراددې. امام زهري رحمه الله په سخته غصه كښې اووئيل ولې زه دروغ وايم ته تباه شې په الله تعالى قسم كه څوك دَ آسمان نه آواز اوكړى چه الله تعالى دروغ وئيل جائز كړى دى نوما به بياهم دروغ نه وئيل. بيائى اوفرمائيل چه ماته فلانكى فلانكى حديث بيان كړو چه دې نه مراد عبدالله بن ابى بن سلول دې. امام شافعي رحمه الله فرمائى چه درباريانو يوشان دَ امام زهري رحمه الله باره كښې غصه كولو تردې چه هشام امام زهري رحمه الله ته اووئيل چه زه لاړشه ورځه زمونږ دپاره مناسب نه دى چه ستاپه شان دَ سړى خبره برداشت كړو. امام زهري رحمه الله اوفرمائيل چه دا ولې؟ ولې تازه په دې باندې مجبوركړم ياما ته په دې باندې مجبوركړې؟ چه اوس تا ماته دَتلو اووئيل؟ هشام اووئيل داسې خبره نه ده بلكه تامانه دوه لاكهه قرضه اخستې ده . امام زهري رحمه الله اووئيل چه ته اوتانه وړاندې ستا پلار دواړه په دې خبره باندې ښه پوهه يئى چه ما نه تانه اونه ستادَ پلار نه دامال قرض اخستې. بيا په غصه كښې دَهغه ځائى نه راؤوتلو. په دې باندې هشام اووئيل چه مونږ شيخ غصه كړو. بيا هشام دَ امام زهري رحمه الله دَ قرضونونه يولك دَ اداكولوحكم اوكړو. امام زهري رحمه الله ته اوخودلې شو نو هغه اوفرمائيل چه الحمدلله دادَ الله تعالى دَ طرف نه دى.(۲)داهغه واقعه ده چه ابن عساكر په خپل تاريخ كښې اته صدئى وړاندې دَامام شافعي رحمه الله په شان صدق وحق امام نه نقل كړې ده او په امام زهري رحمه الله باندې دَ اموى حكمرانانو په خاطر دَ حديث دَ وضع كولو تهمت لګونكې متعصب يهودى هغه وخت پيدا شوې هم نه وو. داواقعه ښائى چه دَ امام زهري رحمه الله تعلق دَخلفاء سره دَ څه دنياوى يا نفسانى غرض په خاطر نه وو بلكه خالص دينى اونصح باندې مبنى تعلق وو.

بيا داخبره هم دَغور قابل ده چه دَامام زهري رحمه الله په نسبت كه چرې دا اومنلې هم شى چه هغوى دَ اموى حكمرانانو ملګرتيا كړې ده نوبيا دې سره دَ دغه اوچت شان والا دَ امام څه مقصد كيدې شو؟ ولې هغه دَدوى نه دَمال طلبګار وو؟ هيڅ كله نه ځكه چه دې مستشرق يهودى پخپله دعمرو بن دينارنه دَ امام زهري رحمه الله باره كښې نقل كړې دى چه دَ درهم اودينار نه لوئى هيڅ څيز دَهغوى په نيز اهون نه وو لكه درهم اودينار دَهغوى په نيز دَ سوتو په شان وو. ولې امام زهري رحمه الله دَهغوى نه دَ شان شوكت غوښتونكې وو؟ حالانكه پخپله معترض دامنى چه په پوره امت اسلاميه كښې دَامام زهري رحمه الله شهرت خورشوې وو. دَدومره شان شوكت نه پس امام زهري رحمه الله ولې دَنور څه شان شوكت غوښتونكې وو. كله چه امام زهري رحمه الله نه دَ شان شوكت طالب وو نه دَ مال دولت طالب وو اودَهغوى

---

۱) سورة النور:۱۱.

۲) السنة وكانتها فى التشرع الإسلامى ص:۲۰۱.

دینی غیرت اوبهادری هم مسلم ده نوچه بیا نه دَهغه دَ شان شوکت طلب نه دَ مال طلب اونه دَځه منصب خواهش نوولې هغه دَ امویانوسره دَخپل دین سودا کولوسره دَ حماقت اوبې وقوفتیا مرتکب کیدوسره په مسلمانانوکښې خپله نیك نامی او شهرت ورکول غوښتل؟.

مستشرق ګولډزیهر دَ بنوامیه دور حکومت منظر کشی په ظلم اوستم سره کولوسره هغوی ظالمان ګرځوی اووائی چه دَمدینې متقی اوپرهیزګار علماء به بنوامیه سره محاربه کول اودَهغوی نه ډډه کول اختیارول. خو مونږ په دې باندې پوهیږو چه امام زهری رحمه الله په مدینه کښې لوئې شوې اودَ مدینې دَ شیوخ اوعلماء نه ئې کسب فیض کړې. دَسعید بن مسیب رحمه الله دَ مرګه پورې دَهغه په مجلس کښې ناست دې. امام مالك رحمه الله چه به کله هم مدینې ته تشریف راوړو دَهغوی نه به ئې استفاده کوله. پنځه دیرش کالو پورې مدینې اوشام ته تلو راتلو.

که چرې دَ ګولډزیهر خبره دَ حقیقت مطابق وی نودَ مدینې اوشام علماء هغه ولې ناخوښه نه کړو. که هغه دَ امویانودَ پاره دروغ وئیلې وو نوبیا دَمدینې اوشام علماؤ دَهغه دَدې عمل تکذیب ولې اونه کړو. دَامام زهری رحمه الله شیخ چه دَعبدالملك حکومت طاقت اوعظمت په خاطرکښې نه راوستلو هغه دَزهری رحمه الله نه دَ خلاصی اظهارولې اونه کړو؟ کومه یوه داعیه وه چه هغې دادَ حق ویونکی علماء په خاموشئ باندې مجبورکړل؟ ولې هغوی ویریدل؟ اودا علماء دَ نقد رجال په سلسله کښې دَخلیفه نه واخله دَمعاشرې دَ یوعام سړی پورې دَچانه هم نه ویریدل نوولې هغوی دَامام زهری رحمه الله نه ویریدل؟

دَ بنوامیه دَ دور علماء پریږده دَ بنوعباس په حکومت کښې علماؤ په امام زهری رحمه الله باندې ولې نقداونه کړو. علماء هم پریږدئی دَ بنوعباس انصار او اعوان څنګه چه دَ بنوامیه خلفاء امراء اودَهغوی دَ معاونین خبر اخستې دې نو هغوی په امام زهری رحمه الله باندې ولې اعتراض اونه کړو؟ دوی هم پریږدئی په علماء جرح اوتعدیل کښې امام احمدبن حنبل، یحیی بن معین، امام بخاری، امام مسلم، ابن ابی حاتم رحمهم الله وغیره چه دَ ﴿وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ﴾ عملی اوحقیقی تصویرونه وو هغوی ولې خاموش پاتې وو اوبیا کله چه دا نقد هم دَ حکومت بنوامیه دَ یودیر لوئی اومشهور شخصیت سره متعلق وی.دَمدینې منورې دَعلماؤ اوشیوخ خاص کر دَامام زهری رحمه الله شیخ سعیدبن مسیب رحمه الله خاموشی بیا دَ علماؤ اونورو ډیرو زیاتو علماؤ دَ امام زهری رحمه الله نه روایت کول، دَ امام زهری رحمه الله دَ اومویانو سره دَ ژور تعلق نه باوجود دَعباسیانو په دورکښې دَ جرح اوتعدیل علماؤ دهغوی توثیق کول وغیره ولې په دې خبره باندې ډیرلوئی دلیل نه دې چه امام زهری رحمه الله دَ مستشرق یهودی ګولډزیهر دَ شبهاتو نه بری اودَ هغه دهرقسم بدې وینا نه ارفع، کذب ووضع حدیث اودَاهل ظلم وباطل نه ممالات وغیره ټولو الزاماتونه ډیر زیات اوچت او بالا دې.(۱)

**دَحدیث لاتشدالرحال دَ وضع الزام:** دَ ګولډ زیهرګمان باطل دې چه خلیفه عبدالملك «قبة الصخرة» څکه جوړه کړې وه دې دَپاره چه دَدې په ذریعه دَ اهل شام او عراق اودَ حج اوکعبه په مینځ کښې یو حائل اوحاجز جوړشی اوچه خلق دَ حج بیت الله دَ زیارت دَپاره دَتللو په ځائی دَ بیت المقدس دَ دې ګنبد دَ زیارت دَپاره راځی. دَدې مقصد دَپاره دَ رائی عامه هوارولو په غرض داسې احادیث وضع کړې په کوم سره چه دَبیت المقدس عظمت اوشان ښکاره شی دې دَپاره چه خلق هلته په حج باندې تیارکړې شی. دَدې مقصد دَ تکمیل دَپاره عبدالملك دَ امام زهری انتخاب اوکړو. دَهغه په وینا باندې

---

(۱) السنة ومکانتها فی التشریع الإسلامی ص:۲۰۰-۲۰۳.

امام زهري هغه احاديث وضع کړل. چنانچه «لاتُشَدُّ الرِّحَالُ اِلّا اِلیٰ ثَلٰثَةِ مَسَاجِدَ» والا حديث هم دَدوى په سندسره مروى دى.[1]

هغه وائى چه کله داحديث دَهغه زمانې دَتاريخى حالاتو په رڼاکښې کتلې شى نوداموضوع معلوميږى ځکه چه هغه وخت په دمشق باندې عبدالملك بن مروان حکومت وو او په مکه مکرمه کښې دَعبدالله بن زبير رضي الله عنهما خلافت قائم وو. فريقين کښې جنګ شروع شوې وو دکوم په وجه چه عبدالملك بن مروان يوکال حج هم موقوف کړې وو. ددې نه پس دَهغه خواهش دا وو چه دَ حج مناسك دَ مکې مکرمې نه واړوى دَ شام او بيت المقدس طرف ته راوړى. دَعامو خلقو دَ سوچ راګرځولودپاره ئى دَ بيت المقدس فضيلت سره متعلق احاديث وضع کړل دې دپاره چه په مزه مزه خلق دَهغه ځائى په حج باندې تيارکړې شى. دَدې مقصددپاره هغه دَ امام زهرى رحمه الله انتخاب اوکړو چه دَ عبدالملك قاضى وو اوهغه وخت دَ عامو علماؤ په خلاف حکومت سره دَهغه دوستانه تعلقات وو. غرض دا چه امام زهرى رحمه الله دَ عبدالملك په ويناباندې احاديث وضع کړل. دَدې دليل دادې چه دَ بيت المقدس سره متعلق ټول احاديث هم دَ زهرى رحمه الله نه روايت دى اوهغه دا احاديث دَ ممانعت حج دَ فتنه نه پس بيان کړې وو.

په دې باندې ګولډ زيهر دادليل پيش کړو چه دَ بيت المقدس په فضائل باندې څومره احاديث دى هغه ټول دَامام زهرى رحمه الله په سندسره دى اوزهرى رحمه الله دَ ممانعت حج دَ دغه فتنه نه پس بيان کړى دى.

**دَ ګولډزيهر دَ شبهاتو جواب:** دګولډ زيهر دَ اعتراض علماؤ ردکړې دې اودَدې ئى ډيرجوابونه ورکړى دى.

**رومبې جواب:** ثقه مؤرخين ابن عساکر، طبرى، ابن اثير، ابن خلدون اوابن کثير وغيره په دې خبره باندې متفق دى چه «قبة الصخرة» وليدبن عبدالملك جوړکړې وو نه چه عبدالملك. دَ ثقه مؤرخينو په يوروايت کښې دَ ګولډ زيهر دَ باطل ګمان په شان يوروايت هم داسې نه دې چه عبدالملك بن مروان «قبة الصخرة» تعمير اوکړو چه خلق دَ حج بيت الله دَ تلو په ځائى دَدې ځائى مخ اوکړى اوکه چرې داسې کيدله نودابه يقيناً دَ تاريخ اسلامى يوه ډيره لويه او اهم حادثه کيدله. اومؤرخين چاچه دَ اسلامى تاريخ معمولى واقعات هم دَ قلم بندکولونه ډډه نه ده کړې هغوى به خامخا ددې تذکره کوله. دا يو غيرمعقول امر دې چه يوه داسې اهم او لويه واقعه دَمؤرخينو مخې ته راغلې وى او هغوى دَ دې نه سترګې پټې کړې وى داسې نه شى کيدې. البته دَ علامه دميرى کتاب کتاب الحيوان کښې په يو ضعيف روايت کښې دى چه دا عبدالملك جوړکړې وو اوخلق به دَعرفه په ورځ هغې سره اودريدل. که چرې داخبره دَ ضعف او ثقه مؤرخينو دَ مخالفت نه باوجود هم اومنلې شى نوبياهم په دې کښې داسې څه اشاره هم نشته دې چه عبدالملك خلق دَ حج نه منع کولودپاره دا جوړکړې وو. البته دَخلقو دَعرفه په ورځ دغه ګنبدسره اودريدل دَهغوى ذاتى فعل وو. فقهاء اسلام ددې دَمکروه کيدو صراحت فرمائيلې دې.

غوراوکړئي چه يوشى دَ بيت الله دَ متبادل په توګه جوړول اوخلق دَعرفه په ورځ هغې سره دَ حجاج په شان بغيرد چادَ وينا کولوپخپله اودريدل دې دپاره چه دَ حاجيانودَمشابهت دَ وجې نه دوى هم دَهغوى په اجر اوثواب کښې شريك شى. په دې دواړو لاسونوکښې ډير فرق دې. بيا دَ وقوف داعمل په ډيرو

---

[1]) سياتى تخريجه.

زيات اسلامى ښارونو كښې رائج وو «قبة الصخرة» سره په وقوف باندې منحصر نه وو بلكه خلقو به دَ عرفه په ورځ په تولو ښارونو كښې دَ حجاج دَ مشابهت په غرض سره وقوف كولو.(۱)

**دويم جواب:** دا واقعه څنګه چه ګولډزيهربيان كړې ده هغه صريح البطلان ده. ځكه چه دَ يوځيز تعمير په داسې نيت سره كول چه خلق بيت الله پريږدى او هلته حج اوكړى صريح كفردې. عبدالملك دَدې صريح كفرڅنګه ارتكاب اوكړو حالانكه عبدالملك به دَ كثرت عبادت دَ وجې نه «حمامة المسجد» په لقب سره يادولې شو.بل دَ عبدالملك بن مروان مخالفينو په هغوى باندې نور ديرزيات اعتراضات هم كړى دې خوچاهم دَهغه تكفيرنه دې كړې اونه «قبة الصخرة» دَ تعميرڈ وجې نه هغه ته بدې ردې ويلې.كه دَمعترض په خبره كښې دَ يو شان څه صداقت وې نومخالفينو به دَ تولو نه وړاندې په عبدالملك باندې دې اعتراض كولوسره مشهور كولو.(۲)

**دريم جواب:** د اهم يوتاريخى حقيقت دې چه دَامام زهرى رحمه الله پيدائش ۵۱ يا ۵۲ هجرى كښې شوې اودَ عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما شهادت واقعه ۷۳هجرى كښې پيښه شوې نولكه دَ امام زهرى رحمه الله عمرهغه وخت على اختلاف القولين ۲۲يا ۲۳ كاله وو نوآيا دامعقول خبره ده چه هغه وخت په امت كښې امام زهرى رحمه الله ته دومره شهرت اومقبوليت حاصل شوې وو چه مسلمانانودَهغه وضع كړې شوې يوداسې حديث قبول كړو په كوم كښې چه هغه دَ كعبه په ځائې «قبة الصخرة» بيت المقدس كښې دَحج دعوت وركوى؟(۳)

**څلورم جواب:** دَ ګولډزيهر دَ باطل ګمان څلورم جواب دادې چه تاريخى نصوص په يقينى توګه باندې ښائى چه دَ عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په زمانه كښې دَامام زهرى رحمه الله خونه دَ عبدالملك سره څه پيژندګلو وه اونه ئې هغه ددې نه پس كتلې دې.دَعلامه ذهبى رحمه الله اوابن عساكر رحمه الله مطابق امام زهرى رحمه الله دَعبدالله بن الزبير رضي الله عنهما دَشهادت نه څوكاله پس ۸۰يا ۸۲ هجرى كښې په رومبى ځل عبدالملك بن مروان سره ملاؤشو. هغه وخت امام زهرى رحمه الله خوان وو. عبدالملك دَهغه امتحان واخستوبيائې هغه ته نصيحت اوكړو چه هغه دې لاړشى دَانصارو په كورونوكښې دې علم حاصل كړى. دَدې تاريخى شهادت نه پس دَ يهودى مستشرق داګمان څنګه صحيح كيدې شى چه امام زهرى رحمه الله دَخپل دوست عبدالملك دَ خوشحالئى دَپاره دَ بيت المقدس حديث وضع كړو دې دَپاره چه خلق به دَعبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په زمانه كښې هلته حج له راځى؟(۴)

**پنځم جواب:** دَدغه متعصب يهودى مستشرق دَباطل ګمان پنځم جواب دادې چه حديث «لاتشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد» صرف دَ امام زهرى رحمه الله تفردنه دې بلكه كبار محدثينودَده نه علاوه په نورو مختلف طرق سره هم دَدې تخريج كړې دې.

چنانچه امام بخارى رحمه الله دَ امام زهرى رحمه الله دَ طريق نه علاوه دادَ حضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه نه نقل كړې دې. امام مسلم رحمه الله په دريو طرق سره دا روايت نقل كړې دې.يو دَامام زهرى رحمه الله او دوه دَهغه نه

---

(۱) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص: ۲۰۴-۲۰۳.
(۲) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص: ۲۰۴-۲۰۳.
(۳) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص: ۲۰۴.
(۴) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص: ۲۰۴.

علاوه جریرعن ابن عمیرعن قزعة عن ابی سعید اوابن وهب عن عبدالحمید بن جعفرعن عمران بن ابی انس عن سلمان الاغرعن ابی هریرة رضی الله عنه په طریق سره نقل کړې دې.[1]

**شپږم جواب:** دَمتعصب یهودی اعتراض شپږم جواب دادې چه «لاتشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد» والا حدیث امام زهری رحمه الله دَ خپل شیخ سعید بن مسیب رحمه الله نه روایت کړې دې. که چرې امام زهری رحمه الله دَ اموییین دَ خوشحالولودَ پاره دَ سعیدبن مسیب رحمه الله طرف ته نسبت کولوسره داحدیث وضع کړې وې نوهغه به هم کله خاموشي نه اختیاروله. حالاتکه سعیدبن مسیب رحمه الله ته اموییین په تکلیفونو رسولو کښې څه کمې نه وو پریخودې اودَ سعیدبن مسیب رحمه الله انتقال هم دَحضرت عبدالله بن الزبیر رضی الله عنهما دَ شهادت نه ۲۰کاله پس ۹۳هجری کښې شوې وو نوبیاداڅنګه کیدې شی چه هغه دومره دَ اوږدې مودې پورې په دې خاموش پاتې شوې وی اوداهم یومسلم حقیقت دې چه حضرت سعیدبن مسیب رحمه الله دَحق خبرې په بیانولوکښې دَ اوچتو غرونونه هم زیات قوت لرلو او حق خبره کولوکښې دَ یوملامت کونکی ملامتیا په خاطر کښې نه راوستله.

**اووم جواب:** فرض کړه که مونږ دا اومنوچه امام زهری رحمه الله داحدیث دَ عبدالملک بن مروان دَ خوشحالولودَپاره وضع کړې وو نوبیابه هم دَ اعتراض کونکی مقصد حاصل نه شی څکه چه دَ معترض دَباطل ګمان مطابق عبدالملک غوښتل چه خلق دې دلته دَ حج دَپاره راشی اوپه دې حدیث کښې «قبة الصخرة» دَ څه فضیلت صراحت سره نه دې بیان کړې شوې. دَدې حدیث اودې نه علاوه دَ بیت المقدس سر متعلق نور ټول صحیح احادیثو حاصل دادې چه په بیت المقدس کښې دَ مونځ اداکولو فضیلت دې اوددې زیارت دَ یومتعین وخت دَ تعیین نه بغیر فضیلت دې. فی الجمله ددې ثبوت پخپله دَقرآن مجید نه هم کیږی. په دې کښې اودَ معترض په باطل ګمان کښې دِ زمکې او آسمان فرق دې.[2]

**اتم جواب:** علماء کرامو دَ حدیث «لاتشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد» تصحیح کړې ده. دَدې بیت المقدس او قبة الصخره فضائل کښې بیان کیدونکی دَ دروغو روایاتو سره هیڅ تعلق نشته دې. اوپه دغه مکذوب روایاتوکښې یوهم دَ امام زهری رحمه الله نه مروی نه دې.

په دې روایاتوباندې علماؤ نقدکړې دې اوفرمائیلی دی چه «کل حدیث فی الصخرة فهوکذب» یعنی دَ قبة الصخره دَ فضیلت باره کښې بیان کیدونکی ټول روایات دروغ دی. نورفرمائی چه دَ بیت المقدس دَ فضیلت باره کښې صرف درې احادیث صحیح دی. ① یوحدیث «لاتشد الرحال إلا إلى ثلاثة مساجد».[3]

---

[1]) سیأتی تخریج هذه الطرق.

[2]) السنة وکانتها فی التشرع الإسلامی ص:۲۰۵.

[3]) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه عن الزهری فی کتاب فضل الصلاة فی مسجد مکة والمدینة، باب فضل الصلاة فی مسجد مکة والمدینة رقم الحدیث:۱۱۸۹، ومسلم فی صحیحه عن الزهری وغیره، کتاب الحج، باب فضل المساجد الثلاثة، رقم الحدیث:۱۳۹۷، وابوداؤد فی سننه، کتاب المناسک، باب ماجاء فی إتیان المدینة، رقم الحدیث:۲۰۳۳، والترمذی فی جامعه، أبواب الصلاة، باب ماجاء فی أی المساجدأفضل، وقال: هذاحدیث حسن صحیح رقم الحدیث:۳۲۶-۳۲۵،وابن ماجه فی سننه عن الزهری وغیره، کتاب إقامة الصلوات، باب ماجاء فی الصلاة فی مسجد بیت المقدس، رقم الحدیث:۱۴۱۰-۱۴۰۹،والنسائی فی سننه عن الزهری، کتاب المساجد [باب] ما

② دویم حدیث «سئل عن أول بیت وضع فی الأرض، قال: المسجد الحرام، قیل ثم ماذا؟، فقال: المسجد الاقصی» (۱)

③ دریم حدیث «إن الصلاة فیه تعدل سبع مائة صلاة فی غیره» (۲)

**دَ احادیثو خپل طرف ته دَ نسبت اجازت ورکولو شبه:** گولدزیهر یهودی مستشرق په امام زهری ﷫ باندې یواعتراض دا کړې دې چه هغه خپل طرف ته نسبت کولوسره به دَهرقسم احادیثو بیانولو اجازت ورکولو. چنانچه ابراهیم بن ولید اموی دَ احادیثو یوه صحیفه واخستله اودَامام زهری ﷫ په خدمت کښې حاضرشو او عرض ئې اوکړو چه دادَ سماع په بنیاد باندې هغه ته دَ نشر کولواجازت ورکړه. نوامام زهری ﷫ بغیردَ څه تردد اجازت ورکولوسره اوفرمائیل: «من یستطیع أن یجیزك بها؟» یعنې زمانه علاوه څوك تاته ددې دَ اجازت ورکولوهمت کولې شي؟ لکه چه دغه شان دَ ابراهیم اموی په صحیفه کښې لیکلې شوې دا احادیث مرویات زهری ﷫ گرځولوسره په روایت کولو کښې کامیاب شو.

**اولنې جواب:** دَدې شبه رومبې جواب دادې چه ابن عساکر ﷫ دَ امام زهری ﷫ نه دَ ابراهیم دَسماع صراحت کړې دې نولکه دا صحیفه پیش کول دَ ابراهیم هم دَ خپل شیخ امام زهری ﷫ نه اوریدلی احادیث پیش کولوسره اجازت غوښتلودَ قبیل نه دی. دَ محدثینو په اصطلاح کښې دې ته مناولة وائی. ابن صلاح په خپله مقدمه کښې «أنواع تحمل الحدیث» لاندې لیکلی دی چه شاگرد دَ خپل شیخ په خدمت کښې یوداسې کتاب پیش کړی چه هغه دَ شیخ نه اوریدلی دی نودَدغه صحیفې جائزه اخستلو اودَتامل نه پس که چرې اوفرمائي چه داته زماطرف ته منسوب کولوسره بیانولې شې. نودې ته عرض مناولة وائیلی شی. امام حاکم ﷫ فرمائی چه دَ ډیروزیاتو متقدمینو په نیز مناوله هم سماع ده. دَامام زهری ﷫ نه علاوه امام مالك، امام ربیعه، یحیی بن سعید، مجاهد اوسفیان رحمهم الله وغیره نه هم دغه حکایت کړې شوې دې. (۱)

**دَ مناوله مثال:** ایوب وائی چه مونږ به دَ امام زهری ﷫ خدمت علم پیش کولو. عبیدالله بن عمر وائی چه مادَ امام زهری ﷫ په خدمت کښې یوکتاب راوړلو هغه دَدې جائزه اخستلونه پس اوفرمائیل چه زه تاته دَدې روایت اجازت درکوم. دَامام زهری ﷫ شاگردانو به په کثرت سره دغه شان کتاب پیش کولوسره اجازت اخستلو اوامام زهری ﷫ به دَ پیش کړې شوې کتاب جائزه اخستلونه پس دَهغې اجازت ورکولو. لهذا دَ ابراهیم بن ولید اموی واقعه به هم یقیناً دَداسې قبیل نه وی لکه چه دَابن عساکر په روایت سره دَ دې تائیدهم کیږی. باقی پاتې شوه داخبره چه ابراهیم دَخپل طرف نه څه

---

تشدالرحال إلیه من المساجد، رقم الحدیث:۷۰۱، انظر جامع الأصول: رقم الحدیث:۶۹۹۴،۹۸۹۵،۹۸۹۴، راجع تحفة الأشراف، رقم:۱۳۲۸۳،۱۳۱۳.

(۱) الحدیث اخرجه البخاری فی صحیحه کتاب أحادیث الأنبیاء باب، رقم الحدیث:۳۳۶۶، وباب قول الله تعالی ﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمَانَ نِعْمَ الْعَبْدُ إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ (ص:۳۰)، رقم الحدیث:۵۲۰، والنسائی فی سننه، کتاب المساجد، ذکر أي مسجدوضع أولاً، رقم الحدیث:۶۹۱، انظرجامع الأصول رقم الحدیث:۶۸۸۱.

(۲) باب فضل بیت المقدس، والصخرة، وعسقلان، وقزوین:۱/۱۵۳، جنة المرتاب بنقد المغنی عن الحفظ والکتاب للشیخ أبی حفص عمر بن بدر الموصلی، تصنیف أبواسحاق الحوینی، دارالکتاب العربی، بیروت، الطبعة الثانیة: ۱۴۱۴ه، ۱۹۹۴م.

(۳) مقدمة ابن صلاح، ص:۸۹، اختصار علوم الحدیث، ص:۱۴۱.

احاديث جوړولوسره صحيفه مدون کړه بياني دَ امام زهري رحمه الله نه دَ هغې دَ روايت اجازت اوغوښتلو اوامام زهري رحمه الله دَ هغې اجازت ورکړو نوداداامام زهري رحمه الله په شان دَ جليل القدر امام نه مستحيل دی دَ چا امانت صدق او ضبط چه په پوره امت مسلمه کښې معروف دې.[1]

**دويم جواب**: دويم جواب دادې چه معترض دلته دَ تحريف نه کار اخستې دې. دَ امام زهري رحمه الله اصل قول کوم چه ابن عساکر نقل کړې دې دَهغې الفاظ دادي: «من يجيزك بها غيري؟» اوپه دې کښې دَ څه اشکال خبره نشته دې ځکه چه داامام زهري رحمه الله نه علاوه خپل شاګرد ابراهيم ته دَدې احاديث کوم چه صرف هغه دَ زهري رحمه الله نه اوريدلي وو بل چا اجازت ورکولې شو. داخبره هم دَ ډيرو محدثينونه روايت شوې ده که چرې امام زهري رحمه الله نه وې نو ډيرزيات احاديث به دَنقل کولونه پاتې کيدل. پخپله امام مسلم رحمه الله دَدې خبرې اعتراف کړې دې چه هغه لس کم سل احاديث داسې نقل کړې دی چه صرف داامام زهري رحمه الله نه روايت شوې دی. نو په دې بنيادباندې به دَ امام زهري رحمه الله دَ قول مطلب داشي چه زما نه علاوه بل چاته دَدې احاديثو علم دې چه هغوی تاته دَدې اجازت درکړې؟ دَدې دامطلب هيڅ کله نه دې چه زما نه علاوه تاته څوك دَ حديث دَ وضع کولو دَاجازت جرات نه شي کولې.

**دويم جواب**: معترض چه دَ کوم ابراهيم بن وليد اموي واقعه بنياد جوړولوسره اعتراض کړې دې دَ هغه نه محدثينو يوروايت هم نه دې نقل کړې. اونه دَ جرح اوتعديل په کتابونو کښې دَ هغه څه تذکره شته نه په ثقات کښې اونه په ضعفاء کښې. نوبيا هغه احاديث چرته دی دَ کوم دَ بيان کولوچه امام زهري رحمه الله اجازت ورکړې وو. دَ حديث په کوم يوکتاب کښې دی؟ اوچاهغه نقل کړی دی؟ هغه صحيفه چرته ورکه شوه چه دَ تاريخ په يوکتاب کښې هم اوس موجودنه ده؟[2]

**په کتابت حديث باندې دَ مجبوره کولوشبه**: ګولډ زيهر دَاامام زهري رحمه الله قول «إن هؤلاء الأمراء أكرهونا على كتابة أحاديث» يعنې دې امراء مونږ دَ احاديثو په کتابت باندې مجبورکړو نه دا اعتراض رااوښکلو چه امام زهري رحمه الله په دې کښې هغه خطرناك اعتراف کړې دې چه هغه دَ امراء په مجبوره کولو سره احاديث ليکل. لکه چه هغه په امت کښې دَخپل مسلمه شهرت په وجه باندې دَ بنواميه حکمرانانو خواهشاتو ته عملي جامې اچولو کوشش کړې دې.

**جواب**: دَ امام زهري رحمه الله صداقت اوجراءت دوه واقعات مونږ وړاندې بيان کړی دی چه هغه دَ حکامو دَ خواهشاتو پوره کولونه څومره لرې وو. اودَ دغه تاريخي واقعاتونه داهم معلومه شوې ده چه امام زهري رحمه الله هيڅ کله دَهغه خلقو نه نه وو چه دَ بنواميه دَ حکمرانانو په خواهشاتو پوره کولو باندې تياروو. باقي پاتې شوه خبره دَ امام زهري رحمه الله دَ قول نومعترض دَهغې يوه ټکړه پيش کولوسره قصداً دَدې بالکل برعکس مفهوم اخذ کړې دې. صحيح او پوره واقعه لکه چه ابن عساکر رحمه الله او ابن سعد رحمه الله نقل کړې ده هغه داسې ده چه امام زهري رحمه الله به خلقو ته دَ احاديثو املاء نه ليکله بيا زباني بيان به نې کولو دې دَپاره چه خلق دَهغې په يادولو کښې خپل دَ يادولو قوت په کار راولي اوصرف دَ حديث په کتابت باندې اکتفااونه کړي. هشام بن عبدالملك اصرار اوکړو چه امام زهري رحمه الله دَهغه خوئې ته څه احاديث املاء کړي دې دپاره چه دَهغه دَحافظې امتحان واخستلې شي. چنانچه په دې اصرار باندې امام زهري رحمه الله دَهغه خوئې ته څلورسوه احاديث املاء کړل. بيادَ هشام نه واپس راغلو

---

[1] السنة ومكانتهافى التشريع الإسلامي، ص:٢٠٦.
[2] المرجع السابق:ص:٢٠٧.

نوخلق ئې مخاطب كړل په اوچت آواز ئې اوفرمائيل «يأيها الناس إنا كنا منعناكم أمراً، قد بدلنا الآن لهؤلاء وإن هؤلاء الأمراء أكرهونا على كتابة الأحاديث، فتعالوا أحدثكم بها، فحدثهم بالأربعمائة الحديث» يعنې اې خلقو موږ تاسو دَ حديث دَ املاء نه منع كړي وئې. اوس موږ پخپله املاء اوكړه، اودې امراء په موږ باندې املاء كولوسره يوځو احاديث په كتابت باندې مجبوركړو. لهذا راشئ چه تاسو ته هم هغه يوځو احاديث واؤروم. چنانچه بيائې هغه څلورسوه احاديث بيان كړل.

دادې دَامام زهرى رحمه الله دَ قول صحيح تاريخى روايت دكوم نه چه دې مستشرق دَخپلې مرضئ اعتراض اوشبه پيدا كولو مذموم كوشش كړې دې. غوراوكړئ چه اصل واقعه اودَ معترض بيان كړې شوې اعتراض كښې څومره فرق دې چه مؤرخينو خو الاحاديث وئيلوسره صرف دَ څلورو سوو يو مخصوص واقعه په كوم كښې چه دَ املاء تذكره ده بيانوى خو معترض دې ته احاديث وئيلوسره مطلقاً دَ ټولو احاديثو په وضع باندې محمول كړې دى. آيا داڅه علمى امانت دې چه دَ الاحاديث نه الف لام حذف كولوسره أحاديث جوړ كړې شى او بيا قول دَهغې دَ پس منظر نه اخوا كولوسره دَخپلې مرضئ اعتراض راښكلې شي. اودَ امام زهرى رحمه الله په فضيلت اومنقبت باندې مشتمل واقعه سره په هغوى باندې دَامراء په خاطر دَ حديث دَ وضع الزام اولګولې شى. حالانكه اصل روايت موږ ته ښائى چه امام زهرى رحمه الله په دې خبره باندې هم راضى نه وو چه يوعمل دكوم نه چه عام مسلمانان منع كړې شوې وو اوس دَ امراء په اصرار باندې هغه پوره كړې دې نوبيا ولې عام مسلمانان دَدې نه محروم كړې شى. چنانچه بيائې خلقو ته هغه څلور سوه احاديث املاكړل. دادې دَامام زهرى رحمه الله اخلاص ديانت ثقاهت كوم چه دَ دې مستشرق علمى امانت دَ امراء دَپاره دَ وضع حديث په الزام كښې بدل كړو. فشتان بينهما. (١)

**اموى حكمرانانو له دَ تګ راتګ شبه:** مستشرق ګولډ زيهر په امام زهرى رحمه الله باندې يوالزام داهم لګولې دې چه هغه دَ هغه خلقونه وو چاسره چه اتفاق نه شوكيدې څكه چه هغه دَ وخت حكومت سره كاركول جائز ګڼړل اواموى حكمرانانو سره دَ هغوى په محلونو كښې دَ تګ راتګ نه څان نه ساتلو بلكه په كثرت سره به بادشاه له تلو راتلو.

**جواب:** داخبره دَ چا نه پټه نه ده چه دَ علماء سلف دَ خلفاء او امراء په مجالس كښې دَ يودينى ضرورت دَ وجې نه تګ راتګ سره دَهغوى په امانت اوديانت باندې څوك څه پيغورنه شى كولې اونه داونيلى شى چه هغوى دَ خلفاء دَ خواهشاتو په وړاندې خاموش وو. دَ امام زهرى رحمه الله او بنواميه دَ خلفاؤ په مينځ كښې تعلق دَدنيا اودَهغې دَ معمولى څيزونو په بنيادباندې نه وو بلكه دَ هغوى تعلق دَهغه علماؤ په شان وو چاته چه دَ خپل علم اودين په وجه عزت اومرتبه حاصله وه. امام زهرى رحمه الله كله هم دَ يوحق خبرې په وئيلو كښې دَ بادشاه اوسلطان په وړاندې ويره نه كوله.

پخوانئ زمانه كښې صحابه كرام رضي الله عنهم اموى خليفه حضرت معاويه رضي الله عنه په خدمت كښې اوتابعين دَ نورو اموى خلفاء له ورتلل. امام ابوحنيفه رحمه الله به خليفه منصور له ورتللو اودَ امام ابويوسف رحمه الله خو هارون الرشيدسره پوخ تعلق وو. دَدې باوجود چاهم دې حضراتو ته صرف خلفاؤ سره تعلق او دَ تګ راتګ دَ وجې نه مطعون كړى نه دى اونه بادشاهانوسره تعلق ساتل او ناستې پاستې دَ وجې نه دَوى دَ عدالت دَ مرتبې نه راښكته كړى دى. (٢)

(١) السنة ومكانتهافى التشريع الإسلامى، ص:٢٠٨-٢٠٧.

(٢) المرجع السابق ص:٢٠٨.

**دَ حجاج په ملګرتياكښې دَ حج الزام:** ګولډزيهر دَ امام زهرى رحمه الله نه متنفركولو اودَهغوى قلت تدين ثابتولودَپاره په هغوى باندې دا الزام لګولې دې چه هغه دَ حج دَ پاره دَ حجاج ملګرتيا اختيار كړې وه.

**جواب:** دا هم صرف دَالزام نه سوا هيڅ نه دى. امام زهرى رحمه الله دَ حج دَپاره هيڅ كله هم دَ حجاج ملګرتيانه ده اختيار كړې. بلكه هغه دَعبدالله بن عمر رضي الله عنهما سره وو. كله چه دَ حج په موقع دَهغه حجاج سره ملاقات شوې وو. امام عبدالرازق په خپل مصنف كښې دَامام زهرى رحمه الله نه نقل كړى دى چه عبدالملك بن مروان حجاج ته حكم وركړې وو چه هغوى دې په مناسك حج كښې دَعبدالله بن عمر رضي الله عنهما اقتداء اوكړى. دغه شان حجاج دَعرفه په ورځ هغوى ته ګزارش كړې وو چه كله دَهغوى دَ تګ اراده وى نوخبردارې دې اوكړى. امام زهرى رحمه الله وائى چه كله ابن عمر رضي الله عنهما اوسالم روان شو نوزه دې دواړو حضراتوسره ووم. هغه وخت زما روژه وه په دې وجه دَ ګرمئى سختى ډيره محسوس كيدله. ددې نه معلومه شوه چه په حقيقت كښې امام زهرى رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنهما په ملګرتياكښې وو نه چه هغه دَ حجاج په ملګرتياكښې حج كړې وو. (١)

**دَ هشام دَاولاد دَ تربيت الزام:** ګولډ زيهر په امام زهرى رحمه الله باندې يوالزام داهم لګولې دې چه هشام هغه دَخپل ولى عهد مربى مقرر كړې وو.

**جواب:** دا اعتراض هم دَ ګولډ زيهر دَتاريخ نه دَ جهالت نتيجه ده ځكه چه دَ هشام خپل ځوئى دَهغه ولى عهدنه وو بلكه دَهغه دَ رور وليد ځوئى دَهغه ولى عهد وو لكه چه دَهغه رور يزيدبن عبدالملك ددې وصيت كړې وو. آو دومره خبره ضرور ده چه هشام كله حج اوكړو نوهغه وخت ئى امام زهرى رحمه الله دَخپلو بچو مربى مقرر كړې وو. ددې نه علاوه بله هره خبره دَ امام زهرى رحمه الله طرف ته منسوب كول تاريخى غلطى ده.

مزيد په دې نه دى معلوم چه امام زهرى رحمه الله كه چرې دَهشام دَ بچو تربيت كړې دې نو په دې سره په هغه باندې څه الزام راتلې شى؟ ولې دا بهترنه ده چه دَهغوى دَ تربيت ذمه وارى په يوبدچلن دَ الله او دَ هغه دَ رسول صلى الله عليه وسلم دَ نافرمان په ځائى امام زهرى رحمه الله سرته اورسولو. هم دَدغه تربيت نتيجه ده چه دَهشام بچو دَ اسلام په نشرواشاعت كښې لوئى كردار اداكړو او دَ روم په ښاريوكښې ئى ډيرغزوات اوكړل. ولې دَ دې تولو سهره دَ هغوى دَ شيخ امام زهرى رحمه الله په سرباندې ښه نه ښكارى؟ خاص كر چه مؤرخينو ددې خبرې صراحت كړې دې چه امام زهرى رحمه الله پخپله هم يوجليل القدر مجاهد وو. يوځل ئى شام ته دَ غزوه په غرض سره تشريف راوړو نودَ مجاهدينو والالباس ئى اچولې وو. (٢)

**دَ قضاء عهده قبلولوباندې اعتراض:** دَخپلې تيلئى ټول غشى چلولونه پس په آخره كښې ګولډزيهر په امام زهرى رحمه الله باندې دا اعتراض اوكړو چه هغه دَ يزيد ثانى په زمانه كښې دَ قضاء عهده قبوله كړې وه. كه چرې هغه پرهيزګاره اومتقى عالم وې نوهغه له دَ امام شعبى رحمه الله او نورو صلحاؤ په شان ددې نه لرې تختيدل پكاروو.

**جواب:** آياڅوك دَعقل سليم والاسړې به دا اعتراض صحيح تسليم كړى؟ ځكه چه ترننه پورې چاهم دَ قضامنصب سبب دَ جرح اوعدالت كښې دَ تهمت سبب نه دې ګنړلې. او رسول الله صلى الله عليه وسلم پخپله حضرت

---

(١) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص:٢٠٨.

(٢) المرجع السابق:ص:٢٠٩.

على ﷺ حضرت معاذ بن جبل ﷺ اوحضرت معقل بن يسار ﷺ وغيره قاضيان جوړ کړي وو او ډير زيات تابعين عظام د بنو اميه وغيره قاضيان جوړشوی. امام شريح، ابو ادريس خولانی، عبدالرحمن بن ابی ليلي، قاسم بن عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود وغيره رحمهم الله او نورو ډيرو زياتو اکابرو د بنواميه د حکومت په زمانه کښې قاضيان پاتې شوی وو او په دوی کښې بعض د حجاج په زمانه کښې قاضيان مقررشوی خوچا هم دوی په دې باندې متهم کړی نه دی. باقی پاتې شوه خبره د امام شعبی رحمه الله چه هغه د قضا نه تختيدلې وو نو په دې کښې هم د مغالطه نه کار اخستې شوې دې ځکه چه حقيقت دادې چه د ابن اشعث د فتنې يخيدونه پس د حجاج په زمانه کښې امام شعبی رحمه الله د يزيد بن عبدالملك قاضی مقررشوې وو. معترض د امام شعبی رحمه الله د دې روستونی عمل نه ولې سترګې پټوی حالانکه دا زيات د دې خبرې مستحق دی چه د دې نه استدلال اوکړې شی.

باقی پاتې شوه خبره د هغه د دغه باطل ګمان چه متقيان او صالحان د قضا عهده قبلولونه ځان ساتی اودا به ئی د سقوط عدالت سبب ګنړلو. په دې باندې په دليل کښې داحديث پيش کوی «من ولى القضاء أوجُعل قاضياً، فقد ذبح بغير سكين»(١) يعنی چه څوك قاضی جوړشو يا هغه قاضی جوړ کړې شونو البته هغه بغيرچاړه ذبح کړې شو.

د دې جواب دادې چه د اسلاف نه نقل شوې داخبره خلاف واقع ده ځکه چه اسلافو د دې خبرې صراحت فرمائيلې دې چه د ظالم اوجابرحکمرانانو د طرف نه د قضا منصب قبلول بغيرد څه اختلاف نه جائزدی اود حديث مطلب دادې چه په دې کښې په دې خبره باندې قاضی راتيارکړې دې چه پخپله دې د قضامنصب نه غواړی اوکه قاضی جوړکړې شو نوبيا دې د عدل نه کار واخلی.

د حنفيه نه صاحب د هدايه د سلطان جائر د طرف نه د قاضی جوړولو د جواز په صراحت سره بيان کړې دې.(٢)

ابن العربی مالکی ليکلی دی چه ولايت د قضا فرض کفايه دې که چرې حاکم وخت ټولو خلقوته د دې د قبلولودعوت ورکړو اويوهم قبول نه کړو نوټول به ګناهګار وی.(٣)

ابن فرحون په تبصرة الحکام کښې ليکلی دی چه هغه ټول احاديث په کومو کښې چه د قضاباره کښې تخويف او وعيد راغلې دې نوهغه د ظالمانو قاضيانو باره کښې اود هغه جاهلانو باره کښې دې چه بغير د علم نه دامنصب قبلوی د دغه دوارو قسمونو باره کښې وعيدراغلې دې (نه چه مطلقاً)(٤)

د دې تصريحاتونه معلوميږی چه معامله داسې نه ده څنګه چه ده مردار ګولډزيهر د هغې منظرکشی کړې ده چه قبوليت قضا عدالت ساقط کوی. بلکه دايوعظيم عزت دې د الله تعالی په نازل کړې شوو احکاموسره د خلقو معاملات فيصله کولوباره کښې د رسول الله ﷺ صرف د نيابت معامله د هغې د شرافت او فضيلت د پاره کافی دی. البته بعض اسلافو د قضاد قبوليت نه تيخته هم اختيارکړې ده او په دې باره کښې ئی مختلف قسم تکليفونه هم برداشت کړی دی ليکن دا ټول د دې وجې نه نه چه په

(١) والحديث أخرجه أبوداؤد فى سننه، كتاب القضاء باب فى طلب القضاء رقم الحديث:٣٥٧١، ٣٥٧٢ والترمذی فى جامعه، وقال: هذا حديث حسن غريب من هذاالوجه. أبواب الأحكام باب ماجاء عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فى القاضی، رقم الحديث:١٣٢٥.

(٢) الهدايه مع فتح القدير:٦/٣٦٤.

(٣) شرح ابن العربی على سنن الترمذی:٦/٦٦

(٤) تبصرة الحكام فى أصول الأقضية ومناهج الأحكام:١/١٠-٩.

دي سره عدالت ساقط كيږي يا دا دَ جرح سبب دي بلكه دا صرف اوصرف دَ ورع اوزهد دَ وجې نه وو دي دپاره چه كله هغوی دَ الله تعالى سره ملاقات اوكړى نو چه په هغوی باندې دخلقو دَ معاملاتو څه ذمه واري نه وي.
ابن العربي رحمه الله دبعض صحابه كرامو رضي الله عنهم دَ قضاءعهده نه قبلولو وجه بيانولوسره ليكلى دى چه سړي كوم نيك اعمال كوى دَهغې باره كښې هغه له ويريدل پكاردى چه كيدى شى دَدې عمل په پوره كولوكښې څه كمې شوې وي اوعمل دَ دغه څيزونونه بچ كول غواړى په كوم سره چه هغه دَ عدم قبوليت ښكار كيږي. داخودهغه طاعات باره كښې چه صرف دَ بنده خپل ځان سره خاص دى نوبياڅه خيال دې دَهغه اعمالوباره كښې چه حقوق الناس سره متعلق وي او بنده په هغې كښې اخته وي. لهذا دتقصيرويره اوعمل دَعدم قبوليت دَ اسباب نه بچ كول په هغه كښې دَ اولنى نه زيات كيدل پكاردى.
الحاصل ددې تول تفصيل نه دَ گولډ زيهر يهودى مستشرق دَ امام زهرى رحمه الله باره كښې اوچت كړې شوى ټول اعتراضات اوشبهات باره كښې تفصيلى بحث راغلې دې په كوم كښې چه گولډزيهر دا كوشش كړې وو چه ددې تهمتونو او اباطيل په ذريعه دَ امام زهرى رحمه الله ثقاهت ختم كړى. دې دپاره چه دَ حديث دَ ټولوكتابونو نه اعتماد اوچت شى. فرض كړه كه دَ هغه دا دعاوى تسليم كولې شوى نويقيناً دَ ذخيره حديث نه به دَخلقو اعتماد پورته كيدلو ليكن الحمدلله په تيرو شوو صفحاتوكښې بيان كړې شوى تفصيل نه دَدغه ټولو شبهاتو اواباطيل حقيقت واضح شو چه دَهغه حيثيت دَ تارعنكبوت يعنې دَ جولاگى دَ جالې دَ تار نه زيات هيڅ نه دى.[1]

**په حديث كښې دَ ادراج بحث:** [2]

---

[1]) السنة ومكانتها فى التشريع الإسلامى ص: ۲۱۰-۲۰۹.

[2]) ادراج يوڅيز په بل څيزكښې داخلولواوضم كولوته وائى. دَ علماء حديث په اصطلاح كښې مُدرج هغه حديث ته وائى دَ كوم سياق سندچه بدل كړې شوى وى يابغيردَ فصل نه غيرحديث دَحديث په متن كښې داخل كړې شوې وى. دَمدرج دوه قسمونه دى: (۱) مدرج الإسناد (۲) مدرج المتن، دَمدرج الإسناد علماء متعدد صورتونه بيان كړى دى دَهغې خلاصه داده چه:

① چه راوى يوحديث دَ محدثينودَ يوداسې جماعت نه واوري دكوم سندونه چه مختلف وي، بيا هغه دَدې اختلاف سند بيانولونه بغير داحديث دَدغه ټولونه هم په يوسندسره روايت كړى.

② راوى دَ يوحديث متن په يوسندسره نقل كړى سوادَ دې دَ يوجزء نه چه هغه په بل سندسره نقل كړى بيايوبل راوى دَده نه هغه دواړه حصې كومې چه په جدا جدا سند سره وې هغه يوځائى كړى اوپه يوسندسره ئى روايت كړى يا دوه احاديث چه په جدا جدا سندسره روايت شوى وى هغه هم په يوسند كښې جمع كولوسره روايت كړى.

③ محدث دَ حديث بيانولودپاره دَ يوحديث سندبيان كړى بيا دَ څه عارض دَ لاحق كيدودَ وجې نه دَ خپل طرف نه څه خبره اوكړى، دَ سامعين نه بعض دَ محدث دا ذاتى كلام دَ دغه بيان كړې شوى سندمتن گڼلوسره نقل كړى. دا ابن صلاح رحمه الله په شبه وضع كښې شمير كړې دې. اوبعض علماء داهم موضوع شمير كوى. حافظ ابن حجر رحمه الله دا په مدرج كښې شمير كړې دى اودا اولى دى ځكه چه په دې كښې دَ ادراج معنى اظهرده. دَمدرج المتن درې قسمونه دى:

دَ امام زهري رحمه الله په توثيق باندې دَ ائمه اتفاق دې هغوی دَ اوچتې درجې محدث اوفاضل وو. خو په ادراج في الحديث كښې ئې هم شهرت لرلو. دَحديث په بيانولوسره به ئې مينځ كښې خپله رائې داخلوله اواكثربه ئې دَهغې وضاحت نه كولو، دكوم نه چه به دَهغه ادراج كړې شوې الفاظ هم دَ حديث حصه ګنړلې شوه. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله دَامام زهري رحمه الله دَدې عادت باره كښې ((النكت على ابن الصلاح)) كښې ليكلي دي: ((**كان الزهري يفسر الأحاديث وربما أسقط أداة التفسير فكان بعض أقرانه دائماً يقول له: افصل كلامك من كلام النبي صلى الله عليه وسلم**)). [1]يعني امام زهري رحمه الله به دَ احاديثو تفسيركولو اواكثروختونوكښې دَ دغه مفسرانه كلام (حروف) به تفسيرساقط كولو. دَهغه بعض معاصر (امام ربيعة الراى) به هميشه هغوى ته فرمائيل چه خپل تفسيرى كلمات دَ نبى كريم ﷺ دَ كلام نه جدا بيانوه.

پخپله امام بخاري رحمه الله التاريخ الكبير كښې دَ ابوعثمان ربيعه بن ابوعبدالرحمن په حالاتوكښې دَ عبدالعزيز په واسطه سره دَ امام مالك رحمه الله نه نقل كړې دي: ((**كان ربيعة يقول لابن شهاب: إن حالتي ليس تشبه حالك، أنا أقول برأيي، من شاء أخذ، وأنت تحدث عن النبي صلى الله عليه وسلم، فتحفظ**)). [2]

يعنې امام ربيعه رحمه الله به ابن شهاب رحمه الله ته فرمائيل چه زما حالت ستادَ حالت په شان نه دې، زه خودَخپلې رائې اظهاركوم چاچه اوغوښتل په هغې باندې ئې عمل اوكړو. اوته دَنبى كريم ﷺ نه حديث نقل كوې نوښه احتياط كوه.

امام ذهبى رحمه الله هم دَ امام مالك رحمه الله نه دَ امام ربيعه رحمه الله مذكوره قول نقل كړې دې چه امام ربيعه رحمه الله به امام زهري رحمه الله ته وئيل چه زما اوستاحالت يوشان نه دې، امام مالك رحمه الله واثى: هغه اووئيل هغه څنګه؟ نو امام ربيعه رحمه الله اوفرمائيل چه زه خودَخپلې رائې اظهاركوم چا چه اوغوښتل عمل ئې اوكړو اوچا چه اوغوښتل هغه ئې پرېخودل. او ته خودَ رسول الله ﷺ نه حديث نقل كوې هغه محفوظ كولې شى. [3]

---

① چه په اول دَ حديث كښې ادراج وى داپه عام توګه باندې قليل دې ليكن په وسط حديث كښې دَ ادراج په نسبت سره زيات دې. ② په وسط حديث كښې چه ادراج كړې شوې وى داد اول نه اقل دې. ③ آخرحديث كښې ادراج كړې شوې وى اودا غالب دې.

**دواعي ادراج:** دواعي ادراج متعدد دې يوڅومشهوردادي: ① چه دَ يوڅيزشرعى حكم بيانول مقصود وى. ② اتمام حديث نه وړاندې هم دَحديث نه دَيوشرعى حكم استنباط مقصود وى. ③ په حديث كښې واردشوى يولفظ غريب شرح مقصودوى.

**ادراك اود ادراج طريقه:** دَ ادراج ادراك په دې لاندينوامورسره كولې شى:

① هغه روايت "كلام مدرج" سره منفصل كيدوسره چه په دويم طريق سره بل ځائى كښې مروى وى. ② دَادراج نه واقفيت لرونكو ائمه محدثين دَدې صراحت كړې وى. ③ چه راوى پخپله دا اقرار اوكړى چه هغه د فلانكى كار ادراج كړې دې. ④ څه داسې خبره وى چه دَهغې نسبت دَحضورپاك طرف ته كول محال وى. (تعليقات أستاذنا المكرم العلامة البحاثة الشيخ نور البشر حفظه الله ورعاه على خير الأصول فى حديث الرسول للعلامة المحدث الفقيه الشيخ خيرمحمد الجالندهري رحمه الله، ص: ٤٧-٤٥).

[1] تحت النوع العشرون: المدرج، ص: ٣٥٣.

[2] التاريخ الكبير: ٣/٢٨٧-٢٨٦رقم الترجمة: ٩٧٦.

[3] تاريخ الإسلام: ٣/٦٧٤تحت ترجمة ربيعة الرائى، رقم الترجمة: ٢٣٦٣.

خطيب بغدادي رحمه الله خپل سندسره دَ امام ليث رحمه الله نه نقل كړي دي: «قال ربيعة لابن شهاب: يا أبابكر! إذا حدثت الناس برأيك فأخبرهم بأنه رأيك وإذا حدثت الناس بشئ من السنة فأخبرهم أنه سنة لا يظنون أنه رأيك»
(١)علامه سخاوي رحمه الله هم«فتح المغيث شرح الفية الحديث» كښې دَ امام زهري رحمه الله ادراج اودَ امام ربيعه رحمه الله دَهغه دَدې نه دَمنع كولو فهمائش نقل كړي دې.(٢)

دَ ابن شهاب زهري رحمه الله دَ ادراج في الرواية ډير مثالونه موجود دي. اكابرعلماء سلف كښې امام دارقطني رحمه الله امام طحاوي رحمه الله علامه ابن عبدالبر رحمه الله امام ابوبكر حازمي رحمه الله امام نووي رحمه الله علامه جمال الدين زيلعي رحمه الله علامه ابن كثير رحمه الله حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله علامه جلالدين سيوطي رحمه الله اوملاعلي قاري رحمه الله وغيره دَ امام زهري رحمه الله ادراج في الحديث په صراحت سره ذكركړي دي.(٣).

**په روايات فدك كښې ادراج:** دَ مطالبه فدك خمس خيبروغيره په رواياتوكښې چرته دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها او سيدناصديق اكبر رضي الله عنه په مينځ كښې دَخفګان الفاظ مثلاً غصه كيدل، هجران، خبرې نه كول، عدم اطلاع وفات فاطمه رضي الله عنها وغيره مروي شوي دي. په دې سلسله كښې ټول ٣۶ طرق سره روايات راغلي دي. په دې كښې ٢۵ طرق دارومدار په زهري باندې دې او ١١ طرق دَزهري نه علاوه دَ نورو راويانونه نقل دي. دَ ابن شهاب زهري رحمه الله نه علاوه چه كوم ١١نور طرق دي په هغې كښې دغه پورته بيان كړې شوي دَ خفګان الفاظ اوحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنها سره دَ قطع تعلق ذكرنشته دې. دا صرف دَ زهري رحمه الله ١۶طرق كښې ذكردي. په دې وجه ښكاره خبره ده چه داد زهري رحمه الله دَ طرف نه اداراج دې. (٤)كتې دَ دې نه علاوه چه دَ كوم يولس طرق سره داقصه نقل ده په هغې كښې چرته په يوكښې به دَدې ذكر وي.(۵)

## شرح حديث

**قوله: كنت أغتسل أنا والنبي ﷺ من إناء واحد من قدح يقال له الفرق:** (حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي) ما اونبي كريم ﷺ (دواړه يوځائي) دَ يولوښي نه غسل كولو كوم ته چه فرق وئيلې شي.

**والنبي:** په حديث شريف كښې موجود لفظ النبي منصوب اومرفوع دواړه شان لوستلې شي. مفعول معه

---

(١) كتاب الفقيه والمتفقه، باب ذكر أخلاق الفقيه وآدابه وما يلزمه استعماله مع تلاميذه واصحابه، ص:١٤٨.

(٢) ٢٠٧/١، تحت بحث المدرج.

(٣) رحماء بينهم:١٥١/١

(٤) واضحه دې وي چه دَ امام زهري رحمه الله دَ جلالت شان نه باوجود دا ادراجات شرعًا غيرمعتبر دي ځكه چه كه ادراج دَ يوحكم شرعي بيان، يادَ استنباط دپاره وي يادَ يولفظ غريب شرح اووضاحت دپاره وي نو جائزدې. ددې نه علاوه كه ادراج دَهرقسم غرض دپاره وي هغه دَ فقهاء اومحدثينو حضراتو په نيز بالاجماع حرام دې.

حكم الإدراج: "الإدراج حرام باجماع العلماء من المحدثين والفقهاء وغيرهم، ويستثنى من ذلك ماكان لتفسيرغريب، فإنه غيرممنوع ولذلك فعله الزهري وغيره من الأئمة" (تعليقات أستاذنا المكرم العلامة البحاثة الشيخ نورالبشر حفظه الله ورعاه على خير الأصول في حديث الرسول للعلامة المحدث الفقيه الشيخ خيرمحمد الجالندهري رحمه الله، ص:٤٧.)

(٥) دَ نورتفصيل دپاره اوګورئي: رحماء بينهم: ١٥١/١-١٣۶كشف الباري، كتاب المغازي ص:٤۵٨-٤۵٩.

كيدودَ وجې نه به منصوب لوستلې كيږي او په ضميرمرفوع باندې دَعطف دَ وجې نه به مرفوع لوستلې شي.[1] دَ أغتسل نه پس ئې أنا ضمير منفصل راوړلو چه دَاسم ظاهر عطف په دې باندې اوكړې شي.[2]

**اشكال:** باقي پاتې شوه داخبره چه لفظ النبي كه چرې معطوف اوګرځولې شي په ضميرمرفوع باندې نوتقديرى عبارت به داسې شي «أغتسل أنا والنبي» صيغه متكلم سره» خوداتركيب صحيح نه دې ځكه چه اسم ظاهردَ غائب په حكم كښې وى نودَدې دَپاره دَ متكلم صيغه «أغتسل» راوړل څنګه صحيح كيدې شي؟[3]

**جواب:** دَدې جواب دادې چه دادَ «تغليب المتكلم على الغائب» دَ قبيل نه دې اودلته يغتسل عامل مقدردې تقديرى عبارت به داسې شي «أغتسل ويغتسل النبي» لهذا دَ النبي عطف په ماقبل باندې صحيح دې. [4]دَدې مثال دَالله تعالى داارشاد مبارك دې په كوم كښې چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام ته اوفرمائيل: ﴿أُسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ﴾ [5]آيت مبارك كښې «زوجك» اسم ظاهر كوم چه دَغائب په حكم كښې دې عطف أنت مخاطب باندې كړې شوې دې اوداد تغليب المخاطب على الغائب دَ قبيل نه دې. دَدې تقديرى عبارت «أسكن أنت وليسكن زوجك الجنة»[6]

**دويم اشكال:** كه چرته څوك دا اووائى چه آيت مبارك «تغليب المخاطب على الغائب» نه خوداخودل مقصود دى چه سكنى په جنت كښې حضرت آدم على نبينا و عليه السلام اصل او حضرت حواء عليها الصلاة والسلام دَهغې تابع ده نو په زير بحث حديث كښې تغليب المتكلم على الغائب څه فائده ده؟[7]

**جواب:** دَدې خبرې جواب شراح حديث دا وركړې دې چه په حديث كښې تغليب المتكلم على الغائب نه دې طرف ته اشاره كول مقصوددى چه هم ښځې دَ شهوت محل دې اوهم دوى دَ غسل سبب اوذريعه جوړيږى نولكه چه هغه (ښځې) دَغسل په باب كښې اصل اوسړى دَهغې تابع دى. [8]

---

[1]) شرح الكرماني:۱۱۳/۳فتح الباري:۴۷۹/۲ تحفة الباري:۲۱۹/۱.

[2]) عمدة القاري:۲۹۰/۳ شرح الطيبي:۸۵/۲.

[3]) شرح الكرماني على صحيح البخاري:۱۱۳/۳عمدة القاري:۲۹۰/۳ تحفة الباري:۲۱۹/۱ شرح الطيبي على مشكاة المصابيح:۸۵/۲.

[4]) شرح الكرماني: ۱۱۳/۳عمدة القاري:۲۹۰/۲ فتح الباري ۴۷۹/۱ تحفة الباري:۲۱۹/۱.

[5]) البقرة:۳۵، والأعراف:۱۹، قال العلامة أبوالفضل شهاب الدين السيد محمود الألوسي رحمه الله في تفسير هذه الآية:(أنت) توكيد للمستكن في(اسكن)والمقصد منه بالذات صحة العطف، إذا لو لاه لزم العطف على الضمير المتصل بلافصل، وهوممتنع في الفصيح على الصحيح، وإفادة تقرير المتبوع مقصودة تبعاً، وصح العطف مع أن المعطوف لايباشره فعل الأمر، لأنه وقع تابعًا،ويغتفر فيه مالا يغتفر في المتبوع، وقيل هناك تغليبان: تغليب المخاطب على الغائب والمذكر على المؤنث.... وللتخلص عن ذلك قيل: إنه معطوف بتقدير فليسكن، وفيه أنه حينئذ يكون من عطف الجملة على الجملة فلا وجه للتأكيد". (روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني :۲۳۴/۱).

[6]) شرح الكرماني: ۱۱۳/۳عمدة القاري:۲۹۰/۳ تحفة الباري:۲۱۹/۱شرح الطيبي:۸۵/۲

[7]) شرح الكرماني:۱۱۳/۳عمدة القاري:۲۹۰/۳ شرح الطيبي:۸۵/۲.

[8]) شرح الكرماني:۱۱۳/۳عمدة القاري:۲۹۱/۳ تحفة الباري:۲۱۹/۱ شرح الطيبي على مشكاة المصابيح:۸۵/۲

**دَعلامه كوراني توجيه:** علامه كوراني رحمه الله دَ تغليب توجيه خبط گرځولې ده. هغه فرمائي حديث په خپل ظاهرباندې محمول دې په دې كښې دَ تغليب اعتبار كولو هيڅ ضرورت نشته دې. بل دا چه كله مونږ فعل مذكور «أغتسل» مناسبت سره والنبي دپاره دويم فعل «يغتسل» مقدرمنو نوبيا دَ تغليب اعتبار غيرمعقول امردې. (۱)

**دريم اشكال:** علامه كرماني رحمه الله وغيره دلته يوبل اعتراض هم ذكركړې دې هغه دا كه چرې څوك دا اووائي چه دَ حديث داسې تقدير هم بيانولې شي: «**أغتسل أنا ورسول الله صلى الله عليه وسلم من إناء مشترك بيني وبينه فيبادرني ويغتسل ببعضه ويترك لي ما بقي، فأغتسل أنا منه**» يعني ما اورسول الله ﷺ به دَ يوشريك لوښي نه غسل كولو حضورپاك به مخكښې والې كولو او په څه اوبوسره به ئې غسل كولو اوباقي به ئې زمادَ پاره پريخودلې نوما به په هغې سره غسل كولو. (ليكن دا تقدير نه دې اختياركړې شوې، دَدې څه وجه ده؟)(۲)

**دَعلامه كرماني رحمه الله جواب:** علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه داسې تعبيراختيارول دَ ظاهرحديث خلاف دې خاص كر چه كله أغتسل أنا والنبي كښې والنبي مفعول معه اومنلې شي ځكه چه دَمفعول معه منلوپه صورت كښې معيت في الغسل معنى به متعين شي اودَمعترض والاتقدير منلوپه صورت كښې به جدا جدا غسل كول لازم راځي چه دَ ظاهردَ حديث خلاف دې. (۳)

**دَعلامه عيني رحمه الله جواب:** علامه عيني رحمه الله فرمائي چه داتقديرځكه صحيح نه دې چه په يوبل حديث سره دَدې مخالفت كيږي په كوم كښې چه حضورپاك بنځې له دَ سرې نه پاتې شوې اوبوسره دَ غسل كولونه منع كړې ده. (۴)علامه طيبي رحمه الله هم دا توجيه اختياركړې ده. (۵)

**قوله ::من إناء من قدح:** دَ پيالئي په شان دَ يولوښي نه. من إناء من قدح كښې حرف من دوه ځل راغلې دې په دې كښې رومبې من ابتدائيه دې. (۶)علامه كرماني رحمه الله فرمائي اولي دادې چه لفظ قدح په لفظ إناء سره دَ حرف جردَ تكرارسره بدل اوگرځولې شي. (۷) علامه سيوطي رحمه الله اودَ شيخ الاسلام زكريا انصاري رحمه الله هم دغه رائې ده. (۸)البته شيخ الاسلام زكريا انصاري رحمه الله «**من إناء من قدح**» كښې من دوه ځايه ابتدائيه گرځولې دې. (۹)

---

(۱) الكوثر الجاري: ۱/۴۰۹-۴۰۸.

(۲) شرح الكرماني: ۳/۱۱۴ عمدة القاري: ۳/۲۹۱.

(۳) شرح الكرماني: ۳/۱۱۴.

(۴) عمدة القاري: ۳/۲۹۱.

(۵) شرح الطيبي على مشكاة المصابيح: ۲/۸۵.

(۶) شرح الكرماني: ۳/۱۱۴ عمدة القاري: ۳/۲۹۱ فتح الباري: ۲/۴۸۰.

(۷) شرح الكرماني: ۳/۱۱۴ عمدة القاري: ۳/۲۹۱.

(۸) التوشيح على الجامع الصحيح: ۱/۲۴۲ تحفة الباري: ۱/۲۱۹.

(۹) تحفة الباري: ۱/۲۱۹.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله لفظ قدح دَ اناء نه بدل كيدل صرف يواحتمال ګرځولې دې چنانچه هغه فرمائي ((ويحتمل أن يكون قدح بدلاً من إناء بتكرار حرف الجر))[1] يعني په لفظ قدح كښې يواحتمال دې چه هغه دَ حرف جر په تكرارسره لفظ اناء نه بدل جوړشي.

**دَعلامه عيني رحمه الله په حافظ صاحب باندې نقد:** علامه عيني رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې تنقيدكړې دې چه هغه دَ قدح دَ بدل كيدو باره كښې يحتمل تعبيراختياركړې دې حالانكه په داسې مقاماتوكښې يحتمل نه شي وئيلې ځكه چه دَعلامه كرماني رحمه الله ذكركړې شوې دواړه وجهې په يقيني توګه باندې صحيح او جائزدي. او زيات نه زيات يوې توجيه ته په بله باندې فوقيت وركولې شي.[2]لكه څنګه چه پخپله علامه كرماني رحمه الله بدل كيدل اولي ګرځولي دي.[3]

**دَ لفظ قدح وضاحت:** قدح دَ قاف اودال دواړو فتحه سره أقداح واحددې.[4] ابن منظور رحمه الله او علامه جوهري رحمه الله وغيره وائي چه قدح دَ څكلو يولوښي ته وئيلې شي.[5]ابن اثير رحمه الله اوعلامه طاهر پټني رحمه الله وغيره داد خوراك يولوښي ګرځوي.[6] دواړه خبرې صحيح دي په داسې توګه چه قدح يولوښي دې چه دَ خوراك څښاك دواړو دَ پاره استعمالولې شي. دغه شان دا لوښي په توګه دَ پيمانه هم استعمالولې شي.[7]قدح په عام توګه دَ بره نه پلن اودَ ښكته حصه تنګه او لاسكي والاوي.[8] دادَ لرګي شيشې او پيتلونه جوړولې شي.[9]په حديث كښې دَ قدح نه مراد دَ پيتلو والالوښي دې ابن التين رحمه الله وائي ((كان هذا الإناء من شَبَه وهو بفتح المعجمة والموحدة))[10]يعني دالوښي شبه «دَ شين اوباء فتحه سره»دَ پيتل جوړشوې وو. علامه عيني رحمه الله وغيره فرمائي ((وهو «أي الشبه» نوع من نحاس، يدل عليه مارواه الحاكم من طريق حماد بن سلمة عن هشام بن عروة عن أبيه: ولفظه: تورمن شَبَه، ويقال كوزشَبَه، شبه بمعنى.))[11]شبه دَ پيتلويوقسم دې په حديث كښې دَ قدح نه دَ پيتل والالوښي مراددې دَدې تائيددَ امام حاكم رحمه الله دَ حماد بن سلمه والا روايت نه كيږي كوم چه هغه دَ هشام نه اوهغه دَخپل پلار عروه رحمه الله نه نقل كړې دې په هغې كښې دى تورمن شبه يعني دَ پيتلو دَ اوبووالا لوښي اودې ته دَپيتلو دَلاسكي والاپيالئى هم وئيلې شي.[12]

---

[1] فتح الباري لابن حجر:۲/۴۸۰.
[2] عمدة القاري:۳/۲۹۱.
[3] شرح الكرماني:۳/۱۱٤عمدة القاري:۳/۲۹۱.
[4] لسان العرب: ۱۱/ ۵۰الصحاح ص:۸٤۰مجمع بحار الأنوار:٤/۲۱۶.
[5] لسان العرب: ۱۱/ ۵۰الصحاح ص:۸٤۰إرشاد الساري:۱/۴۹۰.
[6] النهاية:۲/۴۲۰مجمع بحار الأنوار: ٤/۲۱۶إرشاد الساري:۱/ ۴۲۰.
[7] القاموس الوحيد ص:۱۲۸۰.
[8] مجمع بحارالأنوار:٤/ ۲۱۷فتح الباري:۱/۳۹۸إراشادالساري:۱/ ۴۲۰فقه اللغة ص:۱۸۰.
[9] مجمع بحارالأنوار:٤/ ۲۱۷ فتح الباري:۱/۳۹۸ إراشادالساري:۱/ ۴۲۰.
[10] فتح الباري:۱/ ۴۸۰إرشادالساري:۱/ ۴۹۰.
[11] عمدة القاري:۳/۲۹۱فتح الباري:۱/ ۴۸۰والحديث رواه الحاكم فى المستدرک على الصحيحين فى كتاب ا لطهارة: ۱/۲۷۵-۲۷٤رقم الحديث:۱/۶۰۱/ ۱۵۶.
[12] القاموس الوحيدص:۲۰۶، ۱۲۸۰، ۱۴۳۴.

خلاصه داشوه چه قدح يوداسې لوښي ته وائي چه دګړګی شيشې او پيتلونه جوړولې شي. داد خوراك څښاك د پيمانه په توګه اودغسل د لوښي په توګه هم استعمالولې شي. ددې پورتنئ حصه پلنه اوښکته سرتنګ اولاسکي والاوى. حديث کښې د قدح نه د پيتلووالا لوښي مراددي. قدح د فقهاؤ په اصطلاح کښې د صاع د اجزا نه دې علامه شربيني رحمه الله وائي چه صاع اووه مدکم دوه قدح برابر وى او هر پنځلس مدنه اووه قدح جوړيږى.(١)

**قوله:: يقال له الفرق**: دې ته فرق وئيلې شي. الفرق د راء اوفاء دواړو فتحه او راء په سکون دواړه شان لوستلې کيږى. ابوزيد انصارى رحمه الله يحيى رحمه الله او دريد رحمه الله د راء سکون نقل کړې دې.
(٢)د ابن التين رحمه الله او جوهرى رحمه الله هم دغه رائې ده. (٣).ليکن مشهور د راء په فتحه سره دې.(٤)
علامه کرمانى رحمه الله اوقتيبى رحمه الله هم د راء فتحه سره نقل کړې دې.(٥) علامه نووى رحمه الله فرمائى الفرق د راء فتحه سره افصح اواشهر دې.(٦)

**دعلامه ابوالوليدباجى رحمه الله رائې**: علامه ابوالوليد باجى رحمه الله فرمائى چه فرق د راء فتحه سره کيدل صحيح دى.(٧)

**دعلامه نووى رحمه الله په علامه باجى رحمه الله باندې رد**: علامه نووى رحمه الله د ابوالوليدباجى رحمه الله رائې ردکړې ده چه فرق د راء فتحه سره صحيح دې هغه فرمائى «وزعم الباجى أنه الصواب وليس كما قال، بل هما لغتان»
(٨)يعنى علامه باجى رحمه الله داګمان کړې دې چه هم دغه «راء فتحه سره» صحيح دې د هغه دا رائې صحيح نه ده بلکه «فرق» کښې د راء فتحه اوسکون دوه لغتونه دى.

**دعلامه باجى رحمه الله د رائې ماخذ**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائې چه کيدې شى د ابوالوليدباجى رحمه الله د رائې مستنداو ماخذ ثعلب هغه قول دې کوم چه ازهرى رحمه الله دهغه نه نقل کړې دى چه فرق د راء فتحه سره دې محدثين راء ساکن نقل کوى اوپه کلام عرب کښې هم د راء فتحه سره نقل دې. (٩)
ليکن صحيح خبره هم دغه ده چه کومه دعلامه نووى رحمه الله په حواله سره پورته نقل کړې شوې ده چه فرق کښې دواړه لغتونه جائزدى. د اهل لغت او شراح حديث په حواله سره تفصيل په ماقبل کښې راغلې دې. په حديث کښې الفرق د راء فتح سره دې. (١٠)

---

(١) الموسوعة الفقهية:٣٨/٢٩٨.
(٢) شرح الكرمانى:١١٣/٣فتح البارى:٤٨٠/٢عمدة القارى:٢٩٠/٣المنتقى لأبى الوليد الباجى:٣٨٦/١.
(٣) فتح البارى:٤٨٠/٢عمدة القارى:٢٩٠/٣الصحاح:ص:٨٠٨
(٤) تحفة البارى:٢١٩/١طرح التثريب للعراقى:٢٥٥/١.
(٥) شرح الكرمانى:١١٣/٣فتح البارى: ٤٨٠/٢ عمدةالقارى:٢٩٠/٣.
(٦) شرح النووى المعروف بالمنهاج: ٢٢٨/٤فتح البارى:٤٨٠/٢.
(٧) المنتقى:٣٩٦/١فتح البارى:٤٨٠/١عمدة القارى:٢٩٠/٣ المنهاج للنووى:٢٢٨/٤.
(٨) المنهاج:٢٢٨/٤فتح البارى:٤٨٠/١عمدة القارى:٢٩٠/٣.
(٩) فتح البارى:٤٨٠/١.
(١٠) فتح البارى:٤٨٠/١.

دَ فرق مقدار: (۱) علامه جوهري رحمه الله ليکلی دي «الفرق مکیال معروف بالمدینة، وهوستة عشر رطلاً» (۲) یعنی فرق دَمدینې یو معروف پیمانه ده چه دَ ۱۶ رطل وي.

دَعلامه ابن اثیر رحمه الله رائې: ابن اثیر رحمه الله وائي: «الفرق بالتحریك: مکیال یسع ستة عشر رطلاً، وهي اثنا عشر مداً، أوثلاثة آصع عند أهل الحجاز، وقیل: الفرق: خمسة أقساط والقسط: نصف صاع، فأما الفرق بالسکون فمائة وعشرون رطلاً» (۳) یعنی فرق په فتحه دَ راء سره یوه پیمانه ده په کوم کښې چه ۱۶ رطل راځي اوهغه دولس مد یا دَ اهل حجاز په نیز دَ درې صاع برابر وي. دَ فرق باره کښې یوقول داهم دې چه هغه دَ پنځو اقساطو وي اویوقسط دَ نصف صاع برابروي. خو فرق دَ راء په سکون سره دَ ۱۲۰ رطل وي.

امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کښې دَ سفیان بن عیینه رحمه الله نه نقل کړې دي چه «الفرق ثلاثة آصع» (۴)

علامه نووي رحمه الله دادَ جمهورو رائې ګرځولې ده. هغوی فرمائی «أماکونه ثلاثة آصع، فکذا قاله الجماهیر» (۵) یعنی دَ یوفرق دَ دریوصاع برابریدل هم دغه دَجمهورو قول دې. یوقول دَ دوو صاع هم دې لیکن ابوعبید په دې خبره باندې اتفاق نقل کړې دې چه یوفرق دَدریو صاع وي. (۶)

هم دغه دَجمهورو قول دې لکه چه دَ علامه نووي په حواله اوس تیر شوی دی.

په حدیث کښې دَ فرق نه څه مراددې؟: علامه نووي رحمه الله فرمائي چه دلته دَ فرق نه مراد جنس بیانول دی یعنې هغه لوښې په کوم سره چه دَ«غسل دَپاره» اوبه راختسې شی دامراد نه دې چه حضورپاك عليه السلام دَ فرق په اندازه اوبوسره غسل کولو. علامه نووي رحمه الله حدیث باب دَ دلیل په توګه سره نقل کړې دې. (۷)

ړومبې احتمال: ړومبې احتمال دادې چه حضورپاك به په هغه لوښې سره غسل کولو سره دَدې چه دهغې نه به ئې لږې شان اوبه استعمالولوسره اکثریچ کولې یا په هغې کښې موجود ټولې اوبه اونورې به ئې هم استعمالولې. نودا دَدغه لوښې «فرق» سره دَ طهارت حاصلولو په جواز باندې دلیل دې. د

---

(۱) دَ الفرق دَ موجوده پیمانو په اعتبارسره تحقیق: الفرق دَ راء فتحه سره، په دې کښې دَپخوانو پیمانو په حساب سره ۱۶ رطل راځي او په یورطل کښې ۱۳۰ درهم وي او یودرهم ۳،۰۶۱۸ ګرام وي. اوس دَ رطل وزن (۱۳۰ درهم) کله ۳،۰۶۱۸ ګرام سره ضرب ورکړو نو ۳۹۸،۰۳۴ ګرام جواب راځي. بیادَ ۱۶ رطل وزن معلومولودَپاره ۱۶ ته ۳۹۸،۰۳۴ سره ضرب ورکړو نوجواب ۶۳۶۸،۵۴۴ ګرام راځي چه په موجوده حساب سره ۶ کلوګرام ۳۶۸ ګرام او ۵۴۴ ملی ګرام جوړیږي.

الفرق دَ راء په سکون سره، په دې کښې دَ پخوانو پیمانوپه اعتبارسره ۱۲۰ رطل راځي دَپورتنئ طریقې مطابق ۱۲۰ له په ۳۹۸،۰۳۴ سره ضرب ورکړو نو په جواب کښې ۴۷۷۶۴،۰۸ ګرام راځي. په موجوده حساب سره دَدې وزن یومن ۷ کلوګرام ۷۶۴ ګرام او ۰۸،۰ ملی ګرام جوړیږي.

(۲) الصحاح،ص:۸۰۸عمدة القاري:۲۹۰/۳شرح الکرماني:۱۱۳/۳.

(۳) النهایة:۳۶۳/۲ فتح الباري:۴۸۰/۱.

(۴) کتاب الحیض باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة وغسل أحدهما بفضل الأخر، رقم:۷۲۷.

(۵) المنهاج:۲۲۸/۴فتح الباري:۴۸۰/۱ عمدة القاري:۲۹۰/۳.

(۶) فتح الباري:۴۸۰/۱.

(۷) المنهاج:۲۲۸/۴مجمع بحار الأنوار:۱۲۸/۴.

فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه بغیرد سرو زرو او سپینو زرو هرپاك لوښی سره طهارت حاصلول جائزدی.(۱)

**دويم احتمال:** دویم احتمال دادې چه حضورپاك ﷺ به په غسل کښې فرق نومې لوښې د کولو یعنی دهغې په اندازه به ئې اوبه استعمالولې نولکه چه دا خودول مقصوددی چه حضورپاك به په عام توګه په غسل کښې په دومره مقدار سره اوبه استعمالولې. اګرچه په دې کښې د دې خبرې طرف ته اشاره نشته چه کم نه کم په څومره مقدار سره غسل کولې شي. (۲)

**دعلامه کشمیری رحمه الله رائې:** په حدیث کښې چه دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه کوم نقل دی چه ما اونبی کریم ﷺ به په یولوښی کوم ته چه فرق وئیلی شی هغې سره غسل کولو اود فرق باره کښې داخبره تیره شوې ده چه هغه داسې لوښې وی په کوم کښې چه ددرې صاع په اندازه باندې اوبه ځائی کیږی. ددې باره کښې حضرت علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی: «فإن كان ملآن يصير لكل منهما صاع ونصف، والمعروف في عادته في الغسل صاع، وقد مر أنه لا تحديد فيه، والأمر تقريبي، وإن كان خالياً فالأمر تحقيقي، ويصير لكل منهما صاعاً، فإنه لا يلزم يكون الفرق هذا القدر أن يكون الماء فيه أيضاً كذلك، فيمكن أن يكون الماء على قدر عادته»(۳)

(یعنی فرق کښې خو درې صاع راځی لیکن دحدیث باب نه داخبره نه راڅی چه دحضورپاك غسل کولو په وخت هغه ډك وو برابر وو؟) که چرې ډك وو نولکه چه د نبی کریم ﷺ اوحضرت عائشه رضی الله عنها دواړو په حصوکښې دوه نیم دوه نیم صاع راغله اوکیدې شی چه په دومره مقدار سره هم حضورپاك غسل کړې وی، اګرچه مشهوردحضورپاك عادت مبارك هم دغه ووچه په یوصاع سره به ئی غسل کولو اوفرق مذکور دخالی او پوره والی په صورت کښې خوددې ځائی نه هم ددغه مشهورې خبرې خلاف نه شو چه ممکن دی هغه وخت په هغه لویه پیمانه کښې هم صرف دوه رطل موجود وی. په رومبی صورت کښې د غسل داوبو مقدار به تقریبی منلې کیږی چه تحدید هیڅ نه دې. تقریبا په یو یا یونیم رطل سره به ئی غسل کولو په دویم صورت کښې به دې ته تحقیقی وئیلې کیږی چه همیشه به ئی هم په یورطل سره غسل کولو. کله به دغه مقدار په وړوکی لوښی کښې وو اوکله په لوئی لوښی کښې.

**دامام طحاوی رحمه الله تحقیق:** امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه د حضرت عائشه رضی الله عنها دحدیث نه داثابته شوه چه هغې او رسول الله ﷺ به په فرق سره غسل کولواو یوفرق د دریوصاع وی نولکه چه هغوی دواړو به په یونیم یونیم صاع سره غسل کولو. (د احنافو په نیز) یوصاع د اتو رطل وی (اود جمهورو په نیز) یوصاع د پنځو رطل او ثلث رطل برابر وی. (خود جمهورو په نیز یوفرق د دریوصاع برابر وی اود احنافو په نیزیوصاع د دوو فرق برابروی).

بیا امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه حدیث عائشه رضی الله عنها کښې صرف د فرق ذکردې د اوبود مقدار څه تذکره نشته دې چه هغه ډك وو که کم وو. لهذا داکیدې شی چه کله به هغه ډك وو نودرې صاع اوبه به وې اوچه کله به کم وو نو دوه صاع اوبه به وې. او په دې دویم صورت کښې به حضورپاك یوصاع او

---

۱) المنتقی شرح موطأ مالك: ۱/۳۹۵.

۲) المنتقی شرح موطأ مالك: ۱/۳۹۵.

۳) فیض الباری: ۱/۴۵۳.

دویم صاع سره حضرت عائشه رضي الله عنها غسل کولو. لهذا دا مفهوم دَدې حدیث دَمفهوم موافق دې په کوم کښې چه راغلی دی چه حضورپاك به په یوصاع سره غسل فرمائیلو. [۱]

فائده: حضورپاك اوحضرت عائشه رضي الله عنها به په عربوکښې دَ اوبو دَ قلت دَ وجې نه په عاموحالاتوکښې به دغه فرق سره غسل کولو چه دَ دريو صاع يعنې ۱۶ رطل برابروی. البته داهم ممکن دی چه هغه فرق کوم چه دَ ۱۲۰ رطل برابروی دَ کوم مقدارچه دَ يولوئي ټب اوتال برابروی دَهغې نه هم کله اوبه په زيات مقدارکښې موجود کيدو په صورت کښې ئې غسل فرمائيلې وی نوهيڅ لرې خبره نه ده چه په غسل کښې دَ يوصاع اوبو مقدار تحديد نشته دَ اسراف نه دَ بچ کيدو سره په څومره اوبوسره هم چه غسل اوکړې شی جائزدې.

**په حديث الباب کښې دَ معيت في الغسل صراحت نشته دې:** امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې دَ سړی اوښځې په يوځائی غسل کول بيان کړی دی خو په حديث الباب کښې صرف دومره ذکر دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها اورسول الله ﷺ به په يولوښی سره غسل کولو نولکه چه په حديث الباب کښې دَمعيت في الغسل صراحت نشته دې؟

**دَعلامه سندهی رحمه الله جواب:** علامه ابوالحسن نورالدين سندهی رحمه الله فرمائی چه دَ حديث الفاظ «كنت أغتسل أنا والنبي صلى الله عليه وسلم» په معيت باندې په مکمل توګه باندې دلالت نه کوی البته دا صرف دَ غسل دَ لوښی په وحدت باندې دلالت کوی. ځکه چه واؤ عاطفه قران يعنی په يوځائی غسل کولوباندې دلالت نه کوی اودَ ظرف او لوښی دَ وحدت نه دا نه ثابتيږی چه دَ غسل کولو وخت هم يو وو. او داکيدې شی چه «كنت أغتسل أنا والنبي» کښې واؤ دَعطف په ځائی دَمعيت دَپاره واخستې شی ليکن دابعيددې. [۲]

دَدې صحيح جواب دادې چه دَدې سلسلې نور ټول روايات دَدې خبرې طرف ته اشاره کوی چه حضوراکرم اوحضرت عائشه رضي الله عنها دواړو واقعی په يوځائی غسل کولو په دې وجه به دلته هم معيت زمانی مراد اخستې شی. «فالاستدلال بالنظر اليه، لا بالنظر إلى هذا اللفظ» يعنی استدلال دَ نورو رواياتو په رڼاکښې کيدې شی دې الفاظوسره نه شی کيدې. [۳]

**دسړی اوښځې په يولوښی سره طهارت حاصلول:** دَحديث باب او دغه شان نورو رواياتو په رڼا کښې دَ مسلمانانو په دې خبره باندې اتفاق دې چه سړې اوښځه په يولوښی سره طهارت حاصلولې شی. په دې خبره باندې هم اجماع ده چه ښځه دَ سړی نه پاتې شوو اوبو سره طهارت حاصلولې شی. [۴] البته په دې کښې اختلاف دې چه سړې دَ ښځې نه پاتې شوې وبوسره طهارت (اودس اوغسل) کولې شی که نه؟

**دَ جمهورائمه او امام بخاری رحمه الله موقف:** جمهور ائمه سلف او ائمه ثلاثه امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله او امام مالك رحمه الله دې ته مطلقًا جائز وائی که ښځې اودس يا غسل په ځان له ځائی

---

[۱]) شرح معاني الآثار، كتاب الزكاة، باب وزن الصاع كم هو: ۱/۳۵۲-۳۵۱.

[۲]) دَحضرت سندهي رحمه الله داخبره محل نظر ده ځکه چه نحويين اوشراح حديث په نيزدلته واؤ دَمعيت دَپاره اخستې شی دَتفصيل دَپاره اوګورئی: کشف الباری کتاب الغسل ص: ۲۲۰.

[۳]) صحيح البخاری بحاشية السندی: ۱/۵۶.

[۴]) المنهاج: ۴/۲۲۷ عمدة القاری: ۳/۲۹۱.

كښې كړې وي ياد نورو په وړاندې نې طهارت حاصل كړې وي (١)امام بخاري رحمه الله هم په دې مسئله كښې جمهور ائمه سره دې.

**دَعلامه كشميري رحمه الله تحقيق:** حضرت علامه انور شاه كشميري رحمه الله «**باب غسل الرجل مع امرأته**» په ذيل كښې فرمائي چه دغه شان امام بخاري رحمه الله وړاندې «**باب وضوء الرجل مع امرأته**» راوړلې دې دكوم نه چه معلومه شوه چه هغوى په دې باره كښې دَ امام احمد رحمه الله مذهب نه دې اختيار كړې بلكه دَ جمهور ائمه مذهب ئې اختيار كړې دَ مسئلې پوره تفصيل وړاندې تير شوې دې په كوم كښې چه دا واضحه كړې شوې وو چه دَ ممانعت دارو مدار (دروغږن) كيدو باندې دې او په يوځائې باندې اودس كول يا غسل كولو باندې (دَپاتې شوو اوبو) اطلاق نه كيږي. (٢)

**دَ حنابله اوظاهريه وغيره مسلك:** امام احمدبن حنبل رحمه الله اودَ ظاهريه نه داؤد ظاهري وغيره وائي كه ښځې ځان له ځائې كښې طهارت حاصل كړې وي نودَ سړي دَپاره دَهغې استعمال جائز نه دې. (٣)

حضرت عبدالله بن سرجس رحمه الله اودَحضرت حسن بصري رحمه الله نه په يوروايت كښې هم دغه قول نقل دې. په يوبل قول كښې دَحضرت حسن رحمه الله اوسعيدبن مسيب رحمه الله نه دَ ښځې پاتې شوې اوبوسره طهارت حاصلولوته مطلقًا مكروه وئيلې شوې دى (٤)خودَ امام احمد رحمه الله نه يوقول دَ جمهور ائمه دَ قول په شان نقل دې. (٥)

**دَعلماؤ پنځه اقوال:** علامه ابن عبدالبر رحمه الله په دې مسئله كښې دَعلماؤ پنځه اقوال نقل كړي دى هغوى فرمائي: وللعلماء في هذه المسألة خمسة أقوال: (أحدها): الكراهية لأن يتطهر الرجل بفضل المرأة. (والثاني): أن تتطهر المرأة بفضل وضوء الرجل. (والثالث): أنهما إذا شرعا جميعاً في التطهر فلا بأس به، وإذا خلت المرأة بالطهور فلا خير في أن يتطهر بفضل طهورها. (والرابع): أنه لا بأس أن يتطهر كلّ واحد منهما بفضل طهور صاحبه ما لم يكن الرجل جنباً، والمرأة حائضاً أوجنباً، وهو قول ابن عمر. (والخامس): وقد رُوي عن ابن عباس أنه سئل عن فضل وضوء المرأة، فقال: هُنّ ألطف بناناً وأطيب ريحاً، وهذا جواب بجواز فضلها على كل حال، وهذا قول زيد بن ثابت وجمهور الصحابه والتابعين. (٦)

په دې مسئله كښې دَ علماؤ پنځه اقوال دى: ① چه سړې دَ ښځې نه پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصل كړي. ② ښځه دَ سړي نه پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصل كړي. دا دواړه صورتونه مكروه دى. ③ چه سړې او ښځه په يوځائې باندې طهارت حاصلول شروع كړي دا جائزدى البته كه ښځه په ځان له ځائې كښې طهارت حاصل كړي نوبيا دَ سړي دَهغې دَ پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصلولوكښې هيڅ خير نشته دې. ④ سړې كه جنبى نه وي او ښځه حائضه يا جنبه نه وي نو بيا په

---

(١) المنهاج: ٢٢٧/٤عمدة القاري: ١٢٦/٣فتح المالك: ٣٠٠/١.

(٢) فيض الباري:٤٥٣/١.

(٣) المنهاج: ٢٢٧/٤عمدة القاري: ١٢٦/٣ الاستذكار: ٢٠٩/١.

(٤) المنهاج: ٢٢٨/٤-٢٢٧عمدة القاري: ١٢٦/٣.

(٥) المنهاج: ٢٢٨/٤عمدة القاري: ١٢٦/٣، ٢٩١.

(٦) الاستذكار: ٢١٠/١عمدة القاري:١٢٦/٣.

دوی کښې هریوډ بل نه پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصلولې شی داډ ابن عمر رضي الله عنهما قول دی. ⑤ دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه دهغه نه د ښځې د اودس نه پاتې شوو اوبوباره کښې پوښتنه اوکړې شوه نوهغوی اوفرمائيل چه هغه «ښځې» د ښکلې بندونو والا اوپاکیزه خوشبوئی والا وی دهغوی د طرف نه دا جواب د ښځو د پاتې شوو اوبوسره په هرحال کښې په جواز د طهارت باندې مبنی دې اوهم دغه د حضرت زیدبن ثابت رضي الله عنه او جمهور صحابه کرامو اوتابعینو قول دې

**یواعتراض اوجواب:** که چرې څوك دا اووائی چه په حدیث کښې خوډ ښځې نه پاتې شوې اوبوسره د غسل کولونه منع کړې شوې ده؟ نوددې جواب دادې چه امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه محدثینوددې حدیث اسناد مرفوع نه دی ګرځولی که چرې رفع ثابته هم شی نوهغه منسوخ ده.(۱)

ددې مسئلې تفصیلات كتاب الوضوء باب وضوء الرجل مع امرأته وفضل وضوء المرأة کښې تیرشوې دی.

**دحدیث باب نه مستنبط شوی احکام:** دحدیث باب نه دا لاندینی احکام مستنبط شوی دی.

① داؤدی د حدیث باب نه د سړی اوښځې د یوېل شرمګاه ته د کتلو په جواز باندې استدلال کړې دې. (۲)ددې تائید د ابن حبان رحمه الله د روایت نه هم کیږی په کوم کښې چه حضرت عطاء رحمه الله دحضرت عائشه رضي الله عنها نه دې باره کښې تپوس اوکړو نوهغې په جواب کښې حدیث باب بیان کړو. (۳)ددې مسئلې تفصیل باب مذکور لاندې تیرشوې دې.

② د سړی اوښځې په یولوښی سره اودس اوغسل کول جائزدی او په دې باندې اجماع ده. (۴)

③ د ښځې د سړی نه پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصلول جائزدی.(۵)

④ جمهور علماؤ اوائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز د سړی د ښځې نه پاتې شوو اوبوسره طهارت حاصلول جائزدی البته دامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز که ښځې ځان له خاٸی کښې اوبه استعمال کړې وی نوبیاد سړی دپاره دهغې د پاتې شوو اوبو سره طهارت حاصلول جائزنه دی.(۶)

⑤ د جنبی د لاس پاك کیدل (که په هغې باندې څه ظاهری نجاست نه وی لګیدلې) (۷)

⑥ د جنبی او حائضه نه پاتې شوو اوبوپاکیدل. (۸)اوددوی نه بچ شوو اوبوسره د غسل او اودس صحیح کیدل.(۹)

⑦ د فقهاؤ په دې خبره باندې اجماع ده چه د سړو زړو اوسپینو زړو نه علاوه په تولو لوښو سره اودس کول (طهارت حاصلول) جائزدی.(۱)

---

۱) شرح الكرماني:٣/١١٤عمدة القاري:٣/٢٩١تحفة الباري:١/٢٩١.
۲) فتح الباري:٢/٤٨٠عمدة القاري:٣/٢٩١الكنز المتواري:٣/١٩٠.
۳) فتح الباري:٢/٤٨٠عمدة القاري:٣/٢٩١التوشيح للسيوطى:١/٢٤٢.
۴) عمدة القاري:٣/٢٩١ المنهاج: ٤/٢٢٧ تحفة الباري:١/٢١٩.
۵) شرح الكرماني:٣/١١٤عمدة القاري:٣/٢٩١ المنهاج: ٤/٢٢٧.
۶) شرح الكرماني:٣/١١٤عمدة القاري:٣/٢٩١ المنهاج: ٤/٢٢٧.
۷) الكوثر الجاري:١/٤٠٨.
۸) عمدة القاري:٣/٢٩١.
۹) شرح ابن بطال: ١/٣٨٠شرح الكرماني:٣/١١٤.

⑧ دَمسلمانانو په دې خبره باندې اجماع ده چه دَ اودس اوغسل دَ پاره دَ اوبوڅه خاص مقدار لازمى اوضرورى نه دې په دې کښې دَطبائع فرق دې دَ چادپاره چه څومره مقدار (که لږ وى اوکه زيات وى) کافى شى هغه صحيح دې.[1]

⑨ دَعلماؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه (دَ اودس اوغسل) اوبوکښې اسراف منع دې اګر چه طهارت حاصلونکې دَ نهر په غاړه ولې نه وى.[2]

## ٣- باب: الْغُسْلِ بِالصَّاعِ وَنَحْوِهِ

## صاع اودَدې په شان لوښوسره غسل کول

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې ترجمة الباب په مقصد کښې دَ شراح حديث نه متعدد اقول نقل دى.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله توجيه:** دَحافظ ابن حجر رحمه الله په نيز ترجمة الباب مقصد صاع اودَدې برابر لوښى دَكولوسره غسل كول بيانول دى. هغه فرمائى: «باب الغسل بالصاع ونحوه أي: بملء الصاع ونحوه أي مايقاربه» [4] يعنى صاع اودَدې برابر لوښى دَكولوسره غسل كولوبيان كښې.

**دَعلامه عينى رحمه الله رائې:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَامام بخارى رحمه الله مقصد په دې باب سره غسل بالماء اودَ ډك شوى صاع په اندازه اوبوسره دَ غسل كولوحكم بيانول دى. ځكه چه صاع خودَ لرګى نه جوړشوى يولوښى ته وئيلى شى دا (نفس صاع) سره غسل ممكن نه دې (البته په دې كښې موجود اوبو سره غسل كولې شى).[5] دَصاحب تحفه علامه زكريا انصارى رحمه الله اوعلامه قسطلانى رحمه الله هم دغه رائې ده.[6]

**دَعلامه ابن رجب حنبلى رحمه الله رائې:** دَ علامه ابن رجب حنبلى رحمه الله په نيز هم دَترجمة الباب مقصد داخودل دى چه دَ غسل دَ اوبو په مقداركښې څه تحديدنشته دې. بلكه دَ صاع او دې په شان لوښو سره نيزدې چه څومره اوبوسره غسل كولې شى يعنى تقريب مراددې تحديدنه دې.[7]

**دَ شيخ الحديث مولانازكريا رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى: «لعله إشارة إلى أن تحديد الصاع الوارد في الأحاديث ليس بحتم، بل المراد التقريب، كما يدل عليه لفظ الحديث: "بإناء نحو صاع" ولذا ذكر في الترجمة ونحوه، وهو الأوجه» [8]

امام بخارى رحمه الله په ترجمه كښې ونحوه لفظ زياتولوسره دَدې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه په احاديثوكښې چه كوم دَ صاع لفظ (غسل النبى صلى الله عليه وسلم باره كښې) واردشوې دې هغه

---

1) المنتقى: ١/٣٩٤ أوجز المسالك: ١/٥٠٠.
2) فتح المالك بتبويب التمهيد لابن عبدالبر على مؤطأ الإمام مالك: ١/٣٢٨ المنهاج: ٤/٢٢٧ أوجز المسالك: ١/٥٠٢.
3) المنهاج للنووى: ٤/٢٢٧.
4) فتح البارى لابن حجر: ٢/٤٨١.
5) عمدة القارى: ٣/٢٩١.
6) تحفة البارى: ١/٢٢٠ إرشادالسارى: ١/٤٩٠.
7) فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ١/١٤٤.
8) الأبواب والتراجم، ص: ٦٠ الكنزالمتوارى: ٣/١٩١.

دَتحديد دَپاره نه دي بلكه مراد دَدې نيزدې نيزدې دې لكه دَ حديث الفاظ "بإناء نحو صاع" په دې باندې دلالت كوی هم دغه توجيه اوجه ده. علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله هم دا توجيه اختيار كړې ده.(۱)

**دَ شيخ الحديث رحمه الله بيان كړې شوې يو بل احتمال:** شيخ الحديث حضرت زكرياكاندهلوى رحمه الله يو بل احتمال هم بيان كړې دې: ((ويحتمل أنه أراد الرد على من قال: أن ذكر الصاع بيان للإناء لا الماء))(۲) په دې كښې داحتمال هم دې چه امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب ځكه قائم كړو چه په هغه خلقو باندې رد اوكړې شی ځوك چه دا وائى چه په حديث كښې دَ صاع نه لوښې بيانول مقصود دې نه چه دَ اوبو (مقدار).

**دَ علامه انور شاه كشميرى رحمه الله توجيه:** حضرت علامه شاه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله غسل بالصاع عنوان دَدې دَخاص اهميت ښكاره كولو او په احاديثوكښې دَدې دَ وارد كيدو په وجه قائم كړې دې چه كوم امور دَ حضورپاك په تعامل سره ثابت وى هغې ته خاص اهميت وركول او ښكاره ذكركول ډير مناسب دى.

دَ ائمه مجتهدين نه امام محمد رحمه الله چه كوم كوم اعتناء او اهتمام دَدې امر كړې دې هغه بل چا نه دې كړې ځكه چه هغه دَ حديث اودَدې اثر په اتباع كښې دَ صاع مقدار دَ غسل دپاره (اودَ مُد مقدار دَ اودس دَپاره) معتبر گرځولې دې سره دَدې چه دَ دې مقصود هم تحديد اوتوقيت نه دې.(۳)

**دَ صاع وضاحت:** صَاعٌ، صِوَاعٌ (بالكسر والضم) او صَوْعٌ په لغت كښې پيمانه ته وائى دَدې جمع أصوعٌ، أصْوُعٌ (همزه سره) صُوعٌ او صِيعَانٌ هم راځى.(۴)

**دَ فقهاؤ په نيزدَ صاع مفهوم:** دَ فقهاؤ په اصطلاح كښې صاع يوې پيمانې ته وائى چه په خرځولو اواخستلو كښې دَ اندازې دَپاره استعماليږى. دَ ډيرو زياتو شرعى احكاماتو مدار هم په دې باندې دې. بعض حضراتو وئيلى دى چه صاع يولوښى ته وائى په كوم كښې چه اوبه ځكلې شى.(۵)

دواړه خبرې صحيح دى چه صاع كله دَ پيمانه اوكله دَ ځكلو دَ لوښى په توگه استعماليږى او بعض وخت دَدواړو كارونو دَپاره استعماليږى.

ابن منظور رحمه الله دَعزيزمصر دَصاع باره كښې هم دغه نقل كړى دى چه هغه دَپيمانه او ځكلو دواړو كارونو دَپاره استعمالولې شوه.(۶)

**دَ صاع مقدار:** دَ ټولو فقهاء كرامو په دې باره كښې اتفاق دې چه صاع يوه داسې پيمانه ده په كوم كښې چه څلور مُد راځى ليكن دَ مُد په مقداركښې اختلاف دې. امام شافعى رحمه الله اودَ حجاز فقهاء دې ته دَ يورطل او دريمې حصې برابر وائى.

خوا مام ابوحنيفه رحمه الله او فقهاء عراق په نيزيومُد دوه رطل عراقى برابر دې. لهذا دَ شوافع په نيزيوصاع پنځه رطل اوثلث وى اودَاحنافو په نيزدَ اتو رطل وى.(۱)

---

۱) فضل البارى:۲/۴۲۸.

۲) الأبواب والتراجم، ص:۶۰الكنزالمتوارى:۳/۱۹۱.

۳) فيض البارى:۱/۴۵۳.

۴) القاموس المحيط ص:۶۶۶ لسان العرب:۷/۴۴۲ الصحاح ص:۶۰۷.

۵) الموسوعة الفقهية:۲۷/۳۰۴، ۳۸/۲۹۶ القاموس المحيط ص:۶۶۶ الصحاح ص:۶۰۷.

۶) لسان العرب:۷/۴۴۲.

د دې مسئلې ټول تفصیلات کتاب الوضوء باب الوضوء بالمد لاندې اوګورئ.

## الحديث الأول

٢٥١-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ: حَدَّثَنِي شُعْبَةُ [ص: ٤٠]، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ، يَقُولُ: دَخَلْتُ أَنَا وَأَخُو عَائِشَةَ عَلَى عَائِشَةَ، فَسَأَلَهَا أَخُوهَا عَنْ غُسْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَدَعَتْ بِإِنَاءٍ نَحْوًا مِنْ صَاعٍ، فَاغْتَسَلَتْ، وَأَفَاضَتْ عَلَى رَأْسِهَا، وَبَيْنَنَا وَبَيْنَهَا حِجَابٌ» قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَبَهْزٌ، وَالجُدِّيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، «قَدْرِ صَاعٍ» [حديث باب] (١)

ترجمه: حضرت ابوسلمه رحمه الله فرمائي چه زه او د حضرت عائشه رضي الله عنها (رضاعي) رور د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها خدمت ته لاړو. د هغې رور د هغې نه د رسول الله ﷺ د غسل باره کښې پوښتنه اوکړه (چه حضور ﷺ به غسل څنګه کولو) نوهغوی (حضرت عائشه رضي الله عنها) د صاع په شان يو لوښي (د اوبو) راؤغوښتلو بيائې غسل اوکړو او په خپل سر باندې اوبه اوبهيولې هغه وخت زمونږ او د هغوی په مينځ کښې يوه پرده لګيدلې وه.

ابوعبدالله (امام بخاري رحمه الله) وائي چه يزيد بن هارون او بهز او جدی د شعبه نه قدر صاع (د يو صاع په اندازه) الفاظ نقل کړي دي.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** (٣) دا ابوجعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله بن جعفر بن يمان بن اخنس الجعفي، البخاري، المسندي دې. (٤)

**د مسندي وئيلو وجه:** دوی ته مسندي ځکه وئيلې شي چه دوی به هميشه د مسند احاديثو په لټول او کوشش کښې وو. مراسيل او منقطعات سره د هغوی هيڅ رغبت نه وو. (٥) امام حاکم رحمه الله فرمائي دوی ته مسندي وئيلو وجه داده چه هغوی په ماوراء النهر کښې د ټولونه اول د حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم مسانيد جمع کړي وو. (٦)

---

(١) عمدة القاري: ٣/٢٩٢-٢٩٢ النهاية: ٢/٥٩ مجمع بحار الأنوار: ٣/٣٦٧.

(٢) الحديث أخرجه مسلم في صحيحه كتاب الحيض باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة، وغسل أحدهما بفضل الآخر رقم: ٤٢٨، والنسائي في سننه، كتاب الطهارة، باب ذكر القدر الذي يكتفي به الرجل من الماء للغسل، رقم: ٢٢٧، وانظر جامع الأصول رقم: ٥٣٣٣ وكذلك تحفة الأشراف رقم: ١٧٧٩٢.

(٣) د دوی مختصر حالات كشف الباري كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان لاندې تير شوی دی اوګورئ كشف الباري: ١/٦٥٧.

(٤) تهذيب الكمال: ١٦/٥٩ تهذيب التهذيب: ٦/٩ إكمال تهذيب الكمال: ٨/١٧٣ سير أعلام النبلاء: ١٠/٦٥٨

(٥) تهذيب الكمال: ١٦/٦٠ سير أعلام النبلاء: ١٠/٦٥٩

(٦) تهذيب التهذيب: ١٠/٦ إكمال تهذيب الكمال: ٨/١٧٣.

**اساتذه و شیوخ:** دَهغوی په شیوخ کښې ابراهیم بن عمر ابوالوزیر، ازهر بن سعد السمان، حسین بن علی الجعفی، حسین بن محمد المروزی، حفص بن غیاث، سفیان بن عیینه، سلیمان بن حرب، ابوداؤد سلیمان بن داؤد الطیالسی، ابوعاصم الضحاك بن مخلد، عبدالرحمن بن مهدی، عبدالرزاق بن همام، عبدالصمد بن عبدالوارث، ابوعلی عبیدبن عبدالمجید الحنفی، فضیل بن عیاض، معتمر بن سلیمان، وکیع بن الجراح، یحیی بن معین، یعقوب بن ابراهیم بن سعد، حرمی بن عمارة، ابوعامر العقدی، یحیی بن آدم، وهب بن جریر، زهیر بن حرب، عمر بن علی، ابوعوانه، یوسف بن الماجشون، فضیل بن سلیمان، عبیدالله بن ثور او یونس بن محمد المودب وغیره رحمهم الله شامل دی.(۱)

**تلامذه:** ددوی نه روایت کونکو کښې امام بخاری، امام مسلم، ابراهیم بن محمد مروزی، عبدالله بن عبدالرحمن الدارمی، ابوزرعه عبیدالله بن عبدالکریم الرازی، ابوحاتم محمدبن ادریس الرازی، محمد بن نصر المروزی، محمدبن یحیی الذهلی، الحسن بن سفیان، محمد بن احمد ابن هارون المصیصی وغیره رحمهم الله شامل دی.(۲) صاحب الزهرة وائی چه امام بخاری رحمه الله دَ عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله نه ۴۲ روایات نقل کړی دی.(۳)

**دَ جلالت شان اوتوثیق کښې دَ ائمه اقوال:** احمدبن سیار مروزی رحمه الله وائی چه ابوجعفر مسندی رحمه الله خپله علاقه پریخوده او دَدنیا په مختلفو ښارونو کښې دَ حدیث په طلب کښې اوسیدلو. هغه به دَمسندی په لقب سره یادولې شو اوهغه په اهل عدالت اوصدق کښې مشهوروو صاحب سنت وجماعت وو. اتفاق اوضبط دَهغوی پیژندګلووه.

مروزی رحمه الله وائی چه ماهغه په واسط کښې اولیدلو ښکلې قدوقامت دَ سرویښته سپین او په ږیره لږشان توروالې اودَسکون اووقار والاوو.(۴)

امام حاکم رحمه الله فرمائی عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دَ خپلې زمانې ماوراء النهر بلامقابله امام المحدثین وو(۵)ابوحاتم رحمه الله فرمائی صدوق.(۶)ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَدوی تذکره کړې ده اوفرمائی وکان متقناً.(۷)یعنی عبدالله بن محمد متقن وو. علامه الخلیل رحمه الله فرمائی الثقة المتفق علیه.(۸)

خلف بن عامر رحمه الله دَامام بخاری رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی چه ماته حسن بن شجاع اووئیل تاسو نه حدیث څنګه پاتې کیدې شی چه ته دَهغه خزانه یعنی عبدالله بن محمد رحمه الله په صحبت کښې اوسیږې.(۹)

---

(۱) تهذیب الکمال:۱۶/ ۶۰-۵۹ تهذیب التهذیب:۶/۹الجرح والتعدیل:۵/۱۹۸سیرأعلام النبلاء:۱۰/۶۵۹.
(۲) تهذیب الکمال:۱۶/ ۶۰-۵۹ تهذیب التهذیب:۶/۹الجرح والتعدیل:۵/۱۹۸سیرأعلام النبلاء:۱۰/۶۵۹.
(۳) إکمال تهذیب الکمال:۸/۱۷۳ تهذیب التهذیب:۶/۱۰.
(۴) تهذیب الکمال: ۱۶/۶۱ تهذیب التهذیب:۶/۹ سیرأعلام النبلاء:۱۰/۶۵۹.
(۵) تهذیب التهذیب:۶/۱۰إکمال تهذیب الکمال: ۸/۱۷۳سیرأعلام النبلاء:۱۰/۶۵۹.
(۶) الجرح والتعدیل: ۵/۱۹۸تهذیب الکمال:۱۶/۶۱تهذیب التهذیب:۶/۹.
(۷) کتاب الثقات:۸/۳۵٤تهذیب الکمال:۱۵۶/۶۱ تهذیب التهذیب:۶/۹.
(۸) تهذیب التهذیب:۶/۱۰إکمال تهذیب الکمال: ۸/۱۷۳
(۹) تاریخ بغداد:۱۰/۶۶تهذیب ا الکمال۱۶/۶۱سیرأعلام النبلاء: ۱۰/۶۶۰.

**وفات:** محمدبن احمدبن محمد رحمه الله بن سلمیان الحافظ فرمائی «توفی یوم الخمیس بست بقین من ذي الحجة سنة تسع وعشرین ومئتین»[1] یعنی عبدالله بن محمد رحمه الله دَ زیارت په ورځ ۲۴ ذی الحجه ۲۲۹هجری کښې وفات شوې. امام بخاری رحمه الله دَ ذی ا لحجه په ځائې ذوالقعده دَ وفات میاشت ګرځولې ده. هغوی فرمائی «مات یوم الخمیس أول النهار، بست بقین من ذي القعدة سنة تسع وعشرین ومئتین» [2]یعنی عبدالله بن محمد دَ زیارت په ورځ دَ سحر وخت ۲۴ذوالقعده ۲۲۹هجر کښې وفات شوې. دَ ابن حبان هم دغه رائې ده.[3] علامه ذهبی رحمه الله هم دا اختیارکړې دې.[4]

**عبدالصمد:** دا عبدالصمدبن عبدالوارث بن سعیدبن ذکوان تمیمی عنبری تنوری بصری رحمه الله دې. دَدوی احوال کشف الباری کتاب العلم باب من أعاد ثلاثاً لیفهم عنه ړومبې حدیث لاندې تیرشوی دی.[5]

**شعبة:** دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج بن الوردی عتکی واسطی بصری رحمه الله دې. تول ائمه دَ دوی په جلالت شان اوامامت باندې متفق دی. دَدوی مختصر حالات **کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده** دَ ړومبې حدیث لاندې تیرشوی دی.[6]

**ابوبکربن حفص:** دا ابوبکرعبدالله بن حفص بن عمر بن سعدبن ابی وقاص قرشی زهری مدنی دې. دې په خپل کنیت ابوبکرسره مشهوردې.[7]

**شیوخ حدیث:** دَدوی په شیوخ حدیث کښې انس بن مالك، حسن بن حسن بن علی بن ابی طالب دَدوی پلار حفص بن عمر بن سعید بن ابی وقاص، سالم بن عبدالله بن عمر، سلمان الاغر، شرحبیل بن السمط، عبدالله بن حسن بن حسن بن علی بن ابی طالب، عبدالله بن حسین، عبدالله بن عامر بن ربیعه، عبدالله بن عمر بن الخطاب، عبدالله بن محریز، عروه بن الزبیر، عمر بن سعدبن ابی وقاص، محمدبن مسلم بن شهاب زهری، ابوسلمه بن عبدالرحمن، ابوعبدالله مولی بنی تیم بن مره، ابومصبح مقرائی رحمهم الله دی.[8]

**تلامذه:** دهغوی نه روایت کونکوکښې ابان بن عبدالله بجلی، بدر بن عثمان، بلال بن یحیی عبسی، حریث بن ابی مطر، زید بن ابی أنیسه، سعیدبن ابی بردة بن ابی موسی، امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج، عبدالله بن عثمان بن خثیم، عبدالرحمن بن عبدالله مسعودی، عبدالملك بن جریج ، قیس بن سلیم غنبری، محمد بن سوقه، ابوغسان محمدبن مطرف، مسعر بن کدام، المفضل بن لاحق، منصور بن المعتمر او ابواسرائیل ملائی رحمهم الله شامل دی.[9]

---

[1]) تاریخ بغداد:۶۶/۱۰إکمال تهذیب الکمال: ۱۷۳/۸.
[2]) تهذیب الکمال۶۱/۱۶تهذیب التهذیب:۹/۶ سیرأعلام النبلاء:۶۶۰/۱۰تاریخ بغداد: ۶۶/۱۰
[3]) کتاب الثقات:۳۵۴/۸.
[4]) سیرأعلام النبلاء:۶۵۹/۱۰
[5]) کشف الباری:۵۷۸/۳-۵۷۷.
[6]) کشف الباری:۶۷۸/۱
[7])التاریخ الکبیر:۷۶/۵رقم الترجمة:۲۰۰ تهذیب الکمال:۴۲۳/۱۴الجرح والتعدیل:۴۲۱/۵تقریب التهذیب ص ۳۰۰: رقم:۳۲۷۷.
[8]) تهذیب الکمال:۴۲۳/۱۴الجرح ولتعدیل:۴۲/۵ میزان الاعتدال:۴۰۹/۲.
[9]) تهذیب الکمال:۴۲۴/۱۴ الجرح والتعدیل:۴۲/۵میزان لاعتدال: ۴۰۹/۲.

**جلالت شان اوتوثيق کښې دَائمه اقوال:** ابوبکربن حفص رحمه الله تابعي دي دَدوي شمير په طبقه خامسه کښې کيږي[1] امام نسائي رحمه الله دَدوي توثيق کړې دی هغه فرمائی ثقة[2] ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَدوي تذکره کړې ده اوفرمائی کان راويا للعروة.[3] يعني ابوبکر بن حفص عروة بن الزبير نه روايت کوی.

امام عجلی رحمه الله معرفة الثقات کښې دَدوی تذکره کړې ده اوهغه ئې ثقه ګرځولي دي.[4] حافظ ابن حجر رحمه الله تقريب التهذيب کښې ليکلی دی چه هغه ثقه دي.[5] علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((کان من أهل العلم والثقة، أجمعوا على ذلك)) [6] يعنی ابوبکربن حفص رحمه الله اهل علم اوثقه خلقو نه وو دَ انمه په دې باندې اجماع ده.

**ابوسلمة:** داابوسلمه عبدالله بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې دَمشهور صحابي رسول حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ځوئی دې اودَمديني منورې فقهاسبعه نه يوفقيه اومشهور تابعي او محدث دې. دَدوی تفصيلی حالات کتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابا من الايمان رومبي حديث لاندې ذکرکړې شوی دی.[7]

## شرح حديث:

**قوله: سمعتُ أباسلمة يقول: دخلت أنا وأخوعائشة على عائشة رضي الله عنها**

(حضرت ابوسلمه فرمائي) څه او دَحضرت عائشه رضي الله عنها (رضاعی) رور دَحضرت عائشه رضي الله عنها په خدمت کښې حاضر شو.

**دَ يقول اعراب:** علامه عينی رحمه الله فرمائی چه **يقول** دَحال کيدودَ وجې نه محلاً منصوب دې. خکه چه دَ صحيح قول مطابق **سمعت** صرف دَيومفعول طرف ته متعدی کيږی[8] علامه قسطلانی رحمه الله همداحال ګرځولې دي[9]

البته دکوموحضراتوپه نيز چه **سمعت** ددوو مفعولونوطرف ته متعدی کيږی لکه چه د ابوعلی فارسی قول دې. دهغوی په نيز **يقول** (جمله) مفعول ثانی کيدو دَ وجې نه به محلاً منصوب وی.[10]

---

[1] تقريب التهذيب ص:۳۰۰.

[2] تهذيب الكمال:۱٤/٤۲٤ ميزان الاعتدال:۲/٤۰۹.

[3] كتاب الثقات:٥/۱۲ تهذيب الكمال:۱٤/٤۲٤.

[4] معرفة الثقات باب الباء الموحدة: ۲/۳۸۷ مكتبة الدار بالمدينة المنورة.

[5] تقريب التهذيب ص:۳۰۰۹ رقم الترجمة: ۳۲۷۷.

[6] إكمال تهذيب الكمال: ۷/۳۰۸ تهذيب التهذيب:٥/۱۸۹.

[7] كشف الباري:۲/۳۲٥-۳۲۳.

[8] عمدة القاري:۳/۲۹۳.

[9] إرشاد الساري:۱/٤۹۰.

[10] عمدة القاري:۳/۲۹۳.

**قوله** ::**أخوعائشة:** حديث باب كښې أخوعائشة نه كوم يورور مراددې حقيقى يا بل يو؟ دَ شراح حديث په دې باره كښې اختلاف دې دَ داؤدى په نيز أخوعائشة نه عبدالرحمن بن ابى بكر الصديق (دَحضرت عائشه رضي الله عنها حقيقى رور) مراد دې.[1] بعض حضراتو وئيلى دى أخوعائشة نه دَحضرت عائشه رضي الله عنها اخيافى (دَموربشريك) رور الطفيل بن عبدالله مراددې.[2] حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينى رحمه الله او علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى دا دواړه اقوال صحيح نه دى.[3]

**اخوعائشه نه رضاعى رور مراد دې:** صحيح خبره دا ده چه په حديث باب كښې اخوعائشه نه دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها رضاعى رور مراد دې لكه چه امام مسلم رحمه الله په طريق معاذ، امام نسائى رحمه الله په طريق خالد بن الحارث او ابوعوانه رحمه الله په طريق دَ يزيدبن هارون، امام شعبه رحمه الله نه روايت كړې دې په كوم كښې چه ((أخوهامن الرضاعة)) (دَ حضرت عائشه رضي الله عنها رضاعى رور) صراحت موجود دې.[4]

**دَ رضاعى رور نه څوك مراددې؟:** امام نووى رحمه الله فرمائى چه دلته دَ رضاعى رور نه عبدالله بن يزيد مرا ددې.[5]

دَدې دليل دَ امام مسلم رحمه الله هغه روايت دې كوم چه هغه كتاب الجنائز كښې ابوقلابه عن عبدالله بن يزيد رضيع عائشه نه كتاب الغسل والاروايت نه علاوه يوبل روايت سره نقل كړې دې.[6]

**دَ حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله ليكلى دى چه دَامام مسلم رحمه الله دَ دې (پورته ذكرشوى) روايت نه دا نه لازميږى چه دلته په حديث باب كښې هم دغه عبدالله بن يزيد مراد وى ځكه چه دَ حضرت عائشه رضي الله عنها يو بل رضاعى رور كثير بن عبيدهم دې. امام بخارى رحمه الله الأدب المفرد كښې [7] اوامام ابوداؤد رحمه الله په خپل سنن كښې [1] دَهغه ځوئى سعيدبن كثير په طريق باندې دَهغه نه روايت نقل كړې دې.

---

[1]) فتح البارى:۴۸۱/۲عمدة القارى:۲۹۳/۳.

[2]) فتح البارى:۴۸۱/۲عمدة القارى:۲۹۳/۳.

[3]) حواله سابق إرشاد السارى:۴۹۱/۱.

[4]) قد مر تخريج الحديث لمسلم والنسائى آنفاً تحت حديث الباب، وأما حديث أبوعوانة فقد رواه فى مسنده فى كتاب الطهارة باب الأوانى التى كان يغتسل منها رسول الله صلى الله عليه وسلم من الجنابة وصفة غسل رأسه من الجنابة دون سائر جسده: ۲۴۷/۱رقم:۸۴۹ دارالمعرفة بيروت، الطبعة الأوالى ۱۴۱۹ه-۱۹۹۸م.

[5]) المنهاج: ۲۲۹/۴ فتح البارى:۴۸۱/۲عمدة القارى:۲۹۳/۳إرشاد السارى:۴۹۰/۱.

[6]) رواه مسلم فى كتاب الجنائز باب من صلى عليه أربعون شفعوا فيه رقم:۹۴۷ ولفظه عن أبى قلابة عن عبدالله بن يزيد رضيع عائشة عن عائشة عن النبى صلى الله عليه وسلم قال: "ما من ميت يصلى عليه أمة من المسلمين يبلغون مائة، كلهم يشفعون له، إلا شفعوا فيه".

[7])أخرجه البخارى فى الأدب المفرد فى باب الرفق فى المعيشة ص:۱۲۷ رقم: ۴۷۳ دارالسلام بيروت، وقال: حدثنا حرمى بن حفص قال حدثنا عبدالواحد قال حدثنا سعيد بن كثير بن عبيد قال حدثنى أبى قال: دخلت على عائشة أم المؤمنين رضى الله عنها فقالت: أمسك حتى أخيط نقبتى، فأمسكت، فقلت: يا أم المؤمنين الوخرجت فأخبرتهم لعدّوه منك بخلاً، قالت: أبصر شانك إنه لاجديد لمن لا يلبس الخلق.

بیاعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه دلته دَدوی نه یوهم متعین نه دي أخوها (اطلاق) نه دا اقرب دي چه عبدالرحمن بن ابوبکر رحمه الله مرادوی (سره ددي چه دمسلم وغیره نه معلومه شوه چه دا رضاعی رور وو) اودمسلم وغیره دَ بل روایت نه دا نه لازمیږی چه هغه عبدالله بن یزیدوی ځکه چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه چه چادَ رسول الله ﷺ دَ غسل باره کښې سوال کړي وو دا ضروری نه ده چه هم هغه دې وی دَچانه چه امام مسلم رحمه الله په طریق دَ ابوقلابه کتاب الجنائز کښې روایت نقل کړې دې. نولکه چه خلاصه داشوه چه ((أخوها)) نه څوك متعین کس مرادنه دي دَدغه دواړو رضاعی رونړونه هم څوك کیدېشي او دَدوی نه علاوه هم څوك (رور) کیدې شي.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائیل چه عبدالله بن یزید بصری دي اوکثیربن عبید کوفی دې نو أخوها کښې دَدې خبرې هم احتمال شته چه دَدغه دواړو نه یومرادوی یادَدې دواړونه علاوه بل څوك وی.[2]

علامه شبیر احمدعثمانی رحمه الله فتح الملهم کښې دا توجیه اختیارکړې ده.[3]

**دَ اخوعائشه دَعطف سره متعلق بحث:** دَ أخوعائشة عطف دخلت کښې ضمیرمرفوع دَ متصل دکولو دَپاره أنا ضمیر مرفوع منفصل دَ تاکیدپه توګه راوړلې شو دې دَپاره چه دَ أخوعائشة عطف د خلت باندې صحیح شي. ځکه چه دَنحو قاعده ده چه ضمیرمرفوع متصل (که بارز وی اوکه مستتر) باندې عطف صحیح کولودَپاره ضروري دی چه دَدې نه پس د تاکیددپاره ضمیر مرفوع منفصل راوړلې شی.[4] لکه چه ﴿لَقَدْ كُنتُمْ أَنتُمْ وَآبَاؤُكُمْ﴾[5] کښې دَ آباءکم عطف کولودَپاره أنتم ضمیر مرفوع منفصل دَ تاکید دَپاره راوړلې شوې دې.[6]

**قوله:: فسئالها أخوها عن غسل النبي صلى الله عليه وسلم:** دَحضرت عائشه رضي الله عنها رضاعی رور دَهغې نه دَ رسول الله ﷺ دَ غسل باره کښې پوښتنه اوکړه. ابوذر، ابوالوقت، آصیلی او ابن عساکر په نسخوکښې غسل النبي په ځائې غسل رسول الله صلى الله عليه وسلم الفاظ دی.[7]

**قوله:: فدعت بإناء نحواً من صاع:** حضرت عائشه رضي الله عنها دَصاع په شان یولوښې (داوبو) راوغوښتلو. دَعَت، دلته طَلَبَتْ په معنی کښې دې یعنی راوئی غوښتلو.[8]

**دَ نحواً اعراب:** دَ کریمه په روایت کښې نحواً منصوب دې او دَ باقی حضراتو په روایت کښې تنوین سره مجروردې.[9] دَ مجرور کیدو په صورت کښې نحو دَ إناء صفت جوړیږی (تقدیری عبارت به داسې شی فَدَعَتْ بإناءٍ نحوٍ كائنٍ من صاعٍ)[10]

---

[1] عمدة القاری:۳/۲۹۳.

[2] فتح الباری:۲/۴۸۱.

[3] فتح الملهم:۳/۷۸.

[4] عمدة القاری:۳/۲۹۳إرشادالساری:۱/۴۹۱.

[5] سورة الأنبیاء:۵٤ الشعراء:۷٦.

[6] عمدة القاری:۳/۴۹۱.

[7] إرشاد الساری:۱/۴۹۱.

[8] شرح الکرمانی:۳/۱۱٤.

[9] فتح الباری:۲/۴۸۱عمدة القاری:۳/۲۹۳ إرشادالساری:۱/۴۹۱.

دَمنصوب كيدو په صورت كښې دوه احتماله دي: ① نحواً به، صفت جوړيږي دَ إناء او إناء دَ دَعَتْ مفعول به كيدو دَ وجې نه محلاً منصوب وي. (تقديري عبارت، به داسې شی فدعت بإناء نحواك انأمن صاع) ② دويم احتمال دادې چه نحواً دَ أعني فعل محذوف مفعول به وي (نوتقديري عبارت به داسې شی فدعت بإناء أعني نحواكانأمن صاع)[1] منصوب اومجرور دواړو حالتونوكښې به مفهوم هم يووی يعنی حضرت عائشه رضي الله عنها دَ صاع په شان يولوښې راؤغوښتو.

**قوله:: فاغتسلت وأفاضت على رأسها وبيننا وبينها حجاب:** هغې (حضرت عائشه رضي الله عنها) غسل اوكړو او په خپل سرباندې ئې اوبه اوبهيولې په داسې حال، كښې چه زمونږ اودهغې په مينځ كښې پرده وه. أفاضت: أفاضت أى أسالت الماء على رأسها يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها په خپل سرباندې اوبه اوبيهولې[2] په كثرت سره اوبه بهيولوته أفاض الماء وائي[3] أفاضت على رأسها داجمله فاغسلت دَپاره دَ تفسير په شان ده.[4] مطلب دا شوه چه حضرت عائشه رضي الله عنها لكه چه دَغسل شروع په سرباندې دَ اوبو بهيولونه اوكړو.

**قوله:: بيننا وبينها حجاب:** راوی وائی چه زمونږ اودَ حضرت عائشه رضي الله عنها په مينځ كښې پرده وه. بيننا وبينها حجاب صراحت نه منكرين حديث او روافض وغيره ټول مزعومه اعتراضات ختميږي.[6] بيننا وبينها حجاب، داجمله (دَ كوفيانو په نيز) فاغتسلت نه او (بصريانو په نيز) أفاضت نه حال واقع كيږي.[7]

**دَ راوي سائل اوحضرت عائشه رضي الله عنها خپل مينځ كښې رشته اوتعلق:** حضرت عائشه رضي الله عنها دَ حديث باب دَ راوي حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن ترور ده. څكه چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها خور ام كلثوم بنت ابى بكر رضي الله عنها ابوسلمه له پيئې وركړې وو. دادَهغې رضاعی خوئې وو. دغه شان دَ رسول الله ﷺ دَ غسل باره كښې تپوس كونكې دَحضرت عائشه رضي الله عنها رور وو. سره دَدې چه دَدې خبرې تعيين نه دې شوې چه هغه ئې حقيقي رور وو كه رضاعی رور ئې وو.[8]

**دَ روافض او منكرين حديث بې ځايه اعتراض:** بعض خلق روافض او منكرين حديث دَ امام بخاري رحمه الله دَدې روايت په شان په ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها باندې دَ بې ځايه اعتراض كولو

---

[1] فتح البارى:٤٨١/٢ عمدة القارى:٢٩٣/٣ إرشادالسارى :٤٩١/١ التوشيح على الجامع الصحيح للسيوطى:٢٤٣/١.

[2] فتح البارى: ٤٨١/٢ عمدة القارى:٢٩٣/٣ إرشاد السارى:٤٩١/١ التوشيح على الجامع الصحيح للسيوطى: ٢٤٣/١.

[3] عمدة القارى:٢٩٣/٣.

[4] المغرب فى ترتيب المعرب:١٥٤/٢ لسان العرب:١٠/٣٦٦ الصحاح للجوهرى ص:٨٣٠ النهاية لابن الأثير:٤٠٤/٢.

[5] عمدة القارى:٢٩٣/٣.

[6] سيأتى التفصيل.

[7] عمدة القارى:٢٩٣/٣.

[8] شرح الكرمانى:١١٤/٣ فتح البارى للعسقلانى:٤٨١/٢ عمدة القارى:٢٩٣/٣ المنهاج للنووى:٢٢٩/٤.

کوشش کوی چه امام بخاری رحمه الله دَ هغې طرف ته په حدیث کښې دا منسوب کړی دی چه هغې خلقوته غسل کولو سره اوخودل. دا نعوذبالله دَ بې حیایئی خبره ده ځکه چه که دغه خلقوته عملاً خودل وو نودَ پردې لګولوڅه ضرورت وو اوکه چرې ښکاریدل نودَمعترض مدعابه ثابته شی چه داسې کول دبې حیایئی په زمره کښې راځي. دَایمان دَ حقیقت نه محروم دا بې بصیرت اودَ صحابه کرامو دښمنان طعن کونکی خلق صحابه رضی الله عنهم دپاره احادیثونه دځپلې خوښې مفهوم راویستلودپاره دیر دَ غلطې طریقې استعمالولونه هم نه منع کیږی سره ددې چه دهغوی داعتراض کولو هډو څه بنیادهم نه وی.بهرحال ددې مزعومه اعتراض دَ جواب نه وړاندې دَ تمهیدپه توګه دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها مختصراً علمی مقام اوحضرات صحابه کرامو اودَ تابعینو دَ شریعت دَمسئلو دَ پیژندلودپاره اودَمعلومولودپاره هغوی ته رجوع کول بیانول به مفیدوی.

**دحضرت عائشه رضی الله عنها علمی مقام اودَ صحابه کرامو دهغې طرف ته رجوع :** دَحضرت عائشه رضی الله عنها نه لوئې څوک دَ قرآن مجید، میراث اوحلال حرام دَ مسئلوماهرنه وو. عروه ابن الزبیر رضی الله عنه وائی چه ماحضرت عائشه رضی الله عنها نه لوئی څوک عالم نه دې لیدلې چه دَ قرآن پاك فرائض، حلال اوحرام، شعر، دَعربو واقعات او په انساب کښې دَهغې نه څوك ماهروی. (۱)

علامه ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه حضرت عائشه رضی الله عنها نه یوازې په ازواج مطهرات کښې بلکه دَټولو ښځونه زیات دَ دین علم لرلو. امام زهری رحمه الله فرمائي که چرې ټولې ازواج مطهرات اودَ ټولو ښځو علم یوطرف ته وی او بل طرف ته دَ حضرت عائشه رضی الله عنها علم وی نوهغه افضل دې یعنی دَهغوی نه زیات دې. (۲)حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه فرمائی چه دَ حضورپاك صحابه کرامو ته به کله دَ حدیث متعلق څه اشکال پیښیدو نودَ حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه په پوښتنه کولوسره به دَهغې حل ضرور راوتلو. (۳)

**دَ اعتراض جواب:** هم دَدې پس منظرلاندې دَ حدیث راوی ابوسلمه او حضرت عائشه رضی الله عنها رور دَ ام المؤمنین نه دَ حضورپاك دَ غسل (اوبو) باره کښې سوال اوکړو نوهغې دَ وضاحت اوکړو. په دې روایت کښې خونه امام بخاری رحمه الله دَ ام المؤمنین طرف ته څه غلطه خبره منسوب کړې اونه دَحضرت عائشه رضی الله عنها دَعمل نه څه داسې شك معلوم شوې دې. بلکه دَ راوی حدیث حضرت ابوسلمه رضی الله عنه الفاظ ((بیننا وبینها حجاب)) بالکل واضحه او بې دوړو خبره ده او په صراحت سره ښائی چه دَغسل عمل دَ پردې نه شاته اوشو په دې سره نه خو په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې څه الزام لګیدې شی او نه په امام بخاری رحمه الله باندې څه خبره راتلې شی.

دَمعترضینو دَ فاسدګمان برعکس امام بخاری داحدیث دَدې خبرې دَ وضاحت کولودپاره روایت کړې دې چه حضورپاك به دَ صاع په شان یولوښی سره غسل کولو او په دې باره کښې دَ اوبوڅه خاص تحدیدنشته دې لکه چه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب ((باب الغسل بالصاع ونحوه)) سره بالکل واضح اوښکاره دې. شراح حدیث دَداسې ممکنه مزعومه اعتراض دوه شان جواب ورکړې دې.

---

(۱) حلیة الأولیاء:۲/۵۰-۴۹.

(۲) البدایة والنهایة:۸/۹۷.

(۳) البدایة والنهایة:۸/۹۷.

**دَ قاضى عياض رحمه الله او امام قرطبى رحمه الله جواب:** رومبي جواب قاضى عياض رحمه الله او امام قرطبى رحمه الله وركړې دې كوم چه شراح حديث په عام توګه باندې نقل كړي دي چه دَحديث راوى ابوسلمه رضي الله عنه اوسائل دحضرت عائشه رضي الله عنها دَ محارم نه وو دَچاد پاره چه سر اودَ بدن پورتنئى حصه كتل جائزوو. دَحديث ظاهرى هم دغه دې چه دې حضراتو دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ غسل عمل اوكتلو يعنى سر وينځل اودَ بدن پورته حصه (سټ او اوږه وباندې) اوبه بهيولو مشاهده ئى اوكړه ځكه چه كه هغوى ددې مشاهده نه كوله نوبيادَحضرت عائشه رضي الله عنها اوبه راغوښتل دَهغوى په موجودګئى كښې دَغسل اوطهارت دَعمل كولو هيڅ معنى نه وه اوكه چرې عائشه صديقه رضي الله عنها په پرده كښې داعمل كولو نو زبانى خودلو او دې كښې به هيڅ فرق باقى نه پاتې كيدلو لهذا عائشه رضي الله عنها داعمل په پرده كښې پاتې كيدو سره اوكړو په داسې حال كښې چه دَ بدن هغه حصه (يعنى سر او اوږږ) نه علاوه دكوم طرف ته چه محرم له نظر كول جائزنه دى هغه پټ وو.(١) علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها په دې عمل سره دا ثابته شوه چه عملى تعليم اوتعلم مستحب دې ځكه چه دادَ زبانى تعليم نه زيات واضح او مؤثر وى.(٢)

**دَ علامه كورانى رحمه الله جواب:** علامه احمدبن اسماعيل بن عثمان بن محمد كورانى رحمه الله فرمائى چه دَ قاضى عياض رحمه الله وغيره جواب زما په نيزمحل نظردې ځكه چه دَ محارم دَ بدن پورتنئى حصې ته كتل سره ددې چه جائزدى ليكن داعام خلق هم نه خوښوى چه ددې نسبت مجسم حيا حضرت عائشه رضي الله عنها طرف ته اوكړې شى. باقى پاتې شوه خبره دَ لوښى نوهغه ئى ځكه اوغوښتلو چه دې سره دې حضراتو تهَ دَ حضورپاك دَغسل دَ اوبو مقدار اوښائى. هغې دَ دوې دَپاره باقاعاده غسل نه دې كړې كيدې شى چه دَهغې دَ وړاندې نه دَغسل كولو اراده وى او په اتفاقى توګه سره دا دواړه حضرات هم راغلې وى اودَ حضورپاك دَغسل باره كښې ئى تپوس اوكړو او په دې كښې هيڅ شك نشته دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها سره ددې چه په پرده كښې غسل اوكړو ليكن دادَ زبانى تعليم نه زيات ابلغ وو.(٣)

**دَ عرف او محاوره رعايت:** دَ شراح حديث ددې جوابونو نه يوطرف ته يوجواب داهم وركولې شى چه دَ حديث راوى كوم تعبيراختياركړې دى هغه دَعرف اوعام محاورې په بنياد باندې دې په دې سره دا نه لازميږى چه هغوى دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ غسل مشاهده هم كړې وى. ځكه چه په عرف كښې دَ چا نه كله داسې سوال كولې شې چه په څومره مقدار اوبوسره غسل كولې شى؟ يا فلانكى به په څومره اوبوسره غسل كولو؟ نوكه ددې په جواب كښې هغه په مخصوص لوښى كښې اوبوسره عملاً غسل كولوسره راشى او اوښائى چه په دومره مقدار سره ئى غسل كړې وو نو په دې سره دا نه لازميږى چه تپوس كونكو هغه ليدلې وى. دغه شان به دلته هم شوې وى. بل دا چه راوى پخپله دا وائى چه «وبيننا وبينها حجاب» يعنى زمونږ اودَهغې په مينځ كښې پرده وه نوبيادَخپل طرف نه دَ اعتراض كولو څه

---

(١) التوضيح لابن لملقن: ٥٥٥/٤شرح الكرمانى:١١٥/٣ فتح البارى:٤٨١/٢عمدة القارى:٢٩٢/٣ المنهاج: ٢٢٩/٤ فتح البارى لابن رجب الحنبلى:١٤٤/١.

(٢) عمدة القارى::٢٩٤/٣.

(٣) الكوثر الجارى إلى رياض أحاديث البخارى:٤١٠/١-٤٠٩.

ضرورت دي؟ دا بغيرددي نه چه هغه نفوس قدسيه سره دَ عداوت او دښمنئى دَ اظهار كولو نه بل هيڅ نه دى.[1]

دَدې نه علاوه كه دَدې حضراتو په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې نظرپريوتلې هم وى نو په دې كښې په شرعى نقطه نظر سره هيڅ حرج نشته دې. ځكه چه دا دواړه دَهغې دَمحارم نه دي اودَدوى دپاره دَ بدن پورتنئى حصې طرف ته نظر كول شرعاً جائزوو. (كمامر) اِن شاء الله وړاندې به دَدې مسئلې وضاحت راځى چه دَمحارم دپاره كوموانداموطرف ته نظر كول شرعاً جائز دى.

**دَابن رجب حنبلى رحمه الله او علامه ګنګوهى رحمه الله وضاحت:** بيا دَ شراح حديث نه علامه ابن رجب حنبلى رحمه الله او علامه رشيداحمد ګنګوهى رحمه الله دَدې خبرې وضاحت كړې دې چه حضرت ابوسلمه رضي الله عنه هغه وخت نابالغ اووړوكې ماشوم وو.[2] داخبره هم په معاشره كښې په عام توګه خوره ده چه دَ خاندان مشران خپلو كشرانوته ته دَ ډيرو زياتو خبرو عملى تعليم وركوى. كه چرته عائشه رضي الله عنها دَ خپل محارم نه يوماشوم ته په پرده كښې پاتې كيدو سره دَ حضورپاك دَغسل تعليم وركړې دې نو په دې كښې څه حرج دې اوكه چرې دَ هغه نظر هم پريوتلې وى نودَ بدن په هغه حصه باندې دكوم چه دَ محارم دپاره كتل شرعاً جائزهم دى لكه سر او اوږه وغيره.

---

[1]) علامه ډاكټر خالدمحمود صاحب (پى ايچ ډى لندن) په آثارالحديث (۴۳۲/۲-۴۳۱) كښې حديث غسل ام المؤمنين باندې يواعتراض لاندې ليكلى دې: "په حديث باندې دَ پوهيدو په خاطر عرف اومحاوره استعمالول هم مخې ته كيخودلې كيږى مثلاً په دوو كسانوكښې په دياتتدارئى سره په دې موضوع باندې جګړه اوشوه چه دَ لامبلودپاره كم نه كم څومره اوبه كيدل پكاردى؟ يوكس اوئيل چه زه په دوه سيره اوبوسره لامبلې شم بل اووئيل چه داسې نه شى كيدې، ته لامبلوسره اوښايه. هغه دوه سيره اوبه اخستو سره خلوت ته لاړو وئى لامبل راغلو وئى ونيل ما په دوو سيرو اوبوسره پوره غسل اوكړو. دَ يوبل په دياتتدارئى باندې ئى پوره اعتمادوو. اوس كه روميې سړې دا وائى چه سړې په دوه سيره اوبوسره لامبلې شى او فلانكى سړى زما په وړاندې په دوو سيرو اوبوسره لامبلى دى نو په داسې موقعوباندې به دَخبر اترو دا انداز غلط نه وى. نه به ددې په وړاندې داخبره غلطه وى. مخامخ لامبلوسره داسې لامبل خودل مراد دى نه دا چه روميې دَ هغه بل په وړاندې برېنډشوې وو اوبالكل ئى دَهغه په وړاندې لامبلې وو. چه په حديث كښې داسې څه واقعه راشى نومنكرين حديث دې ته په ډير وړوكى سوچ سره سوچ كوى او نه پوهيږى چه په دنياكښې دَتجربې اومافى الضميردَ اظهاردپاره دَعرف اوماحول څومره پيمانې استعمالولې شى. ولې په دې حديث په دې قسم پيمانه سره نه شى پوهيدلې؟"

دَام المؤمنينعائشه رضي الله عنها خورئې ابوسلمه رضي الله عنه اودَهغې رور (رضاعى) عبدالله بن يزيد دَ هغوى په خدمت كښې حاضر شو. رور دَحضرت ام المؤمنين نه تپوس اوكړو حضورپاك به په څومره اوبو سره غسل كولو. هغې اوبه راؤغوښتلې چه يوصاع (يوه پيمانه) وې اوغسل ئى اوكړو اوپه خپل سرباندې ئى اوبه اوبهيولې. په صحيح بخارى كښې دلته په صراحت سره نقل دى چه دَام المؤمنين دَ هغې د رور اوخورئى په مينځ كښې پرده وه . په دې تصريح سره خبره هغه ځائى ته راځى كومه چه مونږه كړې ده. مګر منكرين حديث دى چه داحديث (ددې پردې دَبحث نه يوطرف ته كولوسره) په ډير سپكاوى سره نه صرف پيش كوى بلكه په دې حواله سره دَخپل منكرين حديث كيدو باندې فخر هم كوى.

[2]) فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۴/۱ لامع الدرارى:۲۰۷/۲ الكنز المتوارى:۱۹۱/۳.

**دامام قرطبي رحمه الله رائې:** علامه ابن رجب حنبلي رحمه الله دامام قرطبي رحمه الله نه نقل کړې دې چه د مسلم شريف په روايت کښې د راوی د ازواج مطهرات د ويښتو د کيفيت باره کښې خبرو کول په دې خبره باندې دلالت کوی چه هغه صرف د حضرت عائشه رضي الله عنها ويښته ليدلې وو اود محارم دپاره ددې په جواز کښې دچاهم اختلاف نشته دې. بغير ددې نه چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه د کراهت يو قول نقل کولې کيږی.[1] حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله هم کالرأس ونيلوسر دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه هغه صرف سر ليدلې دې.[2]

**حيا او احتياط:** دې نه علاوه داخبره هم تولوته معلومه ده چه په هغه زمانه کښې د نن صبا په شان مکمل بندې غسل خانې نه وې اود حضورپاك عام هدايت هم دا وو چه د غسل وخت کښې ستر پټ ساتنې لکه څنگه چه خپله امام بخاری رحمه الله «باب التستر في الغسل عند الناس» په عنوان سره باب هم قائم کړې دې. نوآيا دا ممکن دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها د حضورپاك د تعليماتو خلاف عمل کړې وی داسې سوچ هم نه شی کيدې. بيا دا ضروری خونه دی چه عائشه صديقه رضي الله عنها د لباس نه بغير غسل کړې وی. په يو صحيح روايت کښې هم نه ددې صراحت شته اونه په کنايه سره ددې خبرې اشاره ملاويږی. اقرب هم دادی چه دهغې داغسل د لباس اغوستلو په حالت کښې وو. لهذا د يو شرعی مسئلې د تعليم دپاره کړې اچولو سره پټيدل او په پرده کښې کيدل، په دې باندې اعتراض کولو په ځائې د هغې په حيا او احتياط باندې دلالت کوی.

**دصحابه کرامو اوتابعينو عدم نکير:** که په واقعه حال کښې د معترض د باطل گمان مطابق څه خبره د اعتراض قابله شوې هم وی اوهغه اومنلې هم شی نوهغه شرعًا يا عرفاً څه قابل اعتراض خبره نه ده اوکه چرې داسې وې نوعقل داخبره نه منی چه په خير القرون کښې موجود صحابه کرام اوپخپله راوی او سائل په دې باندې څه نکير نه کولو او خاموشی ئې اختيارولې حاشاوکلا.

دا پريږدئی که په دې روايت باندې داسې څه اعتراض وې نود امت اساطين اهل علم نه به يونه يو کس ضرور دې طرف ته توجه کوله اوددې قابل اعتراض کيدل به ئې بيانول. ليکن ترننه پورې چا هم دا روايت او د دې الفاظ قابل اعتراض نه دی گنړلی نوددې مطلب داواضح دې چه معترض صرف اوصرف په خپل زړه کښې موجود بغض اوکينې د اظهار کولو نه علاوه بل هيڅ نه کوی.

**د خواب فطرت د پاره هيڅ دليل مفيدنه دې:** خبره داده چه د يونيك او سليم الفطرت سړی دپاره هم دومره کافی دی چه د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د پاکدامنئ او حيا بيانولو دپاره الله تعالى قرآن پاك نازل کړو اود نبی په خله باندې دهغې تعريف او توصيف بيان کړې دې. اوکه يو خراب فطرت اود ايمان د حقيقت نه محروم وی نودهغه دپاره خو نه د الله تعالى کلام کافی کيدې شی او نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشادات مفيد ثابتيدې شی.

**حديث باب کښې سوال د غسل دکيفت باره کښې وو که دکميت باره کښې؟:** د حضرت عائشه رضي الله عنها نه دهغې رورد حضورپاك د غسل باره کښې چه کوم سوال کړې وو هغه د کيفيت غسل باره کښې وو؟ يادکميت ماء (داوبو د مقدار) باره کښې وو؟ په دې باره کښې د شراح حديث دواړه شان اقوال دی:

---

[1]) فتح الباری لابن رجب الحنبلی: ١/ ١٤٤.

[2]) لامع الدراری: ٢/ ٢٠٧ الکنزلامتواری: ٣/ ١٩٣.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلي دي چه دَ اُخو عائشة سوال کیفیت او کمیت دواړو باره کښې وو هغه فرمائي: «ولما کان السوال محتملاً للکیفیة والکمیة، ثبت لهما ما یدل علی الأمرین معاً، أما الکیفیة: فبالاقتصار علی إفاضة الماء، وأما الکمیة فبالاکتفاء بالصاع» (۱)

یعنی په سوال کښې دَ غسل دَ کیفیت او کمیت دواړو احتمال وو نو په حدیث کښې دَ حضرت عائشه رضي الله عنها عمل هم په دواړو باندې دلالت کوي. دَ کیفیت باره کښې سر او بدن باندې او به بهیول خودل او کمیت په صاع باندې اکتفاکولو سره ښکاره کړل.

**دَ علامه عیني رحمه الله رائې او په حافظ صاحب باندې رد:** علامه عیني رحمه الله دَ حافظ صاحب دا خبره ردکړې ده چه سوال دَ کیفیت او کمیت دواړو باره کښې وو. هغوی فرمائي سوال صرف دَ کیفیت غسل باره کښې وو موږ دا نه منو چه سوال دَ کمیت ماء باره کښې هم وو. نور فرمائي «ولئن سلمنا فلم تبین إلا الکیفیة ولا تعرض فیه للکمیة، لأنه قال: فدعت بإناء نحو من صاع، فلا یدل ذلك علی حقیقة الکمیة، لأنها طلبت إناء ماء مثل صاع، أن یکون ذلك الماء ملء الاناء أو أقل منه» (۲)

یعنی که موږ ئې او منو هم چه سوال دَ دواړو باره کښې وو نو حضرت عائشه رضي الله عنها صرف دَ غسل کیفیت خودلې دې کمیت سره ئې هیڅ غرض نه دې کړې. ځکه چه راوی وائي چه حضرت عائشه رضي الله عنها یو لوښې دَ صاع پیمانه او اندازه او به راؤغوښتې، په دې کښې احتمال دې چه هغه لوښې ډک وی او دا هم ممکن ده چه په هغې کښې او به کمې وی (دې سره خودَ او بو حقیقي مقدار معلوم نه شو لهذا په دې سره په کمیت ماء باندې استدلال صحیح نه دې)

**دَ محارم بدن او اندامونو ته نظر کولو حکم:** دَ حدیث باب نه علماؤ دَ محارم بدن او اندامونو بعض حصوته دَ نظر کولو جواز مستنبط کړې دې. دَ فقهاؤ په نیز دَ محارم دَ بدن کومې حصې او اندام طرف ته نظر کول جائز دی او کومې حصې طرف ته کتل جائز نه دی؟ آیا دې نه مراد په عام توګه سره چه په کورونو کښې سر او دَ سرویښته، سټ، مخ، لاسونه، څنګل، خپې او پنډئ وغیره باندې نظر پریوځي؟ یا دَ سترنه علاوه مخ او لاسونه مراد دي؟ یا صرف مخ مراد دې؟ یا دَ نامه او زنګونونو پورې نه علاوه باقي بدن طرف ته دَ کتلو ګنجائش شته دې؟ په دې باره کښې دَ علماؤ اختلاف دې. (۳)

**دَ مالکیه مسلک:** دَ مالکیه په نیز دَ سړی دَ پاره دَ محارم څنګلې، دَ سرویښته، دَ سینې دَ پاسه حصه او دَ سټ لاندې حصه او دَ خپو اطرافو طرف ته کتل جائز دی. (۴) دَ محرم ښځو سینو ته سینې ته او فتونونو ته کتل جائز نه دی. (۵)

دَ سړی دَ بل سړی کومو اندامونو ته کتل چه جائز دی ښځه دَ خپل محرم هغه اندامونو ته کتلې شي یعنی دَ ښځې دَ پاره دَ محرم سړی دَ نامه نه واخله دَ زنګونونو پورې نه علاوه باقي بدن طرف ته کتل جائز دی. ()

---

(۱) فتح الباري: ۲/۴۸۲-۴۸۱.

(۲) عمدة القاري: ۳/۲۹٤.

(۳) فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۱/۱٤٤.

(٤) مواهب الجلیل لشرح مختصر الخلیل: ۲/۱۸۲.

(٥) الشرح الکبیر مع حاشیة الدسوقي: ۱/۲٤٦ مواهب الجلیل لشرح مختصر الخلیل: ۲/۱۸۳.

**تنبيه:** دَمالكيه په نيز سره دَدې چه دَ شهوت ويره نه وى دَ سړى خوانې محرمې ښځې ته په ډك نظر باربار كتل جائز نه دى بغيردَ ضرورت نه (يعنى كه دَ گواهئى وغيره په وخت خوانې محرمې ښځې ته دَ كتلو ضرورت وى نودَدې گنجائش شته)(١)

**دَ شوافعو مسلك:** دَ شوافع دَ فقهاؤ په نيز كه دَ فتنې ويره نه وى نودَ نامه نه واخله تر زنگونونو پورې نه علاوه باقى بدن ته كتل جائزدى. (٢)

په يوبل قول كښې دَ شوافع په نيز دَمحارم دَهغه انداموطرف ته كتل جائزدى چه په كوركښې كار كولو په وخت كښې په عام توگه ښكاره كيږى لكه سر سټ مخ او خپې وغيره دَدې نه علاوه طرف ته دَ كتلو هيڅ ضرورت نشته دى. (٤)

**دَحنابله مسلك:** دَ حنابله علماؤ په نيز (په نيز هم) دَ شوافع په يوقول كښې دَ سړى دَ خپل محارم هغه اندامونوته كتل جائزدى چه عموماً ښكاره كيږى لكه مخ سټ سر لاسونه څنگلې خپې وغيره.(٥) ابو الحسن مرداوى رحمه الله دا دَاكثر حنابله مذهب گرځولې دې. (٦)البته دَ فتنې نه دَ بچ كيدو دَپاره پنډو او سينې طرف ته كتل صحيح نه دى. (٧)

دَښځې دَمحرم سړى طرف ته كتلوپاره كښې دَ حنابله دوه قوله دى: ① دَ سړى دَ شرمگاه نه علاوه ته كتل جائزدى. ② دَ سړى دَ بل سړى چه كوم اندامونوته كتل جائز دى ښځه هم دَ محرم سړى هغه اندامونوطرف ته كتلې شى. (٨)

**دَ احنافو مسلك:** دَعلماء احناف كثرالله سوادهم په نيز كه چرې طرفين (محرم سړې اوښځه) دَ طرف نه دَشهوت ويره نه وى نوسړې دَ محرم ښځې سر اودَدې ويښته، غوږ، مخ، سينه، مټې، سينوته، پنډئى اوخپو طرف ته كتلې شى ځكه چه الله تعالى په قرآن پاك كښې دَ محارم دَپاره دَ زينت دَ اظهار اجازت وركړې دې چنانچه دَالله تعالى ارشاد دې ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ (٩)

**ترجمه:** اونه دى ښكاره كوى خپل سنگار مگر دَخپل خاوند په وړاندې، يادَ خپل پلار، يادَ خپل خاوند دَپلار، يا دَخپل ځوئى، يادَ خپل خاوند دَ ځوئى، يادَ خپل رور، يا دَ خپلو وريرونو، يادَ خپلو خورينو، يا دَخپلو ښځو يا دَ خپل لاس دَ مال (په وړاندې).

**په ايت كښې دَ زينت نه څه مراددې؟:** په آيت كښې دَ زينت نه صرف نفس زينت مراد نه دې ځكه چه دَ نفس زينت اظهار منهى نه دې بلكه مواضع زينت هم مراد دى. ځكه چه په آيت كښې الله تعالى دَ

---

(١) الشرح الكبير مع حاشية الدسوقى:٣٤٦/١مواهب الجليل لشرمختصر الخليل:١٨٣/٢.
(٢) مواهب الجليل لشرمختصر الخليل:١٨٣/٢.
(٣) كفاية الأخيار ص ٤٧٠-٤٦٩ المجموع شرح المهذب:٢١٦/١٧-٢١٥.
(٤) كفاية الأخيار ص ٤٧٠-٤٦٩ المجموع شرحالمهذب:٢١٦/١٧-٢١٥.
(٥) المغنى لابن قدامة:٧٥/٧.
(٦) الإنصاف للمرداوى:٢٠/٨.
(٧) المغنى لابن قدامة:٧٥/٧.
(٨) المغنى لابن قدامة:٨٠/٧.
(٩) سورت النور:٣١.

اصل زینت طرف ته کتل مباح گرځولې دی. لهذا دَ سرې دَ محرم ښځې مواضع زینت طرف ته کتل جائز دی. دَ بدن دَ اندامونونه سر موضع تاج دې او ویښته دَ چوټیو ځایونه دی مخ موضع کُحل دې سټ اوسینه موضع هار اوموضع حمائل دی. غوږونه دَ والو اچولوځایونه دی په څنګل کښې بازوبند او بنګړی اچولې شی او خپې دَخضاب او پانزیب ځائې دې. (۱)

**عقلی دلیل:** علامه کاسانی رحمه الله فرمائی «لأن المخالطة بين المحارم للزيارة وغيرها ثابتة عادة، فلا يمكن صيانة مواضع الزينة عن الكشف إلا بحرج وأنه مدفوع شرعاً». (۲)

یعنی محارم سره (سفر اوحضر) کښې یوځائې کیدل او ملاویدل عادتاً ثابت دی او په عام توګه دَ محارم دَپاره دَ زینت مواضع پټول او دَ اظهار اوښکاره کولونه بچ کول مشکل او دَ حرج سبب دې په دې وجه دَ حرج نه دَ بچ کولو دَپاره دَهغوی طرف ته کتل شرعاً جائزګرځولې شوی دی. ځکه چه شرعاً حرج مدفوع دې.

**مواضع زینت دَ غض بصر دَ حکم نه مستثنٰی دی:** الله تعالی مسلمانانوته په عمومی توګه دَ غض بصر یعنی دَ نظر ښکته ساتلوحکم ورکړې دې اومواضع زینت ئې دَدې نه مستثنٰی کړی دی نو ځیټه ملا شرمګاه او پنډئی مواضع زینت نه کیدو دَ وجې نه به دَ غض بصر په عمومی حکم کښې داخل وی اودې ته کتل به جائزنه وی. هر هغه اندام دَ کوم طرف ته چه محارم دَپاره کتل جائز دی که چرته دَ شهوت ویره نه وی نوهغې ته لاس لګول به هم جائز وی. (۳)

**دَحدیث نه مستنبط شوې مسائل:** دَحدیث باب نه دامسائل مستنبط کیږی ① زبانی تعلیم سره عملی تعلیم ورکول مستحب دی. (۴) ② محرم دَ خپلو محارمو بعض اندامونوطرف ته کتلې شی (کمامر) ③ دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په غسل کښې دَ اوبوبهیولو باره کښې څه خاص شمیر اوتکرار شرط نه دې (البته درې ځل اوبه بهیول سنت دی یوځل ضروری دی) شرط دادې چه په ټول بدن باندې داسې اوبه اوبیهولې شی چه هرې حصې ته اوبه اورسی. (۵)

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه امام بخاری رحمه الله باب الغسل بالصاع ونحوه عنوان قائم کړې دې. په حدیث کښې وارد «فدعت بإناء ونحواً» الفاظو سره ترجمة ثابتیږی. (۶)

**تعلیق:** قال أبوعبدالله: قال يزيد بن هارون وبهز والجدي عن شعبة: قدر صاع: امام بخاری رحمه الله وائی یزید بن هارون، بهز او جدی دَامام شعبه رحمه الله نه «نحواً من صاع» په ځائې «قدر صاع» الفاظ نقل کړی دی.

## رجال تعلیق

---

(۱) بدائع الصنائع: ۴۸۹/۶ البحر الرائق: ۳۵۵/۸ حاشیة ابن عابدين: ۲۵۹/۵.

(۲) بدائع الصنائع: ۴۸۹/۶ البحر الرائق: ۳۵۶/۸-۳۵۵ الدر المختار مع ردالمحتار: ۲۵۹/۵.

(۳) بدائع الصنائع: ۴۹۰/۶-۴۸۹ البحر الرائق: ۳۵۶/۸-۳۵۵.

(۴) فتح الباري: ۴۸۱/۲ عمدة القاري: ۲۹۴/۳.

(۵) عمدة القاري: ۲۹۴/۳.

(۶) عمدة القاري: ۲۹۴/۳.

**ابوعبدالله**: دا صاحب كتاب ابوعبدالله محمدبن اسماعيل بخاري رحمه الله دي. دَدوی تفصيلي حالات كشف الباري مقدمة الكتاب كښې تيرشوی دی. (١)

**يزيدبن هارون**: دا ابوخالديزيد بن هارون بن زاذان، يا زاذان واسطي رحمه الله دي. دَدوی حالات صحيح بخاري كتاب الوضوء باب التبرز في البيوت دَدويم حديث لاندې اوګورئی. (٢)

**بَهز**: بهز (بفتح الباء الموحدة وسكون الهاء وفي آخره زاء معجمة) دَ باء فتحه سره دَ هاء سكون اوآخره كښې زاء ده. (٣) دا ابوالاسود بهز بن اسد عمي بصري رحمه الله دي اودوی دَ معلی بن اسد رور دي. (٤)

**اساتذه وشيوخ**: دَ دوی په استاذانو اوشيوخ كښې ابان بن يزيد عطار، حماد بن سلمه، سليمان بن مغيره، شعبه بن حجاج، عمر بن ابوزائده، مثنی بن اسد، همام بن يحيی، وهيب بن خالد، يزيد بن ابراهيم تستری، يزيد بن زريع، ابوبكر نهشلي، ابوعقيل دورقي وغيره شامل دی. (٥)

**تلامذه**: دَدوی نه روايت كونكوكښې ابراهيم بن موسی رازي، احمدبن ابراهيم دورقي، احمدبن سنان القطان، احمدبن محمد بن حنبل، عبدالله بن هاشم طوسی، عبدالرحمن بن بشر بن حكم نيشاپوري، محمدبن بشار بندار، محمدبن حاتم السمين او يعقوب بن ابراهيم دورقي وغيره شامل دی. (٦)

**جلالت شان اودَائمه توثيقي اقوال**: عبدالرحمن بن بشر وائي چه يحيی بن سعيد رحمه الله ماته اوفرمائيل زه تاته ګورم چه ته مانه دَ شعبه باره كښې زيات تپوسونه كوې. ته بهز بن اسد لازمی اونيسه، «**فإنه صدوق ثقة**» خكه چه هغه رښتوني او ثقه دي اودَهغه دَ شعبه كتاب هم واوره. (٧)

هم دَدغه عبدالرحمن بن بشر رحمه الله قول دي «**مارأيت رجلاً خيراً من بهز**» (٨) علامه ذهبي رحمه الله تذكرة الحفاظ كښې ليكلي دی «**كان من جلة العلماء**» (٩) يعنی بهز بن اسد دَ جليل القدر علماؤ نه وو.

ابوبكراسدی رحمه الله وائي ما دَ احمدبن حنبل رحمه الله نه فرمائيلوسره واؤريده «**بهز بن أسد إليه المنتهى في التثبت**» (١٠)

- يحيی بن معين ابوحاتم او امام نسائي رحمهم الله وغيره فرمائي **ثقة**. (١) ابن سعد رحمه الله وائي «**كان ثقة، كثير الحديث، حجة**» (٢) ابوحاتم رحمه الله فرمائي «**إمام، صدوق، ثقة**» (٣) امام عجلي رحمه الله فرمائي «**بصري، ثبت في الحديث، رجل صالح، صاحب سنة**» (٤)

---

(١) كشف الباري: ١/١٥٣-١٢٢.

(٢) الصحيح للإمام البخاري كتاب الوضوء باب التبرز في البيوت.

(٣) فتح الباري: ٢/٤٨٢ عمدة القاري: ٣/٢٩٤.

(٤) تهذيب الكمال: ٤/٢٥٧ التاريخ الكبير: ٣/١٤٣ أعلام النبلاء: ٩/١٩٢ الجرح والتعديل: ٢/٣٥٤.

(٥) تهذيب الكمال: ٤/٢٥٨-٢٥٧ سير أعلام النبلاء: ٩/١٩٢ ميزان الاعتدال: ١/٣٥٣ تذكرة الحفاظ: ١/٣٤١.

(٦) الجرح والتعديل: ٢/٣٥٥ تذكرة الحفاظ: ١/٣٤٢-٣٤١ تهذيب الكمال: ٤/٢٥٧ سير أعلام النبلاء: ٩/١٩٢.

(٧) تهذيب الكمال: ٤/٢٥٩ تهذيب التهذيب: ١/٢٥١.

(٨) تذكرة الحفاظ: ١/٣٤٢ سير أعلام النبلاء: ٩/١٩٢ تهذيب الكمال: ٤/٢٥٩.

(٩) تذكرة الحفاظ: ١/٣٤٢.

(١٠) تهذيب الكمال ٤/٢٥٨ الجرح والتعديل: ٢/٣٥٥ ميزان الاعتدال: ١/٣٥٣.

(١١) تهذيب الكمال: ٤/٢٥٩-٢٥٨ سير أعلام النبلاء: ٩/١٩٢ الجرح والتعديل: ٢/٣٥٥ ميزان الاعتدال: ١/٣٥٣.

**دَعلامه ازدی شاذ قول:** دَابوالفتح ازدی یوشاذ قول دې چه بهز بن اسد دَحضرت عثمان رضی الله عنه باره کښې ښه ګمان نه لرلو.(۴)

**دَعلامه ذهبی دَ علامه ازدی تردید:** علامه ذهبی رحمه الله دَعلامه ازدی په سختئی سره تردیدکړې دې هغه فرمائی «كذا قال الأزدي والعهدة عليه، فما علمت فى بهز مغمزاً»(۵) یعنی ازدی دَ بهز باره کښې داسې وئیلی دی اودَ دې (قول) ذمه واری (وبال) هم په هغه باندې دې. ما بهزبن اسد کښې هیڅ قابل اعتراض خبره او عیب نه دې لیدلې. نور دا چه علامه ذهبی رحمه الله تاریخ اسلام (۶) کښې دَهغه توثیق کړې دې او الکاشف کښې فرمائي «حجة إمام» (۷) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ثقة ثبت»(۸)

**وفات:** دَ بهزبن اسد رحمه الله دَ وفات دکال باره کښې مختلف اقوال دی. البته دَ ټولو نتیجه هم یو ده. عقبه بن مکرم عمی رحمه الله وائی بهزبن اسد یحیی بن سعید القطان نه وړاندې وفات شوې دې. (۹) ابن حبان رحمه الله فرمائی ۲۰۰ هجری نه پس وفات شوې دې.(۱۰) علامه ذهبی رحمه الله سیرأعلام النبلاء کښې تذکرة الحفاظ او تاریخ اسلام کښې ۱۹۷ هجري دَهغه دَ وفات کال ګرځولې دې. (۱۱) حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن قانع نه هم ۱۹۷ هجری قول کړې دې.(۱۲)

**الجُدِّي:** «الجُدِّي بضم الجيم وتشديد الدال» جدی دَ جیم ضمه او دال تشدید سره دَ جده طرف ته نسبت دې جده دَ مکې مکرمې دَ سمندردَغاړې علاقه ده. (۱۳)

نن صبا دې ته (دَ جیم فتحه سره) جده وئیلی شی دا تصحیف دې صحیح هم دَ جیم ضمه سره دې. دا ابوعبدالله عبدالملك بن ابراهیم جدی قرشی مکی حجازی رحمه الله دې.(۱۴)

**اساتذه او شیوخ:** دَ دوی په استاذانو اوشیوخ کښې ابراهیم بن طهمان، حمادبن سلمه، حوشب بن عقیل، سعید بن خالد خزاعی،سفیان ثوری، سلیمان بن مغیره، شعبه بن حجاج، صلت بن دینار، القاسم بن الفضل حدانی، محمد بن محمد ، بن نافع طائطی، نافع بن عمر الجمعی، همام بن یحیی،

---

(۱) طبقات ابن سعد:۲۹۸/۷تهذیب الکمال:۲۵۹/۴.

(۲) تهذیب الکمال:۲۵۸/۴میزان الاعتدال:۳۵۳/۱.

(۳) معرفة الثقات:۲۲۵/۱مطبعة المدنی، قاهرة، مصر.

(۴) میزان الاعتدال:۳۵۳/۱تهذیب الکمال:۲۵۱/۱.

(۵) میزان الاعتدال:۳۵۳/۱.

(۶) تاریخ اسلام:۲۲۲/۵.

(۷) الکاشف ص:۲۷۶.

(۸) تقریب التهذیب:۱۳۹/۱.

(۹) تهذیب الکمال:۲۵۹/۴.

(۱۰) کتاب الثقات:۱۵۵/۸تهذیب التهذیب:۲۵۱/۱تهذیب الکمال:۲۵۹/۴.

(۱۱) سیرأعلام النبلاء:۱۹۲/۹ تذکرة الحفاظ:۳۴۲/۱ تاریخ الأسلام:۲۲۲/۵.

(۱۲) تهذیب التهذیب:۲۵۱/۱.

(۱۳) فتح الباری:۴۸۳/۲عمدة القاری:۲۹۴/۳تقریب التهذیب:۶۱۳/۱.

(۱۴) تهذیب الکمال:۲۸۰/۱۸ التاریخ الکبیر:۴۰۶/۵ الجرح والتعدیل:۴۰۵/۵ تقریب التهذیب:۶۱۳/۱ کتاب الثقات ۳۸۷/۸ تاریخ الاسلام:۴۲۱/۵ تهذیب التهذیب:۲۸۴/۶ الکاشف:۶۶۳/۱.

ابوعوانه الوضاح بن عبدالله، یزید بن ابراهیم تستری او الیسع بن قیس رحمهم الله وغیره شامل دی.[1]

**تلامذه:** دَدوی نه روایت کونکوکښې ابراهیم بن یعقوب جوزجانی، ابوالازهر احمدبن الازهر نیشاپوری، احمدبن بزیع، احمدبن حسن ترمذی، احمدبن محمدبن عبدالله بن القاسم بن ابی بزه بزی مقری، احمدبن منصور مروزی، حجاج بن شاعر، حسن بن علی خلال، سلمه بن شبیب نیشاپوری، ابو داؤد سلیمان سیف حرانی، عبدالله بن منیر مروزی، ابوعبدالرحیم محمدبن احمدبن ابی عیسی جوزجانی، ابوکریب محمدبن علاء، محمدبن مقصود جوزمانی مکی، محمود بن غیلان مروزی، وهب بن حفص حرانی او ابوعبیده بن فضیل بن عیاض رحمهم الله وغیره شامل دی.[2]

**په توثیق کښې دَ ائمه اقوال:** امام ابوداؤد امام ترمذی اوامام نسائی رحمهم الله دَده روایت نقل کړې دې اوامام بخاری رحمه الله «مقروناً بغیره» دَ تاکید په توګه دَده روایت نقل کړې دې.[3] ابوعبدالرحمن المقری رحمه الله وائی «هوأحفظ منی»[4] ابوزرعه رحمه الله وائی «لابأس به»[5] امام مزّی رحمه الله وائی «ثقة مأمون»[6] امام ابوحاتم رحمه الله وائی «شیخ»[7] امام ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَدوی تذکره کړې ده[8] امام دار قطنی رحمه الله فرمائی: «ثقة»[9] حافظ ابن حجر رحمه الله تقریب التهذیب کښې فرمائی «صدوق»[10]

**وفات:** امام بخاری رحمه الله فرمائی دعبدالملک بن ابراهیم په ۲۰۴ یا ۲۰۵ هجری کښې انتقال شوې[11] ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې هم داقول اختیار کړې دې[12] علامه ذهبی علامه عینی او علامه قسطلانی رحمهم الله ۲۰۵ هجری دَ هغوی دَ وفات کال ګرځولې دې.[13]

**شعبة:** دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج بن وردعتکی، واسطی، بصری رحمه الله دې. دَدوی حالات کشف الباري کتب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده رومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.[14]

## تخریج تعلیق

---

[1] تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۱-۲۸۰ تاریخ الإسلام: ۵/۴۲۱ الجرح والتعدیل: ۵/۴۰۵ تهذیب التهذیب: ۶/۳۸٤.
[2] تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۱ تهذیب التهذیب: ۶/۳۸۵ تاریخ الإسلام: ۵/٤۲۱.
[3] تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲ الکاشف: ۱/۶۶۳ عمدة القاری: ۳/۲۹٤.
[4] تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲ تاریخ الإسلام: ۵/٤۲۲ تهذیب التهذیب: ۶/۳۸۵.
[5] الجرح والتعدیل: ۵/٤۰۶ تهذیب التهذیب: ۶/۲۸۵ تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲ تاریخ الإسلام: ۵/٤۲۱.
[6] تاریخ الإسلام: ۵/٤۲۲-٤۲۱ تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲ تهذیب التهذیب: ۶/۳۸۵.
[7] الجرح والتعدیل: ۵/٤۰۶ تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲ تهذیب ا لتهذیب: ۶/۳۸۵.
[8] کتاب الثقات: ۸/۳۸۷ تهذیب التهذیب: ۶/۳۸۵.
[9] تهذیب التهذیب: ۶/۳۸۵.
[10] تقریب التهذیب: ۱/۶۱۳
[11] التاریخ الکبیر: ۵/٤۰۶ تاریخ الإسلام: ۵/٤۲۲ تهذیب الکمال: ۱۸/۲۸۲.
[12] کتاب الثقات: ۸/۳۸۷.
[13] الکاشف: ۱/۶۶۳ عمدة القاری: ۳/۲۹٤ إرشاد الساری: ۱/٤۹۱.
[14] کشف الباری: ۱/۶۷۸.

**قال يزيد بن هارون، وبهز، والجُدّيُّ عن شعبة: قدر صاع.** دا متابعت ناقصه دي دا امام بخاري رحمه الله په توګه دتعليق ذکرکړې دي. (١)يزيدبن هارون، بهز او جدى عن شعبه روايت كوم چه امام بخاري رحمه الله دتعليق په توګه ذكركړې دي. ددې باره كښې حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په دې مذكوره تعليق كښې دَ يزيدبن هارون دَ شعبه نه روايت ابوعوانه موصولاً نقل كړې دې. (٢)البته حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى چه ابوعوانه رحمه الله په خپل صحيح كښې روايت كړې دى.(٣) خوعلامه عينى رحمه الله فرمائى چه ابوعوانه رحمه الله په خپل مستخرج كښې دا نقل كړې دى. (٤)په دواړو كښې هيڅ تعارض نشته دې ځكه چه صحيح اومستخرج دواړه هم ديوكتاب نومونه دى،حافظ ابن حجر رحمه الله دَيزيد بن هارون عن شعبه والاروايت دَ صحيح ابى عوانه په حواله سره په تغليق التعليق كښې مكمل سندسره تخريج كړې دې. (٥)

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دَ يزيدبن هارون عن شعبه والا روايت باره كښې فرمائى چه ابونعيم هم مذكوره تعليق په خپل مستخرج كښې موصولاً نقل كړې دې. (٦)حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دابونعيم رحمه الله دَ طريق تخريج كړې دې. (٧)دَ بهز بن اسد دَ امام شعبه نه روايت لكه چه امام بخارى رحمه الله تعليقاً ذكركړې دې محدث اسماعيلى خپل مستخرج كښې دا موصولاً نقل كړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دَهغه دَ سند تخريج كړې دې. (٨)البته دَ عبدالملك بن

---

[١] عمدة القارى:٣/٢٩٤.

[٢] هدى السارى مقدمة فتح البارى:١/٢٥ فتح البارذى:٢/٤٨٢ عمدة القارى:٣/٢٩٤.

[٣] هدى السارى:١/٢٥.

[٤] عمدة القارى:٣/٢٩٤.

[٥]تعليق التغليق: ٢/١٥٢ قال الحافظ ابن حجرفيه: أما حديث يزيد بن هارون، فقال أبوعوانة فى صحيحه: حدثنا محمد بن عيسى العطار، ثنا يزيد بن هارون، أنا شعبة، عن أبى بكربن حفص، عن أبى سلمة عن عائشة، سألها أخوها من الرضاعة عن غسل النبى ﷺ من الجنابة، فدعت بإناء قدرصاع، فاغتسلت وصبت على رأسها ثلاثا.

[٦] فتح البارى:٢/٤٨٢عمدة القارى:٣/٢٩٤.

[٧] عمدة القارى:٣/٢٩٤وقال الحافظ فى تغليق التعليق: ٢/١٥٢ وقرأته عالياً على عبدالله بن محمد بن أحمد المقدسى، أنباكم عبدالله بن الحسين ابن الحسن وقرات على عبدالله أيضاً، عن زينب بنت أحمد بن عبدالرحيم عن الحافظ أبى الحجاج بن خليل، أن محمد بن إسماعيل الطرسوسى أخبره عن الحسن بن أحمد، أنا أبونعيم الحافظ، أنا أبوبكربن خلاد، ثنا الحارث بن محمد، ثنا يزيد بن هارون: مثله سواء. وكذلک وصله البيهقى فى السنن الكبرى له: ١/١٩٥، فى كتاب الطهارة، باب أستحباب أن لاينقص فى الوضوء من مدولا فى الغسل من صاع عن الحاكم عن بكر الصير فى عن الحارث عن يزيد بن هارون مثله.

[٨]تغليق التعليق: ٢/١٥٢ عمدة القارى:٣/٢٩٤ وقال العلامة العينى: أما طريق بهز بن أسد فرواها الإسماعيلى: حدثنا المنيعى يعقوب وأحمد حدثنا إبراهيم قالا: حدثنا بهز بن أسد، حدثنا شعبه. وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله: أماطريق بهز بن أسدفقال الإسماعيلى فى مستخرجه: أخبرنا المنيعى، حدثنا يعقوب وأحمد، أنبانا إبراهيم قال: حدثنا بهز بن أسدبه.

ابراهیم جدی دَ روایت باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله «لم أجدها» او علامه عینی رحمه الله «فلم أقف علیه» فرمائیلی دی.[1]

**دَ تعلیق غرض:** دَ امام بخاری رحمه الله مقصد اوغرض دَدې تعلیق نه دا بیان کول دی لکه څنګه چه دَ امام شعبه رحمه الله شاګرد عبدالصمد رومبي روایت (حدیث باب) کښې دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها باره کښې «فدعت بإناء نحواً من صاع» الفاظ نقل کړی دی نوهم دَامام شعبه رحمه الله درې نورو شاګردانو یزید بن هارون، بهز او جُدی «نحواً من صاع» په ځائې «قدر صاع» الفاظ نقل کړی دی.[2] نولکه چه امام بخاری رحمه الله دَ روایت دَ الفاظوتحقیق کوی اودَ امام شعبه رحمه الله شاګردانو دَحضرت عائشه رضی الله عنها باره کښې مختلف الفاظ نقل کړی دی دا بیان کوی په دواړو روایتونوکښې فرق دادې چه «نحواً من صاع» کښې دَتقریب بیان دې چه حضورپاك په صاع اودَدې په شان په لوښی سره غسل کولو په دې کښې تحدید نشته دې بلکه صاع اودَدې په شان لوښی کښې چه به ئې په څومره اوبوسره غسل کولې شو هم په هغې سره به ئې غسل کولو په دې کښې دکمی زیاتی دواړو ګنجائش شته. په دویم روایت کښې امام شعبه نه دَهغه دریوشاګردانو «قدر صاع» الفاظ نقل کړی دی په دې کښې دَ تحقیق اوتحدید بیان دې. هم دغه مسنون دی اودَ حنفیه مسلك هم دَدې مطابق دې.

**قوله: قدر صاع:** تقدیری عبارت به داسې شی «فدعت بإناء قدر صاع» قدرصاع کښې هم «نحواً من صاع» په شان دوه ترکیبی احتمال دې. چه مجرور اولوستلې شی نودا به دَ اناء صفت جوړیږی یا دا اعراب حکائی دې اوکه منصوب اولوستلې شی نوهم به دَ اناء صفت جوړیږی او اناء دَ دعت مفعول به کیدو دَ وجې نه محلاً منصوب وی یا بیا أعني فعل محذوف مفعول به کیدودَ وجې نه منصوب وی.[3]

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله دواړه روایتونه (حدیث باب اوتعلیق) مآل هم یو ګرځولې دې هغه فرمائی: «والمراد من الروایتین أن الاغتسال وقع بملء الصاع من الماء تقریباً لا تحدیداً».[4] یعنی دَ الأقوال دواړو روایتونونه مراددادې چه په یوصاع اوبوسره دَ غسل کیدل تقریبی امر دې نه چه تحدیدی.

**دَعلامه عینی رحمه الله نقد:** علامه عینی رحمه الله دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په مذکوره رائې باندې نقد فرمائیلی دې هغه وائی چه یوصاع اوبوسره غسل کیدلوته تقریبی امر وئیل نه چه تحدیدی، داپخپله دَ حافظ صاحب رحمه الله په سابق باب کښې حدیث مجاهد عن عائشه رضی الله عنها په ذیل کښې وئیلې شوې خبرې معارض دې ځکه چه دَامام مجاهد رحمه الله په روایت کښې تیرشو چه کله هغه صاع ناپ کړو نوهغه اته رطل وو. په دې باندې کلام کولوسره حافظ رحمه الله وئیلی وو «إن الحزر لا یعارض به التحدید» چه حزر (ناپ کول) دَ تحدید معارض نه

---

[1] هدی الساری:۲۵/۱ عمدة القاری:۲۹٤/۳.

[2] عمدة القاری:۲۹٤/۳.

[3] عمدة القاری:۲۹٤/۳ فتح الباری:٤۸۲/۲ إرشاد الساری:٤۹۱/۱.

[4] فتح الباری:٤۸۲/۲.

شي جوړيدې. لكه چه حافظ رحمه الله په باب سابق كښې تحديد صحيح او راجح ګرځولې وو. اوس «والمراد من الروايتين الخ» نه تقريب مراد اخستل دَ سابقه خبرې منافي او مناقض ده.(١)
دَامام بخاري رحمه الله غرض خوتعليق سره دَ روايت الفاظوكښې فرق بيانول دى ګنى څنګه چه دَ باب په رومبى روايت سره دَ تقريب معنى په واضحه توګه په پوهه كښې راځى هم دغه شان په مذكوره تعليق كښې «قدرصاع» الفاظ دَتحديد واضحت كوى. دَحافظ ا بن حجر رحمه الله دا وينا چه دواړو روايتونونه تقريب مراد دې نه چه تحديد، دا صحيح نه دى. حافظ صاحب په سابقه باب كښې صرف په حنفيه باندې دَ ردكولودَ پاره دَ تحديد قول صحيح ګرځولې او اوس دلته په دواړو روايتونوسره تقريب مراد اخلى حالاتكه په تعليق سره تقريب نه بلكه تحديد معلوميږى.

## الحديث الثاني

۲۵۲- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ، أَنَّهُ كَانَ عِنْدَ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ وَأَبُوهُ وَعِنْدَهُ قَوْمٌ فَسَأَلُوهُ عَنِ الغُسْلِ، فَقَالَ: «يَكْفِيكَ صَاعٌ»، فَقَالَ رَجُلٌ: مَا يَكْفِينِي، فَقَالَ جَابِرٌ: «كَانَ يَكْفِي مَنْ هُوَ أَوْفَى مِنْكَ شَعَرًا، وَخَيْرٌ مِنْكَ» ثُمَّ أَمَّنَا فِي ثَوْبٍ [حديث باب ۲٤۹، ۲۵۲، ۲۵۳] (٢)

ترجمه: موږ ته بيان اوكړو عبدالله بن محمد اووئيل موږ ته يحيى بن آدم، اووئيل موږ ته زهير دَ ابواسحاق نه هغه (ابواسحاق) وائى چه موږ ته ابوجعفر (محمدباقر) بيان اوكړو چه هغه اودَهغه پلار (زين العابدين) حضرت جابر رضي الله عنه سره وو اوهغوى سره څه خلق هم ناست وو. هغوى دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه دَغسل باره كښې تپوس اوكړو نوهغوى اووئيل ستاسودَپاره يوصاع اوبه كافى دى يوسړى (حسن بن محمدبن على) اووئيل ماله خوكافى نه دى. حضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائيل (دا مقدار اوبه) خوبه دَهغوى دَپاره كافى كيدلې دَ چا ويښته چه ستانه زيات ګڼړ وو او څوك چه ستا نه بهتر وو (يعنى حضورپاك) بيا حضرت جابر رضي الله عنه هم په يوه كپړه كښې زموږ امامت اوكړو.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفرعبدالله بن محمدبن عبدالله بن جعفر بن اليمان بن اخنس بن خنيس جعفى، بخارى، مسندى دى. دَ ده مختصر احوال كتاب الايمان باب امور الايمان لاندې (٣) او تفصيلى حالات كتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه دَ رومبى حديث په ذيل كښې تيرشوى دى. (٤)

---

(١) عمدة القاري:۳/۲۹٤.

(٢) احديث أخرجه البخاري في الباب نفسه رقم: ۲۵٦-۲۵۵ومسلم في صحيحه في كتاب الحيض، باب استحباب إفاضة الماء على الرأس وغيره ثلاثاً رقم:۳۲۹والنسائي في سننه، كتاب الغسل باب ذكر القدر الذي يكتفى به الرجل من الماء للغسل رقم:۲۲۱ انظر جامع الأصول:۱۸۳/۷ رقم:۵۳۲۹ وانظر كذلك تحفة الأشراف رقم:۲٦٤۱.

(٣) كشف الباري:۱/٦۵۷

(٤) راجع ص:۲٤۱.

**يحيى بن ادم:** دا ابوزكريا يحيى بن آدم بن سليمان كوفي اموي قرشي رحمه الله دې.(۱) طبقه تاسعه په كبار ائمه كښې دَدوى شمير كيږي.(۲) علامه ذهبي رحمه الله ليكلي دي چه دَ ۱۳۰هجري نه پس هغه پيداشوې خپل پلار ئې نه دې ليدلې لكه چه دې كوم وخت دَخپلې مور په ځيټه كښې وو نوهغه وخت دَده دَپلار انتقال شوې وو.(۳)

**اساتذه او شيوخ:** دَ يحيى بن آدم رحمه الله استاذان او شيوخ كښې ابراهيم بن حميد رواسى، ابراهيم بن سعد زهرى، اسرائيل بن يونس، بشر بن سرى، جرير بن حازم، حسن بن صالح، حسين على جعفى، حفص بن غياث، زهير بن معاويه، سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، سليمان بن مغيره، ابوالاحوص سلام بن سُليم، عبدالله بن مبارك، عمار بن زريق، عيسى بن طهمان، فضيل بن عياض، فطرابن خليفه، قطبه بن عبدالعزيز، مالك بن مغول، مسعر بن كدام، مفضل بن مُهَلهَل، ابوعوانه الوضاح بن عبدالله، وكيع بن الجراح، وهب بن خالد، يحيى بن زكريا بن ابى زائده، يزيد بن عبدالعزيز، ابوبكر بن عياش، ابوبكر نهشلى، ابوشهاب حناط او ابومعاويه ضرير رحمهم الله وغيره شامل دى.(٤)

**تلامذه:** دَدوى نه روايت كونكوكښې امام احمدبن حنبل، اسحاق بن راهويه، بشربن خالد عسكرى، سفيان بن وكيع بن جراح، ابوبكرعبدالله بن محمد بن ابى شيبه، عبدالله بن محمدمسندى، عبدالرحمن بن صالح ازدى، عبد بن حميد، عثمان بن محمد ابن ابى شيبه، على بن محمد طنافسى، على بن مدينى، محمدبن عبدالله بن مبارك، محمدبن العلاء، محمود بن غيلان مروزى، يحيى بن معين وغيره رحمهم الله دى.(۵)

**جلالت شان:** محمود بن غيلان رحمه الله وائي ما دَ ابواسامه رحمه الله نه واؤريده چه سيدنا حضرت عمر رضي الله عنه په خپله زمانه كښې په هراعتبارسره دَ خلقو مشر اوامير وو. دَهغوى نه پس (دَعلم په اعتبارسره) ابن عباس رضي الله عنهما دَهغوى نه پس شعبى رحمه الله دَهغوى نه پس سفيان ثورى رحمه الله او بيا يحيى بن آدم مشروو.(۶)

علامه ذهبي رحمه الله په سيراعلام النبلاء كښې په مذكوره قول باندې دَ ډيرو نورو كبار ائمه دَ نومونو اضافه كړې ده. دَ يحيى بن آدم رحمه الله باره كښې فرمائي چه هغه دَ لوئي ائمه اجتهاد نه وو.(۷) على بن مدينى رحمه الله فرمائي الله تعالى دې په يحيى بن آدم رحمه الله باندې رحم اوكړى هغه سره ښه ښكلې علم وو بيانى دَهغه مدح او تعريف بيان كړو.(۸) ابواسامه رحمه الله وائى «أنه كان جامعا للعلم»(۱)

---

(۱) تهذيب التهذيب:۱۱/۱۷۵تهذيب الكمال:۳۱/۱۸۸ الجرح والتعديل:۹/۱۸۵كتاب الثقات لابن حبان: ۹/۲۵۲الفهرست لابن النديم ص:۲۸۳ سيرأعلام النبلاء:۹/۵۲۲ تذكرة الحفاظ:۱/۳۵۹ الكاشف:۲/۳۶۰تقريب التهذيب ص۵۸۷ تاريخ الإسلام:۵/۳۸۸.

(۲) تقريب التهذيب ص۵۸۷ رقم الترجمة:۷۴۹۶.

(۳) سيرأعلام النبلاء:۹/۵۲۲ رقم الترجمة:۲۰۴.

(٤) تهذيب الكمال:۱۸۹-۱۹۰/ الجرح والتعديل:۹/۱۸۵تهذيب التهذيب: ۱۱/۱۷۵ سيرأعلام النبلاء:۹/۵۲۳ تاريخ الإسلام:۵/۳۸۸.

(۵) تهذيب الكمال:۱۹۰-۳۱/۱۹۱ سيرأعلام النبلاء:۹/۵۲۳ تهذيب التهذيب:۱۱/۱۷۵.

(۶) تهذيب الكمال:۳۱/۱۹۲.

(۷) سيرأعلام النبلاء: ۹/۵۲۵.

(۸) تهذيب الكمال:۳۱/۱۹۱ سيرأعلام النبلاء:۹/۵۲٤ تاريخ الإسلام:۵/۴۸۸.

دَ ائمه حضراتو توثیقی اقوال: یعقوب بن شیبه رحمه الله وائی «ثقة، کثیرالحدیث، فقیه البدن، ولم یکن له سن متقدم» (۱)علامه ذهبی رحمه الله تاریخ اسلام کښې لیکلي دي «کان فقیهاً إماماً قارئاً، غزیرالعلم» (۲) امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی «واحدالناس» (۳)ابوحاتم رحمه الله اوفرمائیل «کان یتفقه، وهو: ثقة» (۵) یحیی بن معین رحمه الله امام نسائی رحمه الله وغیره دَهغه توثیق کړې دې. (۶)ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَ دوی تذکره کړې ده هغه فرمائی «کان متقناً یتفقه» (۷) ابن سعد رحمه الله فرمائی «کان ثقة» (۸)عجلی رحمه الله وائی «کان ثقة، جامعاً للعلم، عاقلاً، ثبتاً فی الحدیث» (۹)حافظ ابن حجر رحمه الله تقریب کښې لیکلي دي «ثقة، حافظ، فاضل» (۱۰)ابن شاهین دَ یحیی بن ابی شیبه رحمه الله نه نقل کړې دی هغه فرمائی «ثقة، صدوق، ثبت، حجة، مالم یخالف من هوفوقه مثل وکیع» (۱۱)

وفات: محمدبن سعد رحمه الله امام بخاری رحمه الله اوابوحاتم رحمه الله فرمائی چه یحیی بن آدم رحمه الله وفات ۲۰۳هجری کښې شوې دې(۱۲)ابن سعد رحمه الله لیکلي دي چه صلح (۱۳)په سر باندې نصف ربیع الاول (۱۴)۲۰۳هجری مامون په زمانه کښې هغه وفات شوې(۱۵)دَمامُون وزیر حسن بن سهل دَهغه جنازه کړې وه. (۱۶)

زهیر: دا ابوخیثمه زهیر بن معاویه بن حدیج بن الرحیل بن زهیر بن خیثمه جعفی کوفي دې. دَ دوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب الصلاة من الایمان رومبې حدیث لاندې تیرشوی دی. (۱۷)

ابواسحاق: دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبیدسبیعی کوفي دې. دَ دوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب الصلاة من الایمان رومبې حدیث لاندې تیرشوی دی. (۱)

---

[1]) تهذیب ا لکمال:۱۹۲/۳۱ سیرأعلام النبلاء:۵۲۴/۹ تاریخ الإسلام:۴۸۸/۵.

[2]) تهذیب ا لکمال:۱۹۱/۳۱ سیرأعلام النبلاء:۵۲۴/۹ تاریخ الإسلام:۴۸۸/۵ تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱.

[3]) تاریخ اسلام:۴۸۸/۵.

[4]) تهذیب ا لکمال:۱۹۱/۳۱ سیرأعلام النبلاء:۵۲۴/۹ تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱ تذکرة الحفاظ:۳۶۰/۱.

[5]) الجرح والتعدیل:۱۵۸/۹تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱ سیرأعلام النبلاء:۵۲۴/۹.

[6]) تهذیب ا لکمال:۱۹۱/۳۱ سیرأعلام النبلاء:۵۲۳/۹ تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱ تذکرة الحفاظ:۳۶۰/۱.

[7]) کتاب الثقات:۲۵۲/۹ تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱.

[8]) الطبقات الکبری:۴۰۲/۶.

[9]) تهذیب التهذیب:۱۷۵/۱۱.

[10]) تهذیب التهذیب:۱۷۶/۱۱.

[11]) تهذیب التهذیب:۱۷۶/۱۱ تعلیقات تهذیب الکمال:۱۹۲/۳۱..

[12]) الطبقات الکبری:۴۰۲/۶ الجرح والتعدیل:۱۵۹/۹-۱۵۸التاریخ الکبیر:۲۶۲/۸.

[13]) الصلح: هوإسم نهر کبیر بین واسط وجبل علیه عدة قری، وعلیه کانت دار الحسن بن سهل وزیر المامون. انظر سیرأعلام النبلاء مع تحقیق کامل الخراط:۴۹۲/۹.

[14]) ابن حبان ربیع الآخر نقل کړې دې. کتاب الثقات:۲۵۲/۹.

[15]) الطبقات الکبری:۴۰۲/۶.

[16]) تهذیب الکمال:۱۹۲/۳۱تاریخ اسلام:۴۸۸/۵.

[17]) کشف الباری:۳۷۰/۲-۳۶۷.

**ابوجعفر:** دا ابوجعفر محمدبن علي بن الحسين بن علي بن ابي طالب دي چه دَ باقر په نوم سره مشهوردي (۱) دَ دوی حالات كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء الامن المخرجين لاندې تيرشوی دی.

**ابوه (علي بن الحسين):** دادَ ابوجعفر پلار علي بن الحسين بن علي بن ابي طالب علوی قرشي هاشمي دې.(۲) ابوالحسن دَدوی كنيت دې. ابوالحسن، ابومحمد او ابوعبدالله هم ورته وئيلی شی.(۳)دَده دَ مور نوم سَلامه يا سُلافه دې چه دَ شاه فارس يَزدَجزد لور وه.(۴) ابن سعد رحمه الله دَتابعين په طبقه ثانيه كښې دَ دوی تذكره كولوسره ليكلي دی چه دَده دَ مور نوم غزاله وو.(۵)

علامه مزی رحمه الله دَ يعقوب بن سفيان نه اوعلامه ذهبي رحمه الله تاريخ اسلام كښې نقل كړی دی چه علي بن حسين رضي الله عنه ۳۳هجری كښې پيداشوې.(۶) خو سيرأعلام النبلاء كښې علامه ذهبي ليكلي دی چه كيدې شی دَ دوی پيدائش ۳۸هجری كښې شوې دې.(۸)

**په معركه دكربلاكښې شوكت:** ده ته علي اصغيروئيلې شی. دَ ده نور رونړه چه دَ ده نه لوئی وو هغوی ته به علي اكبروئيلې شو. معركه دكربلا كښې خپل پلار حضرت امام حسين رضي الله عنه سره دې شهيدكړې شوې وو.(۹)

علي اصغر يعنی علي بن حسين هم خپل پلار حضرت امام حسين رضي الله عنه سره دَ كربلا په معركه كښې شريك وو. هغه وخت دَ ده عمر ۲۳ يا ۲۵كاله وو. دې په هغه موقعه باندې بيمار وو او په كټ پروت وو. كوم وخت چه حضرت امام حسين رضي الله عنه شهيدكړې شو نوشمر اووئيل دې هم قتل كړئی. دَ شمير ملګروكښې چا اووئيل سبحان الله آيا ته داسې ځوان قتل كول غواړې چه بيماردې او هغه زمونږ خلاف جنګ هم نه دې كړې. په دې كښې عمر بن سعد بن ابي وقاص راغلو اوهغه اووئيل چه دې بنځو اودې بيمار يعنی علي اصغر سره هيڅ غرض اونه كړئی. دې دَهغه ځائی نه دمشق ته راوړلې شو. يزيدد ده اكرام اوكړو اودَهغوی دكور والوسره ئې واپس مدينې ته اوليكلو.(۱۰)

**شيوخ حديث:** دَهغه په شيوخ حديث كښې دَهغه پلار حضرت امام حسين رضي الله عنه دَهغه تره حضرت امام حسن رضي الله عنه ام المؤمنين حضرت صفيه رضي الله عنها، ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها، حضرت ابوهريره رضي الله عنه، ابن عباس رضي الله عنهما ، ابورافع، مسور بن مخرمه، زينب بنت ابي سلمه،

---

۱) كشف الباري:۲/ ۳۷۰-۳۷۵.

۲) عمدة القاري: ۲۹۵،۷۷/۳.

۳)تهذيب الكمال:۳۸۲/۲۰ سيرأعلام النبلاء:۳۸۶/٤حلية الأولياء:۱۳۳/۳تذكرة الحفاظ:۷٤/۱تهذيب التهذيب:۳۰٤/۷كتاب الثقات:۱۵۹/۵ الجرح والتعديل:۲۲۹/۶التاريخ الكبير:۲۶۶/۶تاريخ الإسلام:۱۸۰/۳الكاشف:۳۷/۲.

٤) تهذيب الكمال:۳۸۲/۲۰ سيرأعلام النبلاء:٤/۳۸۶ تهذيب التهذيب:۳۰٤/۷ تاريخ الإسلام:۱۸۰/۳.

۵) سيرأعلام النبلاء:۳۸۶/٤تهذيب الكمال:۳۸۳/۲۰.

۶) الطبقات الكبرى:۲۱۱/۵تاريخ الإسلام:۱۸۱/۳.

۷) تاريخ اسلام:۱۸۱/۳ تهذيب الكمال:٤۰۲/۲.

۸) سيرأعلام النبلاء:٤/۳۸۶.

۹) تاريخ اسلام:۱۸۱/۳الطبقات الكبرى:۲۱۱/۵.

۱۰) الطبقات الكبرى:۲۱۲/۵-۲۱۱ تاريخ الاسلام:۱۸۱/۳سيرأعلام النبلاء:٤/۳۸۷-۳۸۶.

سعيد بن مسيب، سعيدبن مرجانه، مروان بن حکم، ذکوان ب، عمرو بن عثمان بن عفان، عبيد الله بن ابی رافع رحمهم الله وغيره شامل دی. دَحضرت علی رضی الله عنه نه مرسل روايت کوی.(۱)

**تلامذه:** دَ دوی نه روايت کونکو کښې دَهغوی خوئی ابوجعفر محمد، عمر، زيد، عبدالله ابن شهاب زهری، عمرو بن دينار، حکم بن عتيبه، زيد بن اسلم، يحيی بن سعيد، ابوالزناد، علی بن جدعان، جيب بن ابی ثابت، عاصم بن عبيدالله، عاصم بن عمر بن قتاده بن نعمان، قعقاع بن حکيم، ابوالاسود، هشام بن عروه، ابوزبيرمکی، ابوحازم، عبدالله بن مسلم بن هرمز، محمدبن فرات تميمی، منهال بن عمرو، حکيم بن جبير، زيدبن اسلم، طاوس بن کيسان، عاصم بن عبيدالله بن عاصم بن عمر بن الخطاب، عبيدالله بن عبدالرحمن، قاسم بن عوف شيبانی، محمدبن هلال مدنی، مسلم البطين، يحيی بن سعيد انصاری او ابوحمزه ثمالی وغيره شامل دی.(۲)

**جلالت شان او دَ ائمه توثيقی اقوال:** سفيان بن عيينه رحمه الله دَ زهری رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی «ما رأيت قرشياً أفضل من علي بن حسين»(۳) ما دَعلی بن حسين رحمه الله نه افضل يوقريشی نه دې ليدلې. ابن سعد رحمه الله طبقات کښې ليکلی دی «كان علي بن حسين ثقة، مأموناً، كثير الحديث، عالياً، رفيعاً، ورعاً»(۴) ابن عيينه رحمه الله دَ زهری رحمه الله نه نقل کړی دی چه زه به اکثردَ علی بن حسين رحمه الله په مجلس کښې کيناستم دَهغه نه لوئی هيڅوک ما فقيه نه دې ليدلې ليکن هغه به ډيرې کمې خبرې کولې.(۵) امام مالک رحمه الله فرمائی «لم يكن في أهل البيت مثله وهو ابن أمة»(۶) دَعلی بن حسن رحمه الله په شان په اهل بيت کښې بل څوک نشته حالانکه هغه دَ يوې وينځې څوئی وو. ابن حبان په کتاب الثقات کښې دَهغه تذکره کړې ده. فرمائی «كان من أفاضل بني هاشم من فقهاء أهل المدينة وعبادهم...... وكان يقال بالمدينة: إن علي بن الحسين سيد العابدين في ذلك الزمان»(۷) يعنی علی بن حسين رحمه الله دَ بنوهاشم دَ بهترين خلقو نه اود اهل مدينه دَ فقهاؤ اوعابدين نه وو. په هغه زمانه کښې په مدينه کښې هغه ته سيدالعابدين يعنی دَ عابدانو سردار وئيلې کيدلو. سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائی «ما رأيت أورع منه»(۸) امام عجلی رحمه الله فرمائی «مدني، تابعي، ثقة»(۹)

---

(۱) تهذيب الكمال ۳۸۳/۲ سير أعلام النبلاء: ۳۸۷/٤ تهذيب التهذيب: ۳۰٤/۷.

(۲) تهذيب الكمال ۳۸٤/۲-۳۸۳ سير أعلام النبلاء: ۳۸۷/٤ تهذيب التهذيب: ۳۰٤/۷.

(۳) تهذيب الكمال: ۳۸٤/۲۰ سير أعلام النبلاء: ۳۸۷/٤.

(۴) الطبقات الكبرى: ۲۲۲/۵ تهذيب الكمال: ۳۸٤/۲۰.

(۵) تهذيب الكمال: ۳۸٦/۲۰ سير أعلام النبلاء: ۳۸۹/٤.

(۶) سير أعلام النبلاء: ۳۸۹/٤ تهذيب الكمال: ۳۸۷/۲۰ تهذيب التهذيب: ۳۰۵/۷.

(۷) كتاب الثقات: ۱٦۰/۵-۱۵۹.

(۸) حلية الأولياء: ۱٤۱/۳ تهذيب التهذيب: ۳۰۵/۷ تهذيب الكمال: ۳۸۹/۲۰.

(۹) تهذيب التهذيب: ۳۰۵/۷ تهذيب الكمال: ۳۸۸/۲۰ سير أعلام النبلاء: ۳۸٦/٤.

**دَ عبادت كونكوزينت:** امام مالك رحمه الله فرمائي ماته دا خبره رسيدلې ده چه دَعلى بن حسين رحمه الله ترمرګه پورې هره ورځ زر رکعته نفل کولومعمول وو. ((وكان يسمى زين العابدين لعبادته)) هغه ته دَ كثرت عبادت دَ وجې نه زين العابدين وئيلې كيدلو.(¹)
امام زهري رحمه الله چه به كله هم دَ على بن حسين رحمه الله تذكره كوله نو ژړل به ئې او فرمائيل ئې زين العابدين يعنې هغه دَ عبادت كونكو زينت وو(²)ابونعيم رحمه الله فرمائي ((زين العابدين، منار القانتين، كان عابداً وفياً وجواداً حفياً)) (³)يعنې هغه دَ عبادت كونكو زينت، دَ قانتين علامت، دَعبادت حق اداكونكې او ډيرزيات سخي او مشفق وو.
**دَ الله تعالى نه ويره:** حضرت على بن حسين رحمه الله چه به كله دَ مانځه دَ پاره اودس كولو نو دَ مانځه پورې به په هغه باندې يو رنګ جاري وو. چادَې باره كښې پوښتنه اوكړه نووئې فرمائيل تاسو ته نه ده معلومه چه زه دَ چا په وړاندې اودريدو ته روان يم اوچاسره مناجات كونكې يم(يعنى الله تعالى ته).(⁴)
**سخاوت:** زين العابدين رحمه الله چه يوطرف ته دَ اوچتې درجې عبادت كونكې وو نوبل طرف ته ډير زيات سخي هم وو. چنانچه حجاج بن ارطاة دَ ابوجعفر رحمه الله نه نقل كړې دى هغه فرمائي چه زما پلار على بن حسين رحمه الله دوه ځل خپل ټول مال دَ الله تعالى په لار كښې وركړې وو. (⁵)
ابوحمزه ثمالي رحمه الله وائي على بن حسين رحمه الله به دَ شپې په تياره كښې په شا باندې ډوډئ راباركولې اومسكينان به ئې لټول اوفرمائيل به ئې چه دَ شپې په تياره كښې صدقه كول دَ الله تعالى غصه يخوي.(⁶)
شيبه بن نعامه وائي چه على بن حسين رحمه الله به خلقو په ژوند كښې بخيل خيال كولو خوچه كله دَهغوى انتقال اوشو نو پته اولګيدله چه ده به دَ مدينې دَ سلو كورونو كفالت كولو.(⁷)
**جلالت شان اوهيبت:** خلقوبه دَهغوى ډيرزيات قدر اوعزت كولو. ابونعيم رحمه الله علامه مزي رحمه الله او علامه ذهبي رحمه الله يوه مشهوره واقعه بيان كړې ده: هشام بن عبدالملك دَخپل خلافت دَ زمانې نه وړاندې يوځل حج له لاړو. دَ بيت الله شريف دَ طواف دوران كښې ئې څوځل دَ حجر اسود دَ ښكلولو اراده اوكړه ليكن دَ خلقو دَ رش دَ وجې نه ئې داسې اونه كړې شو. په دې كښې على بن حسين رحمه الله دَ طواف دَپاره تشريف راوړو او طواف ئې كولو. چه كله حجر اسود ته رانيزدې شو نوخلق دَهغه دَ جلالت شان اوهيبت دَ وجې نه روستو شو تردې چه هغوى حجراسود ښكل كړو. هشام ته دا خبره ښه ښكاره نه شوه. په اهل شام كښې چادَ هغه نه تپوس اوكړو داڅوك دې دَ چا هيبت نه چه خلق پخپله دَ هغه دَ پاره

---

¹) تهذيب الكمال: ٣٩٠/٢٠تهذيب التهذيب:٣٠٦/٧ سير أعلام النبلاء: ٣٩٢/٤.

²)حلية الأولياء:١٣٥/٣.

³) حلية الأولياء:١٣٣/٣.

⁴) الطبقات الكبرى:٢١٦/٥ تهذيب الكمال:٣٩٠/٢ سير أعلام النبلاء: ٣٩٢/٤.

⁵) حلية الاولياء: ١٤٠/٣ الطبقات الكبرى:٢١٩/٥ تهذيب التهذيب: ٣٠٦/٧.

⁶) حلية الاولياء:١٣٦/٣-١٣٥ تهذيب الكمال: ٣٩٢/٢٠ سير أعلام النبلاء: ٣٩٣/٤.

⁷) الطبقات الكبرى:٢٢٢/٥حلية الأولياء:١٣٩/٣تاريخ الإسلام:١٨٤/٣-١٨٣.

خائي خالي كولو باندې مجبور كړل؟ هشام په دې سوچ سره چه هسې نه اهل شام دَهغه طرف ته راغب نه شي وئي وئيل زه ئې نه پيژنم چه دا څوك دې. مشهور شاعر فرزدق نيزدې ولاړوو هغه اووئيل چه زه دې پيژنم نوشامي اووئيل چه اې ابوفراس دا څوك دې؟ په دې باندې فرزدق دَ علي بن حسين رحمه الله په تعريف كښې ډير شعرونه اووئيل په هغې كښې يوڅو دادي:

هذا الذي تعرف البطحاء وطأته والبيت يعرفه والحل والحرم

هذا ابن فاطمة إن كنت جاهله بجده أنبياء الله قد ختموا

ترجمه: ① دا هغه سړې دې دَ چا په تګ سره چه بطحا پيژني بيت الله، حل او حرم هم دې پيژني.

ترجمه: ② دا دَ فاطمه رضي الله عنها خوئي (نمسې) دې سره دَدې چه ته دَ ده باره كښې دَ تجاهل نه كار اخلې هم دَ ده دَ نيكه محمد ﷺ په ذريعه دَ انبياء كرامو سلسله ختمه كړې شوې ده. يعني دا داسې سړې دې څوك چه دَ بيت الله هره حصه پيژني اګرچه ته دَده دَ پيژنګلونه انكار كوې.

**دَ روافض دَځان نه جوړو شوو نظرياتونه براءت:** روافض دَ هغهٔ ائمه هدیٰ طرف ته ډيرزياتې غلطې اواسلامي نظريات سره متصادم خبرې منسوب كړې دي. هغوی دَ انبياء عليهم السلام په شان معصوم، مفترض الطاعه او منصوص من الله ګڼړي. العياذ بالله حالانكه دَدغه حضراتو نه خونه عملاً اونه علمي اعتبار سره داسې څه خبره نقل ده البته دَدې مخالف اقوال ضرور روايت دي.

چنانچه فضيل بن مرزوق وائي چه ما دَ عمربن علي رحمه الله او حسين بن علي رحمه الله نه سوال اوكړو چه آيا دَاهل بيت نه څوك سړې داسې هم شته دَ چا اطاعت چه فرض ګرځولې شوې وي. اوآيا تاسو دَدې پيژندګلو لرئي اوڅوك چه دَدې معرفت نه لري ولې هغه به دَ جاهليت په مرګ مرې؟ نودې دواړو اوفرمائيل په الله تعالى باندې قسم په اهل بيت كښې داسې هيڅوك سړې نشته دې چه مفترض الطاعة وي اوچه دَاهل بيت باره كښې داسې خبره اوكړي هغه كذاب (دروغژن) دې.

فضيل بن مرزوق وائي چه ماعمربن علي رحمه الله ته اووئيل چه شيعه ځان داعقيده لري چه حضورپاك دَ ځان نه پس دَ حضرت علي رضي الله عنه دَباره وصيت كړې وو هغوی دَ حسن رضي الله عنه دَباره اوحسن رضي الله عنه دَ حسين رضي الله عنه دَباره اوحسين رضي الله عنه دَخپل خوئي علي دَباره او هغه دَخپل خوئي محمد دَباره وصيت كړې وو. عمربن علي رحمه الله په جواب كښې اوفرمائيل په الله تعالى باندې قسم چه زما پلار په داسې حال كښې وفات شوې چه هغه دَ دوو حرفونوهم وصيت نه دې كړې. دغه خلقو باندې څه شوې دې چه مونږ پورې دروغ تړي الله تعالى دې دوی هلاك كړي. په الله پاك قسم دا خلق دَاهل بيت په نوم باندې خپلې خيټې ډكوي بيا ئې اوفرمائيل چه دا خنس دَ مارغانو ګندګي ده او تاسو ته معلومه ده چه خنس څوك دې راوي اووئيل ماوئيل چه معلى بن خنس وئي فرمائيل او معلى بن خنس. بيائې اووئيل ما تر ډيره وخته پورې سوچ كولو اوزه حيران شوم چه دَ دغه خلقو په عقلونو باندې الله تعالى پرده اچولې ده تردې چه معلى بن خنس هغوی ګمراه كړل.[1] عيسى بن دينار دَ ابوجعفر محمدبن علي بن حسين نه نقل كړي چه علي بن حسين دَ كعبه په دروازه كښې اودريدو او په مختاربن ابوعبيد باندې لعن كولو. چا اووئيل اې ابوالحسين تاسو په هغوی باندې ولې لعنت كوئي؟ حالانكه هغه ستاسو په نوم باندې ذبح

---

[1] تهذيب الكمال: ۲۰/۳۹۶-۳۹۵.

كرې شوې دې. علی بن حسين رحمه الله اوفرمائيل بيشکه هغه دروغژن وو په الله تعالى اودَ هغه په رسول ﷺ پورې به ئې دروغ تړل.(١)

**دَ بنواميه په اقتدا کښې مونځ:** حکم دَ ابوجعفر نه نقل کړی دی هغه فرمائی چه مونږ به دَ بنواميه په اقتدا کښې بغيردَ څه تقيه مونځ کولو اوزه دَخپل پلار باره کښې ګواهی ورکوم چه هغه هم دَ بنواميه په اقتدا کښې بغيردَ څه تقيه مونځ کولو.(٢)

**دَخلفاء راشدين رضي الله عنهم احترام:** دَاهل بيت دا پاکباز نفوس حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم خاص کر خلفاء راشدين باره کښې ئې نه يوازې دَ اهل سنت والجماعت والانظريه لرله بلکه دَهغوی دفاع کونکې هم ښکاريدل.

ابوحازم رحمه الله وائی چه دَعلی بن حسين رحمه الله نه چاتپوس اوکړو چه دَحضرت ابوبکر اوعمر رضي الله عنهما دَ حضورپاك په نيز څه مقام وو؟ هغه دَحضورپاك روضه مبارکې ته اشاره کولوسره اوفرمائيل لکه څنګه چه دوی دواړه نن دَحضورپاك په روضه مبارکه کښې رسول الله ﷺ سره دی هم دغه شان په ژوند کښې دَحضورپاك نيزدې ملګری او صحابه وو.(٣)

**دَخلفاء راشدين اوصحابه رضي الله عنهم دفاع:** محمدبن علی بن حسين رحمه الله دَخپل پلار نه نقل کړې دې هغوی له دَعراق نه څه خلق راغله اوهغوی دَحضرت ابوبکر اوعمر رضي الله عنهما تذکره اوکړه اوهغوی سب اوشتم اوکړو. بيائی دَ حضرت عثمان رضي الله عنه په شان کښې ګستاخی اوکړه نوحضرت علی بن حسين رحمه الله اوفرمائيل ماهغوی ته اووئيل آيا تاسو دَاولين مهاجرينونه ئې دَچاباره کښې چه الله تعالى دا ارشاد فرمائيلې ﴿لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا وَيَنصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ (٤)

هغوی اووئيل چه مونږ دَهغه خلقونه نه يودَچاباره کښې چه الله تعالى ارشادفرمائيلې دې. بيا حضرت علی بن حسين رحمه الله هغوی ته اووئيل چه آيا تاسو دَهغه خلقو نه يئی دَچاباره کښې چه الله تعالى دا ارشاد فرمائيلې ﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ (٥)

---

(١) الطبقات الكبرى:٢١٣/٥ تهذيب الكمال:٣٩٦/٢٠ سير أعلام النبلاء:٣٩٧/٤.

(٢) الطبقات الكبرى:٢١٧/٥ سير أعلام النبلاء:٣٩٧/٤.

(٣) تهذيب الكمال:٣٩٣/٢٠ سير أعلام النبلاء:٣٩٥/٤.

(٤) سورت الحشر الايه:٨. ترجمه: (داما ل فیء) دَهغه حاجت مندو مهاجرينو حق دی څوك چه دَ خپلو کورونو اومالونونه ويستلې شوی دې. هغوی دَ الله تعالى دَ طرف نه دَ فضل او خوشحالئی غوښتونکی دی اودَ الله تعالى اودهغه دَ رسول ﷺ امدادکوی هم دغه خلق صادقان دی.

(٥) سورت الحشر الايه:٩. ترجمه: اودهغه خلقودپاره دی چه اول دې ځائې (يعنی مدينه کښې) ايمان سره مقيم دی (يعنی انصاردمدينې) څوك چه دوی له هجرت کولوسره راځې دوی هغوی سره محبت کوی اوڅه چه دغه مهاجرينوته ورکولې شی دوی په خپلو سينو کښې دهغې هيڅ خواهش هم نه محسوس کوی اودوی له په خپل ځان باندې ترجيح ورکوی. که په دوی باندې دَ تنګدستياحالت تيرېږی اوکوم خلق چه دَخپل طبيعت دَ بخل نه محفوظ پاتې شی هم دغه هغه خلق دی چه فلاح اوخلاصې بياموندونکی دی.

هغوى اوونيل چه مونږ دَدغه خلقو نه هم نه يو په دې باندې حضرت زين العابدين رحمه الله اوفرمائيل چه تاسو خلقو پخپله ددې خبرې اظهاراوکړو چه تاسو په آياتونوکښې مذکور دواړو فريقونه نه يئ نوزه ددې خبرې گواهي ورکوم چه تاسو ددې دريمې ډلې نه هم نه يئ دَچاباره کښې چه الله تعالى ارشادفرمائيلې دې ﴿ وَالَّذِينَ جَاءُوا مِن بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ (١)

يحيى بن كثير دَ جعفر بن محمد رحمه الله نه اوهغوى دَخپل پلار نه نقل كړى دى هغه وائى زما پلار له يوسړې راغلو اووئې وئيل چه ماته دَابوبكر رضي الله عنه باره كښې اوبنايه (چه هغه څنگه سړې وو؟) هغه اوونيل دَصديق رضي الله عنه باره كښې تپوس كوې؟ هغه سړى اوونيل چه ته هغه ته صديق وائې؟ امام باقر رحمه الله اوفرمائيل ستامورددې تا ورك كړى ما نه بهتر يعنى رسول الله ﷺ اومهاجرين اوانصار هغه ته صديق وئيلې دې نوڅوك چه هغوى ته صديق نه وائى الله دې دَهغه خبره رښتيانه كړى زه ابوبكر اوعمر رضي الله عنهما سره محبت كوه اوهغوى عزيز گنړه دَدې ټوله ذمه وارى زما په سټ ده.(٢)يحيى بن سعيد وائى چه على بن حسين (زين العابدين) رحمه الله اوفرمائيل ((والله ماقتل عثمان إلا على وجه الحق)) (٣)

**وفات:** دَ حضرت زين العابدين رحمه الله دَ وفات دَ كال تعيين كښې اختلاف دې. ابونعيم، شباب، ابوبكربن ابى شيبه، على بن مدينى، قعنب بن محرز او ابن حبان رحمهم الله وغيره ٩٢هجرى دَهغوى دَوفات كال گرځولې دې.(٤) معن بن عيسى رحمه الله فرمائى ١٩٣هجرى كښې انتقال شوې. (٥) يحيى بن بكير رحمه الله نه دَ ٩٥هجرى قول نقل دې. (٦)بعض حضراتو نه دَ ٩٩هجرى قول هم مروى دې. (٧)على بن محمدمدائنى رحمه الله وائى ١٠٠هجرى كښې وفات شوې. (٨)يحيى بن عبدالله هاشمى وائى چه على بن حسين رحمه الله دَ چارشنبې په ورځ ١٤ربيع الاول ٩٤هجرى كښې وفات شوې دې.(٩)

واقدى، ابوعبيد، امام بخارى، فلاس، على بن جعفر بن محمد بن على بن حسين، عبدالحكيم بن عبدالله بن ابى فروه، على بن عبدالله تميمى، محمدبن عبدالله بن نمير، يحيى بن معين، عمروبن على، مصعب بن عبدالله زبيرى، زبير بن بكار او جعفرصادق رحمهم الله نه هم دَ وفات كال ٩٤هجرى

---

(١) سورت الحشرالايه: ١٠.ترجمه: اوهغه خلق چه دَدې مهاجرينو اوانصارو نه پس راغله هغوى دا وائى چه اې زمونږ پروردگار زمونږ مغفرت هم اوفرمايه اوزمونږ دَدغه رونړو هم چه زمونږ نه وړاندې ئې ايمان راوړلې دې اوزمونږ په زړونو كښې دَايمان راوړونكوپاره هيڅ بغض مه ساتې اې زمونږ پروردگارته ډير شفيق ډير مهربان ئې. نور اوگورئې: سيرأعلام النبلاء:٣٩٥/٤ تهذيب الكمال:٣٩٤/٤-٣٩٣.

(٢) تهذيب الكمال:٣٩٥/٢-٣٩٤ حلية الأولياء:١٣٧/٣-١٣٦سيرأعلام النبلاء:٣٩٥/٤.

(٣) الطبقات الكبرى:٣١٦/٥سيرأعلام النبلاء:٣٩٧/٤.

(٤) تهذيب الكمال:٤٠٣/٢٠سيرأعلام النبلاء:٤٠٠/٤كتاب الثقات:١٦٠/٥.

(٥) تهذيب الكمال:٤٠٣/٢٠سيرأعلام النبلاء:٤٠٠/٤تهذيب التهذيب:٣٠٧/٧تاريخ الإسلام:١٨٤/٣.

(٦) تاريخ الإسلام:١٨٤/٣تهذيب الكمال:٤٠٤/٢٠سيرأعلام النبلاء:٤٠٠/٤.

(٧) تهذيب الكمال:٤٠٤/٢٠تهذيب التهذيب:٣٠٧/٧.

(٨) تهذيب الكمال:٤٠٤/٢٠تهذيب التهذيب:٣٠٧/٧.

(٩) تاريخ الإسلام١٨٤/٣سيرأعلام النبلاء:٤٠٠/٤.

نقل دي.(۱)سفيان بن عيينه رحمه الله دَ جعفربن محمد نه هغه دَخپل پلار نه نقل کړی دی چه علی بن حسین رحمه الله ۵۸ کالو په عمر کښې وفات شوې. (۲)هم دغه خبره مصعب بن عبدالله يحيى بن بكير او ابوبكر بن البرقی وغیره رحمهم الله نه هم نقل ده.(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دَدې حضراتو دَ قول مقتضى دادې چه دَعلی بن حسین رحمه الله انتقال ۹۲ یا ۹۵ هجری کښې شوې خکه چه دا خبره ثابته ده چه ددوی پلار دَعاشورې په ورځ ۶۱ هجری کښې شهید شوې هغه وخت دَهغوی عمر ۲۳ کاله وو.(۴)
مصعب وائی چه په دغه کال یعنی ۹۴ هجری سنة الفقهاء (دَ فقهاء کال) وئیلوشو خکه چه په دغه کال په کثرت سره دَ فقهاؤ انتقال شوې وو.(۵) علامه ذهبی رحمه الله تایخ اسلام او سیرأعلام النبلاء کښې ۹۴ هجری قول صحیح گرځولې دې.(۶) جنت البقیع کښې جنازه شوې ده اوهم هلته مدفون دی.(۷) رحمه الله ورحمةً واسعةً.
**جابربن عبدالله رحمه الله:** دا مشهور اوجلیل القدر صحابی حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دې. دَدوی تذکره **كتاب الوضوء باب من لم ير الوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر** لاندې راغلې ده.

## شرح حديث

**قوله: أنه كان عند جابر بن عبدالله هو وأبوه وعنده قوم فسألوه عن الغسل:** ابوجعفر رحمه الله وائی چه هغه اودَهغه پلار (علی بن حسین) حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه سره ووا وهغه سره څه خلق هم ناست وو هغوی دَحضرت جابر رضي الله عنه نه دَغسل باره کښې تپوس اوکړو.

**قوله: هو وأبوه:** "هو" نه ابوجعفر محمدبن علی او "أبوه" نه علی بن حسین مراد دی.(۸)

**قوله: وعنده قوم:** اوحضرت جابر رضي الله عنه سره څه خلق ناست. دَ عنده ضمیر حضرت جابر رضي الله عنه طرف ته راگرځی.(۹)

**دَقوم نه کوم خلق مراددی؟:** دَ قوم نه څه خلق مراددی هیڅ تعیین اوتخصیص نشته دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ بخاری په کومونسخوباندې ماته واقفیت حاصل دې. په دې ټولوکښې قوم هم

---

(۱) سیرأعلام النبلاء:۴/۴۰۰ تهذيب الكمال:۲۰/۴۰۴-۴۰۳.
(۲) الطبقات الكبرى:۵/۲۲۱ تاريخ الإسلام:۳/۱۸۴ تهذيب التهذيب:۷/۳۰۷ سيرأعلام النبلاء:۴/۴۰۰ التاريخ الكبير:۵/۲۶۶ تهذيب الكمال:۲۰/۴۰۴.
(۳) تهذيب الكمال:۲۰/۴۰۴.
(۴) تهذيب التهذيب:۷/۳۰۷.
(۵) تهذيب الكمال:۲۰/۴۰۴ الطبقات الكبرى:۵/۲۲۱.
(۶) تايخ اسلام:۳/۱۸۴ سيرأعلام النبلاء ۴/۴۰۰ الكاشف:۲/۳۷.
(۷) الطبقات الكبرى:۵/۲۲۱ تهذيب الكمال:۲۰/۴۰۴ سيرأعلام النبلاء: ۴/۴۰۰.
(۸) عمدة القاري:۳/۲۹۵ فتح الباري:۲/۴۸۲.
(۹) فتح الباري: ۲/۴۸۲ تحفة الباري:۱/۲۲۱ إرشادالساري:۱/۴۹۱.

(نکره) دي البته "عمدة الأحكام" کښې "وعنده قومه" الفاظ دی او دَ "عمده" شارحين "قومه" ضمير دَ حضرت جابر رضي الله عنه طرف ته راګرځوی چه په هيڅ شان سره هم صحيح نه دی. بيا دا چه دَامام مسلم رحمه الله باره کښې که چرې دا تسليم کړې شی چه هغه هم دَمتفق عليه رواياتو نه تخريج کوی نو بيا دَ بخاری مذکوره روايت په صحيح مسلم کښې نشته دی. (١) دَحافظ صاحب رحمه الله دَ خبرې تائيد دې نه هم کيږی چه مذکوره روايت امام نسائی رحمه الله او په څه قدرې مختلف الفاظو سره امام مسلم رحمه الله هم نقل کړی دی ليکن دَ دې دواړو په روايت کښې هم دَ هغه خلقو دَ حضرت جابر رضي الله عنه دَ قوم نه کيدل نه دی وارد شوی. صحيح خبره هم هغه ده چه دَ بخاری شريف په متداول نسخو کښې دی. يعنی "قوم" (نکره) ده نه چه "قومه".

**قوله: فسألوه:** دَحضرت جابر رضي الله عنه نه دَسوال تپوس کونکې څوك وو؟ په دې باره کښې دَشراح حديث آرا مختلف دی.

**دَ شيخ الاسلام زکريا انصاری رائې:** شيخ الاسلام زکريا انصاری رحمه الله ليکلی دی چه سائل راوی حديث ابوجعفر وو يا خوله بنت جعفر وه. (٢)

**دَ جمهور شراح حديث رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينی رحمه الله علامه قسطلانی، علامه سيوطی او علامه کورانی رحمهم الله راوی حديث ابوجعفر سائل کيدو تعيين کړې دې. البته علامه کورانی دَدې تعيين دليل کښې دَ نسائی شريف روايت پيش کوی په کوم کښې چه ابوجعفر رحمه الله وائی «تمارينا في الغسل عند جابر بن عبد الله» (٣).

باقی ائمه حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينی رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله وغيره دَ اسحاق بن راهويه رحمه الله نه دَ ابوجعفر سائل کيدلو استدلال کړې دې. (٤) هم دغه صحيح ده. ځکه چه دَاسحاق بن راهويه په روايت کښې دَ راوی دَ طرف نه پخپله صراحت دې چه هغوی سوال کړې. چنانچه اسحاق بن راهويه په خپل مسند کښې جعفر بن محمد نه هغه دَخپل پلار (ابوجعفر) نه نقل کړی دی هغه فرمائی «سألت جابرا عن غسل الجنابة» (٥) زه (يعنی ابوجعفر) دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه دَ غسل جنابت باره کښې تپوس اوکړو.

**دَفسالوه په ظاهر باندې يو اعتراض:** فسألوه دَ ظاهر نه معلوميږی چه سوال دَ "قوم" دَ طرف نه وو. هم دَدې احتمال په بنياد باندې علامه کرمانی رحمه الله اعتراض قائمولو سره دا جواب ورکړې دې هغه فرمائی چه که چرې څوك دا اووائی چه سوال کونکې دَ قوم کسان وو يعنی يو کس نه وو.

---

(١) فتح الباری: ٤٨٢/٢.

(٢) تحفة الباری: ٢٢١/١.

(٣) الكوثر الجاری: ٤١٠/١.

(٤) فتح الباری: ٤٨٢/٢ عمدة القاری: ٢٩٥/٣ إرشاد الساری: ٤٩١/١.

(٥) فتح الباری: ٤٨٢/٢.

نوبيا په جواب کښې "يكفيك" ولې اووئيل يعنى كاف خطاب دَپاره دَ واحد مذكرراوړلو. دَ ظاهرحديث تقاضا خودا وه چه هغه فرمائيل «يكفى كل واحدمنكم صاع» چه په تاسو کښې دَ هريودَپاره به يوصاع كافى شي.(۱)

**دَعلامه كرمانى رحمه الله جواب:** علامه كرمانى رحمه الله فرمانى چه دَدې اعتراض جواب دادې چه سائل خو هم يوكس دې البته دَ سوال نسبت دَ قوم طرف ته ځکه کړې شوې دې چه هغه هم دَ قوم يوكس دې لكه چه وئيلې شى «النبوة فى قريش» يعنى نبوت په قريشوکښې دې سره ي دَدې چه نبى هم دَهغوى نه يوكس دې. دويم جواب على سبيل التسليم دا دې چه ټيك دې سوال دَ قوم دَ طرف نه وو خو يكفيك کښې خطاب عام دې چه پوره قوم ته شامل دې لكه دَ الله تعالى قول ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا رُءُوسِهِمْ﴾(۲) اودَ رسول الله ﷺ دا ارشاد «بشر المشائين فى ظلم الليالى إلى المساجد بالنور التام»(۳) په خطاب کښې عموم دې نولكه چه مطلب به داشي «يكفى لكل من يصح الخطاب له صاع» يعنى چاته چه هم خطاب صحيح وى هغه له به يوصاع كافى وى.(۴)

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله توجيه:** حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې توجيه په بل انداز سره بيان کړې ده هغه فرمائى چه سائل خو ابوجعفر رحمه الله يعنى يوكس دې اومجازاً دَ سوال نسبت دَ پوره قوم طرف ته کړې شوې دې. ځکه چه هغوى هم دَغسل باره کښې معلومات كول غوښتل. هم دغه وجه ده چه حضرت جابر رضى الله عنه جواب په حرف خطاب دَپاره دَ مفرد په ذريعه ورکړو اويكفيك ئى اوفرمائيل. په جواب کښې يوكس مخاطب جوړکړو ځکه چه نور خلق صرف تحقيق غسل په طلب او خواهش کښې شريك وو په سوال کښې شريك نه وو.(۵)

**قوله: : فسألوه عن الغسل فقال: يكفيك صاع:** هغوى دَ حضرت جابر رضى الله عنه نه دَ غسل باره کښې پوښتنه اوکړه نوهغوى جواب ورکړو ستاسودَپاره به يوصاع اوبه كافى وى.

**سوال دَ كوم څيزباره کښې وو؟:** دَحضرت جابر رضى الله عنه دَ جواب نه معلوميږى چه سوال دَ كميت ماء باره کښې وو.علامه كرمانى رحمه الله علامه كورانى رحمه الله اوفرمائيل چه دَ سائل سوال دَ غسل دَاوبو دَ مقدار باره کښې وو.(۶)

**قوله: : فقال: رجل: مايكفينى:** يو سړى اووئيل زما دَپاره (خودامقدار) كافى نه دې. دَ محدث اسماعيلى په روايت کښې منهم اضافه ده يعنى دَ قوم نه چا اووئيل.(۷)

---

(۱) شرح الكرمانى:۳/۱۱۶ عمدة القارى:۳/۲۹۵.

(۲) سورت السجدة:۱۲.

(۳) ترجمه:دَ شپې په تياره کښې دَ جماتونوطرف ته تلونكو ته دَ پوره نور زيرې ورکړه. والحديث أخرجه أبوداؤد فى سننه فى كتاب الصلاة باب ماجاء فى فضل العشاء والفجر فى الجماعة رقم:۲۲۳ انظر جامع الأصول رقم:۷۰۹۷.

(۴) شرح الكرمانى:۳/۱۱۶عمدة القارى:۳/۲۹۵.

(۵) فتح البارى:۲/۴۸۳.

(۶) شرح الكرمانى: ۳/۱۱۶عمدة القارى:۳/۲۹۵ الكوثرالجارى:۱/۴۱۰.

(۷) فتح البارى:۲/۴۸۳عمدة القارى:۳/۲۹۵.

**د رجل نه څوک مراددي؟**: دَ شراح حديث په دې باندې اتفاق دې چه رجل نه حسن بن محمد بن حنفيه مرادي.(۱) دَحنفيه نوم خوله بنت جعفر دې.(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي دَمحدث اسماعيلي الفاظ منهم نه زمونږ دَ روايت تائيد کيږي ځکه چه رجل نه حسن بن محمدبن علي بن ابي طالب المعروف بابن الحنفيه مرادې. لکه چه صاحب دَعمدة القاري په جزم سره وئيلي دي او حسن بن محمد دَحضرت جابر رضي الله عنه دَ قوم نه نه دې ځکه چه حسن بن محمد هاشمي اوحضرت جابر رضي الله عنه انصاري دې.(۳) په دې سره دَهغه خلقو هم ترديد کيږي څوک چه داوائي چه دَ قوم په ځائې قومه الفاظ دي او مراد دَ حضرت جابر رضي الله عنه قوم دې (کمامر).

دَ «**كتاب الغسل باب: من أفاض على راسه ثلاثاً**» آخري حديث نه هم معلوميږي چه دَ رجل نه مرادهم حسن بن محمد بن حنفيه رحمه الله مراددې لکه چه علامه کرماني رحمه الله دَدې طرف ته اشاره فرمائيلې دې.(۴)

**دَحديث نه مزاحمت باندې دَ حضرت جابر رضي الله عنه تنبيه**: دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه چه کله دَغسل باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نوهغه اوفرمائيل ستاسودَپاره به يوصاع اوبه کافي وي. په دې باندې په مجلس کښې موجود يوسړی (حسن بن محمدبن حنفيه) اووئيل چه زمادَپاره به دامقدار کافي نه شي. دَهغه دا خبره چونکه دَ حضورپاك دَ عمل په مقابله کښې وه په دې وجه حضرت جابر رضي الله عنه دَتنبيه په توګه ارشاد اوفرمائيلو «**كان يكفي من هوأوفى منك شعراً وخيرمنك**» (۵) يعنی هغه له خوبه کافي کيدلې دَ چاويښته چه ستانه زيات وو اوڅوك چه تانه بهتر وو.

دَحضورپاك دَعمل مخالفت يادَحديث اوسنت دَبيان نه پس دَ هغې په خلاف عمل باندې دَحضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم دَ طرف نه تنبيه يا دَخفګان اظهار په رواياتو کښې په کثرت سره وارد شوی دی.

دَحضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه هم دغه شان واقعه ده چه هغه خپل يونيزدې رشته دار ته دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث بيان کړو اوبيائې هغه دَدغې په خلاف عمل باندې اوليدلو نودَخفګان اظهارکولوسره ئې هغه سره خبرې اترې کولونه انکاراوکړو. چنانچه هم په بخاري شريف کښې امام بخاري رحمه الله «**كتاب الذبائح والصيد، باب الخذف والبندقة**» کښې عبدالله بن بريد په واسطه سره دَ حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه نقل کړی دی: «**أنه رأى رجلا يخذف، فقال له: لا تخذف، فإن رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن الخذف أوكان يكره الخذف، وقال: (أنه لا يُصادُ به صيدٌ ولا يُنكأ به عدوٌ، ولكنها قد تكسر السن، وتفقأ العين)، ثم رآه بعد ذلك يخذف فقال له: أحدثك عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه نهى عن الخذف، أوكره الخذف، وأنت تخذف، لا أكلمك كذا وكذا**».(۶)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه يوسړې په کانړو ويشتلو سره اوليدلو نوهغه‌ته ئې اووئيل چه کانړی مه اوله، ځکه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ کانړو ويشتلو نه منع فرمائيلې ده. يا حضورپاك به کانړی

(۱) فتح الباري: ۴۸۳/۳ عمدة القاري: ۲۹۵/۳ الكوثرالجاري: ۴۱۰/۱ التوشيح على الجامع الصحيح للسيوطي: ۲۴۳/۱.
(۲) فتح الباري: ۴۸۳/۲ عمدة القاري: ۲۹۵/۳.
(۳) فتح الباري: ۴۸۳/۲.
(۴) الكوثرالجاري: ۴۱۰/۱.
(۵) فضل الباري: ۴۲۹/۲.
(۶) رقم الحديث: ۵۴۷۹.

ويښتل ناخوښه ګڼړل او حضورپاك اوفرمائيل چه په دې سره خو نه ښكار كيدې شي او نه په دې سره دشمن زخمي كيدې شي. او ليكن دَ چا غاښ ماتولې شي، يائې سترګه ويستې شي. بيا حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه هغه سړي په كاڼړو ويشتلوسره اوليدلو نوورته ئې اووئيل چه ماتاته دَ رسول الله ﷺ حديث بيان كړو چه حضورپاك دَ كاڼړو ويشتو نه منع كړې ده يا ئې دا ناخوښه ګڼړلى دى اوته كاڼړى اولې زه به تاسره بيا خبرې اونه كړم.

دَ مسلم شريف په روايت كښې «لاأكلمك أبداً» الفاظ راغلى دى.(١) يعنى زه به آننده تاسره كله هم خبرې اونه كړم.

**قوله::** أوفى منك شعراً: **شعراً** مرفوع او منصوب دواړه شان نقل كړې شوې دې. مرفوع به وى دَ خبر كيدو دَ وجې نه او چه منصوب وى نو تميزبه جوړيږى دَدې الفاظونه مراد رسول الله ﷺ دې.

**دَاوفى مطلب:** شيخ الاسلام زكريا انصارى او علامه قسطلاني رحمه الله اوفرمائيل چه «أوفى» مطلب اكثردې. يعنى دَ حضورپاك ويښته ستاسو دَ ويښتو نه زيات وو. خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه أوفى كښې دوه احتماله دى چه ويښته دَ صفت او مقدار په اعتبارسره أوفى وو. يعنى دَ رسول الله ﷺ ويښته ستاسو دَ ويښتونه اوږده هم وو او زيات هم.(٢)

**قوله::** وخيرمنك: دَ اصيلى په نسخه كښې «خيراً» منصوب دې باقى نسخوكښې مرفوع دې. دَ مرفوع كيدو په صورت كښې دَدې عطف «أوفى» باندې وى كوم چه دَ هو خبردې. نولكه چه دَمرفوع كيدو وجه په خبر باندې عطف كيدل دى. اوكه چرې منصوب اولوستلې شى لكه چه دَ اصيلى په نسخه كښې دې نوبيابه دَدې عطف په من موصوله باندې وى اومن محلاً منصوب دې ځكه چه هغه دَيكفي مفعول دې.(٣)

**دَ حضوراكرم ﷺ ويښته مبارك:** امام ترمذى رحمه الله په شمائل كښې «باب ماجاء في شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم» په عنوان سره دَحضرت عائشه حضرت براء بن عازب حضرت انس حضرت ام هانى بنت ابى طالب اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهم نه اته احاديث نقل كړى دى دَهغه ټولو خلاصه داده:

① دَحضوراكرم ويښته نه بالكل اينختى وو اونه بالكل خلاص، بلكه لږ شان اينختى او ګوركوتى وو.

② دَحضورپاك ويښته نيمې غوږونو پورې وو.

③ دَحضورپاك ويښته مبارك داسې وو چه دَ غوږونو دَ نرمئى پورې وو څه دَهغې نه زيات وو اودَهغې نه كم وو كوم چه دَ اوږو پورې وى.

④ بعض وخت به دَحضورپاك ويښته څلور حصې دَ ګمسو په شان وو مراد هغه ګمسې دى په كوموكښې چه ښځو سره تشبيه نه وى ځكه چه دَ تشبيه نه حضور ﷺ پخپله ممانعت فرمائيلې دې.

⑤ حضورپاك به چه دَ اسلام په شروع كښې په كوموكښې چه ممانعت نه وو راغلې دَهغې دَ وجې نه ئې دَ اهل كتاب په موافقت كښې ويښته بغيردَ لاړې ويستلو هم داسې پريخودل. ليكن روستو دَاهل

---

(١) كتاب الصيد والذبائح، باب إباحة مايستعان به على الاصطياد والعدو وكراهة الخذف، رقم الحديث: ٥٠٥٣-٥٠٥٤.

(٢) تحفة البارى:١/٢٢١إرشادالسارى:١/٤٩١ فتح البارى:٢/٤٨٣.

(٣) شرح الكرمانى:٣/١١٦عمدة القارى:٣/٢٩٥ فتح البارى:٢/٤٨٣ تحفة البارى:١/٢٢١إرشادالسارى:١/٤٩١.

كتاب دَ موافقت والاحكم منسوخ شو نو حضورپاك به دَاهل كتاب په مخالفت كښې په سركښې لاړ وېستله.(١)

⑥ دَحضرت براء بن عازب رضي الله عنه روايت دې چه حضورپاك دَ ګڼرو وېښتو والا وو.(٢)

**په مختلفورواياتوکښې تطبيق:** ملاعلى قارى رحمه الله او شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله فرمائى دَ حضورپاك دَ زلفومباركودَ مقدار باره كښې مختلف روايات واردشوى دى او په هغې كښې څه تعارض هم نشته دې. ځكه چه وېښته دَ لوئيدلو ځيزدې. كه په يوه زمانه كښې دَ غوږونودنرمو پورې وو نو په بل وخت كښې دَهغې نه زيات، ځكه چه دَ حضورپاك سر خرول يوځو ځل ثابت دى نوچاچه دَ نيزدې زمانه نقل كړې ده هغه واړه وېښته نقل كړى دى اوچاچه دَ وېښتو خرولو دَ مودې پورې وخت نقل كړې دې نوهغه زيات وېښته نقل كړى دى. بعض علماؤ روايات داسې هم جمع كړى دى چه دَ سر مبارك دَ وړاندې حصې وېښته دَ نيمو غوږونو پورې رسيدلې وو اودَ مينځ دَ سرمبارك دَ دې نه ښكته پورې اودَ آخرسر وېښته اوږو سره نيزدې پورې.(٣)

دَحديث شارحينوحضراتو ليكلى دى چه دَحضورپاك دَهجرت په كالونوكښې صرف درې ځل دَ حديبيه، عمرة القضاء اوحجة الوداع په موقع باندې وېښته خرولې دى اوصرف يوځل ئې وېښته واړه كړى دى.(٤)

علامه عبدالرؤف مناوى رحمه الله دَ ابن العربى رحمه الله نه نقل كړى دى: ((الشعر فى الرأس زينة وتركه سنة وحلقه بدعة وحالة مذمومة، جعلها المصطفى (صلى الله عليه وسلم) شعار الخوارج))(٥) يعنى په سرباندې وېښته دَ زينت سبب دې وېښته پريخودل (لويول) سنت دى او (مستقل) حلق (ګنجى) كول بدعت اومذموم حالت دې. (مبالغه او استمرار سره) حلق كول حضرت محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم دَخوارجو شعار ګرځولې دې.

**دَحضرت جابر رضي الله عنه دقول مقصد:** دَ زياتو اوبواستعمالول دَ دوو وجوهاتونه پېښيږى يودَ وېښتودَ زياتوالى او بل دَ نظافت دَ وجې نه. دَحضرت جابر رضي الله عنه مقصد دا وو چه ما څه وئيلى دى هغه مې دَ حضورپاك دَعمل په رڼا كښې وئيلى دى اوحضورپاك ته به دومره مقدار كافى كيدلو. ستادَپاره ددې مقدار ناكافى كيدلو څه وجه ده؟ ولې ستا دَ سر وېښته دَ حضورپاك نه زيات دى يا ته دَ حضورپاك نه زيات احتياط كونكې ئې؟ دَرسول الله صلى الله عليه وسلم په مبارك سر باندې ستا نه زيات وېښته وو اوحضورپاك ستانه زيات بهتر او احتياط كونكې وو. ستادَ پاره ناكافى كيدلو وجه اسراف كيدې شى. كه چرې ته

---

(١) الشمائل المحمدية والخصائل المصطفوية، ص:١٩-١٧، رقم الحديث: ٢٤، ٢٥، ٢٦، ٢٧، ٢٨، ٢٩، ٣٠، ٣١، أشرف الوسائل إلى فهم الشمائل، ص:٩٧-٩٣جمع الوسائل فى شرح الشمائل، ص:٩٩-٩٠، خصائل نبوى شرح شمائل نبوى ص:٤٧-٤٤.

(٢) الحديث أخرجه الترمذى فى الشمائل باب ماجاء فى خلق رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٨ رقم الحديث:٣.

(٣) جمع الوسائل فى شرح الشمائل باب ماجاء فى شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٩٩،خصائل نبوى، ترجمه وشرح شمائل ترمذى، باب ماجاء فى شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٤٤.

(٤) جمع الوسائل فى شرح الشمائل باب ماجاء فى شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٩٩. خصائل نبوى، ترجمه وشرح شمائل ترمذى، باب ماجاء فى شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم ص:٤٤.

(٥) شرح الشمائل للمناوى بهامش جمع الوسائل ص:٩٠.

دَ اوبو په استعمال کښې اسراف پرېږدې نودَ اوبوچه کوم مقدار ذکر کړې شوې دې هغه دَغسل دِپاره کافي کېدې شي.[1]

ابن رجب حنبلي رحمه الله نقل کړي دي، حضرت جابر رضي الله عنه ته ويونکي چه زمادِپاره يوصاع کافي نه دی حسن بن محمد بن حنفيه رحمه الله وو اوهم هغه دَ ټولو نه اول دَ ارجاء قول اختيارکړې وو.[2] دا هم وئيلې شي چه حضرت حسن بن محمد رحمه الله په طهارت کښې زياتې اوبه استعمالولو په حواله سره دَ اباضيه دَ مسلك طرف ته مائل وو.[3]

**دَ اوبوپه استعمال کښې اعتدال:** که چرې په اعتدال سره اوبه استعمال کړې شي نو يوصاع په اندازه باندې اوبه کافي کېږي او واقعه داده چه دَ بې اعتدالئي په وجه اوبه زياتې خرڅ کېږي. علامه نووي رحمه الله ليکلي دي چه امام شافعي رحمه الله فرمائي «قد يرفق بالقليل فيكفي، ويخرق بالكثير فلا يكفي»[4] يعني په طريقه سره لږې اوبه هم کافي کېږي اوبې طريقې سره ډيرې زياتې هم ناکافي کېږي. علامه کرماني رحمه الله ليکلي دي چه په يوصاع اوبوسره غسل کول مندوب دی په دې معنی چه اوبه دَ يوصاع نه کمې نه وي اوکه چرې دَ يوصاع نه ئې زياتې استعمال کړې ليکن اسراف ئې اونه کړو نوسنت ئې اداکړل اوکه دَدې نه ئې په کموسره غسل اوکړو نوجائزدی.[5]

**قوله: :ثم أمنا في ثوب:** بيا هغوی هم په يوه کپړه کښې زمونږ امامت اوکړو. امامت چا اوکړو؟ «ثم أمنا في ثوب» دَ چا وينا ده اوهم په يوه کپړه کښې امامت کونکې څوك وو؟په دې باره کښې دَ حديث دَ شراح رائې کښې اختلاف دې.

**دَ علامه کرماني رحمه الله رائې:** علامه کرماني رحمه الله په دې باره کښې دوه احتماله بيان کړي دی. يو دا چه «ثم أمنا في ثوب» دَ حضرت جابر رضي الله عنه قول وی اودَدې عطف «كان يكفي» باندې وی معنی به داشي چه حضرت جابر رضي الله عنه اووئيل چه بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم په يوه کپړه کښې زمونږ امامت اوکړو. او دويم احتمال دادې چه «ثم أمنا في ثوب» دَ ابوجعفر رحمه الله قول وی اودَدې عطف «فقال جابر» باندې وی، يعنی ابوجعفر رحمه الله اووئيل چه بيا حضرت جابر رضي الله عنه په يوه کپړه کښې زمونږ امامت اوکړو.[6]

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله دويم احتمال ته ترجيح ورکړې ده. هغوی فرمائي چه «أمنا» فاعل حضرت جابر رضي الله عنه دې لکه چه ډير زر به په کتاب الصلاة کښې دَ حضرت جابر رضي الله عنه دَ

---

[1] فضل الباري:٤٢٩/٢.

[2] فتح الباري لابن رجب الحنبلي:١٤٦/١دَ ارجاء سره متعلق تحقيقي خبره حضرت حسن بن محمد بن حنفيه رحمه الله په حالاتو کښې راځي انظر ص: ٣٨٤-٣٨١.

[3] اباضيه عبدالله بن اباض منونکوته اباضيه وئيلې شي دَ مروان بن محمد په زمانه کښې خروج کړې هغه عبدالملك بن محمدبن عطيه دهغه په قتال باندې مامورکړو. عبدالملك دَ تباله په مقام باندې هغه سره قتال اوکړو، عبدالله ابن يحيى اباضي د عبدالله بن اباض نيزدې دوست او دَ اباضيه داعي وو. انظر للتفصيل: الملل والنحل: ١٣١/١، فتح الباري لابن رجب الحنبلي:١٤٦/١.

[4] المنهاج: ٢٢٧/٤ المجموع: ١٨٩/٢.

[5] شرح الكرماني:١١٦/٣.

[6] شرح الكرماني:١١٦/٣.

حپل عمل بيان راځى.(١)شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمه الله علامه قسطلانى رحمه الله اوعلامه سيوطى رحمه الله هم دَ «أمنا» فاعل حضرت جابر رضي الله عنه ګرځولې دې.(٢)

**دَعلامه عينى رحمه الله رائې:** علامه عينى رحمه الله هم دحضرت جابر رضي الله عنه په يوه كپړه كښې دَ امامت كولو ته ترجيح وركړې ده. البته هغه دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ترجيح په وجه باندې ردكړې دې هغه فرمائى دَحافظ صاحب رحمه الله دَدې نه مقصود په علامه كرمانى باندې ردكول دى اودَدې رد دپاره هغوى په كتاب الصلاة كښې دَمحمدبن منكدر رحمه الله دَ روايت نه استدلال كړې دې. دَهغوى په روايت كښې دى «رأيت جابراً يصلى فى ثوب واحد وقال رأيت النبى صلى الله عليه يصلي فى ثوب» يعنى ما حضرت جابر رضي الله عنه په يوه كپړه كښې مونځ وركولوسره اوليدلو اوحضرت جابر رضي الله عنه وائى چه ما حضورپاك په يوه كپړه كښې مونځ وركولوسره اوليدلو.(٣)

دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په دې روايت سره په علامه كرمانى رحمه الله باندې رد كول بې وجې دى ځكه چه په دې روايت كښې خو دَ حضرت جابر رضي الله عنه اورسول الله ﷺ دواړو په يوه كپړه كښې مونځ وركولو سره ليدلو ذكر دې نوبيا دَ علامه كرمانى رحمه الله بيان كړې شوې دوو احتمالاتوكښې يوختمول او بل ته ترجيح وركولودليل څنګه جوړولې شى.(٤)

**دَعلامه كورانى رحمه الله رائې:** علامه كورانى رحمه الله اوفرمائيل په يوه كپړه كښې امامت كونكې حضرت جابر رضي الله عنه وو. هغوى «كتاب الصلاة باب عقد الإزار على القفا فى الصلاة» دَ رومبى روايت نه استدلال كړې دې. محمد منكدر رحمه الله وائى چه حضرت جابر رضي الله عنه په يوتهبند كښې مونځ اوكړو په داسې حال كښې چه هغه دَادَ مخې طرف نه تړلې وو اودَهغوى كپړې په كونډه كښې زوړند وې. چا اوونيل «تصلى فى إزار واحد؟ فقال: إنما صنعت ذلك ليرانى أحمق مثلك، وأينا كان له ثوبان على عهد النبى صلى الله عليه وسلم»(٥) يعنى تاسو په يوتهبند كښې مونځ كوئى؟حضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائيل چه ما داسې ځكه كړى دى چه ستا په شان احمق ماته اوګورى، او بل دا چه مونږ كښې چاسره دَ رسول الله ﷺ په زمانه كښې دوه كپړې وې.

بيا علامه كورانى رحمه الله په دغه خلقو (علامه عينى رحمه الله وغيره) باندې رد كړې دې چاچه دَامامت نسبت دَحضورپاك طرف ته كړې دې وئى فرمائيل دادَهغوى لغزش دې.(٦) خلاصه دا چه «أمنا» فاعل حضرت جابر رضي الله عنه دې الكه چه دَ شراح حديث دَ اقوال نه معلومه شوه اودلته دَدې امامت نسبت

---

(١) فتح البارى:٤٨٣/٢.

(٢) تحفة البارى:٢٢١/١إرشادالسارى:٤٩٢/١ التوشيح:٢٤٣/١.

(٣) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الصلاة باب عقد الإزار على القفا فى الصلاة رقم:٣٥٣.

(٤) عمدة القارى:٢٩٦/٣-٢٩٥.

(٥) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الصلاة، باب عقد الإزارعلى القفا فى الصلاة رقم:٣٥٣-٣٥٢وفى باب إذا صلى فى الثوب الواحد فليجعل على عاتقيه، رقم:٣٥٩ وفى باب: الصلاة بغير رداء: رقم: ٣٧٠.

(٦) الكوثر الجارى:٤١٠/١.

دَحضورپاك طرف ته كول صحيح نه دي. ابن ملقن رحمه الله ليكلي دي چه «ثم أمنا في ثوب» مقتضى كښې هيڅ اختلاف نشته دې ځكه چه په يوه كپړه كښې مونځ كول جائزدى سره دَدې چه كه هغه امام وى.[1]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمائى چه دَ روايت الفاظ «يكفيك» «صاع» نه ترجمة الباب راوتلې دې. امام بخاري رحمه الله دا ثابتول غواړى چه دَحضورپاك په غسل كښې چه دَ يوصاع اوبودا كوم ذكر راغلې دې هلته صرف هغه مقدار مذكوردې كوم چه كفايت كوى. دَ يوصاع تحديد مقصودنه دې. دَ ترجمه هم دغه مقصد دې.[2]

**دَحديث نه مستنبط شوې مسائل:** دَدې حديث نه دا لاندينئ مسئلې مستنبط كړې شوې دى.:

① سلف صالحين به دَ حضورپاك عمل هم مدارِدَ استدلال جوړولو اودهغې تابعداري به ئى كوله.[3]

② په داسې سړى باندې رد كول او تنبيه كول جائز دى چه بغيردَعلم اوتحقيق بحث مباحثه كوى او سخت رانيول ئى هم صحيح دى. كه چرې دَ تنبيه كونكى مقصد دَ حق وضاحت او سامعين دَدې نه بندول وى.[4]

③ دَ اوبوپه استعمال كښې دَ اسراف كراهيت هم دې نه ثابتيږى.

④ په غسل كښې دَ يوصاع اوبه استعمالول مستحب دى.[5]

⑤ دَدې روايت نه په يوه كپړه كښې مونځ كولو جواز هم معلوميږى.

## الحديث الثالث

٢٥٣- حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُونَةَ كَانَا يَغْتَسِلَانِ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ» قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: «كَانَ ابْنُ عُيَيْنَةَ يَقُولُ أَخِيرًا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى أَبُو نُعَيْمٍ» [حديث باب:[٢٥٠]][6]

---

[1]) التوضيح:٤/٥٥٧.

[2]) فضل الباري:٢/٤٢٩.

[3]) فتح الباري:٢/٤٨٣عمدة القاري:٣/٢٩٦فضل الباري:٢/٤٢٩.

[4]) عمدة القاري:٣/٢٩٦فتح الباري:٢/٤٨٣فضل الباري:٢/٤٢٩.

[5]) فتح الباري:٢/٤٨٣عمدة القاري:٣/٢٩٦إرشاد الساري:١/٤٩٢فضل الباري:٢/٤٢٩.

[6]) الحديث أخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الحيض، باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة، غسل أحدهما بفضل الآخر، رقم:٣٢٢، وأخرجه الترمذي في سننه في أبواب الطهارة، باب ماجاء في وضوء الرجل والمرأة من إناء واحد رقم:٦٢، وأخرجه النسائي في سننه في كتاب الطهارة، باب ذكر اغتسال الرجل والمرأة من نسائه من إناء واحد، رقم:٢٣٧، وأخرجه ابن ماجه في سننه، كتاب الطهارة وسننها، باب الرجل والمرأة يغتسلان من إناء واحد، رقم:٣٧٧، انظر جامع الأصول النوع الثامن في اجتماع الرجل والمرأة على الإناء الواحد رقم:٥٠٤١، وانظر كذلك تحفة الأشراف رقم: ٥٣٨.

قال أبوعبدالله: كان ابن عيينة يقول أخيرا: عن ابن عباس عن ميمونة، والصحيح ما رواه أبونعيم.(١)

ترجمه: مونږ ته ابونعيم بيان كړې دې، وئي وئيل چه مونږ ته سفيان بن عيينه بيان اوكړو، هغه د عمرو بن دينار نه هغه د جابربن زيد نه هغه د ابن عباس رضي الله عنهما نه چه نبي كريم اوحضرت ميمونه رضي الله عنها دواړو (په يوخائې) په يولوښي سره غسل كولو.

امام بخاري رحمه الله فرمائي سفيان بن عيينه رحمه الله په خپل آخري عمركښې داسې فرمائيل: «دا روايت مروي دې» دابن عباس نه هغه د ميمونه رضي الله عنها نه «نقل كړې دې» اوصحيح هم هغه روايت دې كوم چه ابونعيم نقل كړې دې.

## تراجم رجال

**ابونُعيم:** دامشهورمحدث ابونعيم الفضل بن دكين عمرو بن حمادالملائي الكوفي الاحول دې. د دوي تفصيلي احوال «كتاب الإيمان باب: فضل من استبرأ لدينه» د رومبي روايت په ذيل كښې راغلي دي.(٢)

**ابن عيينه:** دا ابومحمد سفيان بن عيينه بن ابي عمران هلالي كوفي رحمه الله دې. د دوي مختصرحالات بدء الوحي د رومبي حديث لاندې (٣)اوتفصيلي حالات «كتاب العلم، باب قول المحدث: حدثنا أوأخبرنا وأنبأنا» د دريم حديث لاندې راغلي دي.(٤)

**عمرو:** دامشهور امام اوفقيه ابومحمد عمرو بن دينار مكي جُمَحِي رحمه الله دې. د دوي تفصيلي حالات «كتاب العلم كتابة العلم» د دريم حديث لاندې راغلي دي.(٥)

**جابربن زيد:** دا جابربن زيد ازدي يحمدي بصري جوفي ياخوفي دې. ابوالشعثاء د دوي كنيت دې(٦)

**د جوف طرف ته د نسبت وضاحت:** جوف د جيم فتحه واؤ په سكون اودې نه پس فاء سره، د عمان د يوې علاقې طرف ته نسبت دې. امام بخاري علامه مزي ابن حبان ابن سعد مغلطائي او ابن حجر رحمهم الله وغيره هم دغه نسبت نقل كړې دې.(٧)علامه ذهبي رحمه الله ليكلي دي چه دا لفظ «جوف نه» بلكه خوف خاء سره دعمان يوه علاقه ده. په دې وجه د هغوي نسبت خوفي دې.(٨)علامه سمعاني رحمه الله

---

(١) د كشف الباري د متن د پاره استعاليدونكې «داكټر مصطفى ديب البغاء صاحب» په نسخه كښې مذكوره تعليق موجود نه دې. خوددې په خائې په طباعت كښې د غلطئ د وجې نه د سابقه حديث تعليق مكرردې. د كوم تصحيح چه كړې شوې ده.

(٢) كشف الباري:٢/٦٦٩-٦٧٣.

(٣) كشف الباري:١/٢٣٨.

(٤) كشف الباري:٣/١٠٢-١٠٦.

(٥) كشف الباري:٤/٣٠٩-٣١٣.

(٦) اوګورئ: التاريخ الكبير:٢/٢٠٤، تهذيب الكمال:٤/٤٣٤، الجرح والتعديل:١/٤٢٧، كتاب الثقات:٤/١٠١، حلية الأولياء: ٣/٨٥، تهذيب الأسماء واللغات:١/١٤١، الكاشف:١/١٨٧، تذكرة الحفاظ: ١/٧٢، سيرأعلام النبلاء:٤/٤٨١، والبداية والنهاية:٩/١٠٣، تهذيب التهذيب:٢/٣٨، إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢١، الأنساب:٢/١٢٢، الكامل في التاريخ:٤/٢٧٩.

(٧) التاريخ الكبير:٢/٢٠٤، تهذيب الكمال:٤/٤٣٥، كتاب الثقات:٤/١٠١، الطبقات الكبرى:٧/١٧٩، إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢١، تهذيب التهذيب:٢/٣٨، تقريب التهذيب:١/١٥٢.

(٨) سيرأعلام النبلاء:٤/٤٨١.

الأنساب كښې عمرو بن علي فلاس نه نقل كړى دى چه جوف فتحه دَ جيم سكون دَ واؤ او په آخره كښې فاء درب الجوف (دَ جوف كنده) طرف ته نسبت دې او جوف دَ بصره يوه علاقه ده.[١]

علامه مزى رحمه الله هم په قيل دا قول نقل كړې دې.[٢]

**په اقوال كښې تطبيق:** په دې اقوالو كښې دَتطبيق صورت دادې چه جابر بن زيد رحمه الله په اصل كښې خودَ جوف عمان وو روستودَ بصره علاقه ازد ته راغلو اوسيدو. هغه دَخپل پلاركښې علاقې جوف دَنسبت درب الجوف يعني دَاهل جوف محله وئيلې شوه. [٣] دَدې تطبيق تائيد يوخودَابن حبان رحمه الله دَ قول نه كيږى هغه وائى: «**أصله من الجوف ناحية بعمان، وكان ينزل البصرة في الأزد [في] موضع يقال: درب الجوف**» [٤] يعني جابر بن زيد په اصل كښې دَعمان دَ يوې علاقې جوف وو اوهغه په بصره كښې دَ ازد په مقام يوځائى ته راغلو اوسيدو كوم ته چه درب الجوف وئيلې شى.

دويم تائيد دَ ابن سعد رحمه الله دَ قول نه كيږى كوم چه هغه دَاياس رحمه الله نه نقل كړې دې هغه وائى: «**أدركت البصرة ومفتيهم، رجل من أهل عمان جابر بن زيد**» [٥] يعني ما بصره اودَ دې مفتى اوليدلو (يعنى هغه سره ملاؤ شوم) هغه دَا هل عمان نه يوسړې جابربن زيد رحمه الله وو.

**اساتذه او شيوخ:** جابربن زيد رحمه الله چه دكوموحضراتو نه كسب فيض اوكړو په هغوى كښې عبدالله بن عباس، عبدالله بن عمر، عبدالله بن زبير، حكم بن عمروغفارى، عكرمه مولى ابن عباس اومعاويه بن ابى سفيان رضي الله عنهم شامل دى.[٦]

**تلامذه:** دَدوى نه استفاده او دَ حديث روايت كونكوكښې اميه بن زيد ازدى، ايوب سختيانى، حيان الاعرج، داؤد بن ابى قصاف، سليمان بن سائب، صالح الدهان، ابوحفص عبدالله بن رستم، ابوالمنيب عبدالله بن عبدالله عتكى، عزره بن عبدالرحمن كوفى، عمرو بن دينار، عمرو بن هرم ازدى، غطريف ابوهارون عمانى، قتاده بن دعامه، محمد بن عبدالعزيزجرمى، مزيد بن هلال، يا هلال بن مزيد، مهلب بن ابى حبيبه، وليدبن يحيى، يعلى بن حكيم، يعلى بن مسلم او ابوعنبس اكبر رحمهم الله شامل دى. تهذيب الكمال: ٤٣٥/٤، سير أعلام النبلاء: ٤٨٢/٤ تهذيب التهذيب: ٣٨/٢ تذكرة الحفاظ: ٧٢/١، الكاشف: ٢٨٧/٢.

**جلالت شان اوعلمى مقام:** جابربن زيد رحمه الله يولوئى جليل القدر تابعى دې. حضرت حسن بصرى رحمه الله او ابن سيرين رحمه الله سره دَهغوى شمير كيږى. اودَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما كبار تلامذه نه دې. [٧] دَ قرآن پاك په علوموكښې ماهر وو. حضرت عطاء رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړى دى هغه فرمائى «**لوأن أهل البصرة نزلوا عند قول جابر بن زيد لأوسعهم علماً من كتاب الله، وربما قال: عما في كتاب الله**» [١] كه چرې

---

[١]) الأنساب: ١٢٣/٢.

[٢]) تهذيب الكمال: ٤٣٥/٤.

[٣]) تعليقات التاريخ الكبير: ٢٠٤/٢.

[٤]) الثقات لابن حبان: ١٠١/٤.

[٥]) الطبقات لابن سعد: ١٧٩/٧.

[٦]) تهذيب الكمال: ٤٣٥/٤، سرأعلام النبلاء: ٤٨٢/٤ تهذيب التهذيب: ٣٨/٢ تذكرة الحفاظ: ٧٢/١، الجرح والتعديل: ٤٢٧/١ الكاشف: ٢٨٧/١.

[٧]) سير أعلام النبلاء: ٤٨٢/٤-٤٨١ الكاشف: ٢٨٧/١.

اهل بصره دَ حضرت جابر بن زيد رحمه الله قول اختيارکړى نوهغه به دَهغوى دپاره دکتاب الله دَعلم نه ښه ورکونکې اوښه غنى کونکې وې اوکله به ئى فرمائيل چه کتاب الله کښې کوم علوم دى دَهغې نه به ښه فائده اوچتونکې وې.
ابن عباس رضي الله عنهما به حضرت جابربن زيد رحمه الله په علماؤ کښې شميرلو. عکرمه رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړى دى چه هغوى به دَجابربن زيد رحمه الله باره کښې فرمائيل «هوأحد العلماء» [٢] زياد بن جبير رحمه الله وائى چه ما دَجابربن عبدالله انصارى رضي الله عنه نه دَ يوې مسئلې تپوس اوکړو هغه دَ هغې جواب راکړو. بيائى اوفرمائيل ته زمونږ نه ولې تپوس کوې په تاسوکښې خو ابوالشعثاء «جابربن زيد» موجوددې. [٣] دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه يوقول هم داسې دَ جابر بن زيد رحمه الله باره کښې نقل دې. [٤]
حضرت ضحاک رحمه الله وائى چه ابن عمر رضي الله عنهما جابربن زيد رحمه الله ته ئى اووئيل اې جابر ته دَ اهل بصره دَ فقهاؤ نه ئې، خلق به تاسو نه دَمسائلو تپوس کوى ته هيڅ کله فتوى مه ورکوه سواء دَ قرآن اوسنت نه، که چرې ته دَ قرآن اوسنت نه اخوا جواب ورکړې نو پخپله به هم هلاک شې او خلق به هم په هلاکت کښې واچوې. [٥]

علامه ابن کثير رحمه الله البداية والنهاية کښې اوامام بخارى رحمه الله په التاريخ الکبير کښې دَ ابن عمر رضي الله عنهما په ځائې دَدې قول نسبت دَ جابربن عبدالله رضي الله عنه طرف ته کړې دې. [٦] عمرو بن دينار رحمه الله وائى چه ما دَجابربن زيد رحمه الله نه زيات دَ فتوې علم لرونکې نه دې ليدلې. [٧] حماد بن زيد رحمه الله وائى چه دَ ايوب نه تپوس اوکړې شو تاجابر بن زيد رحمه الله ليدلې دې؟ هغه اوفرمائيل او هغه عقلمند او هوښيار وو. [٨]
**دائمه توثيقى احوال:** امام عجلى رحمه الله فرمائى «تابعي،ثقة». [٩]
ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دَدوى تذکره فرمائيلې ده اوليکلى دى «كان فقيهاً» [١٠] يحيى بن معين رحمه الله فرمائى «بصري،ثقة» [١١] ابوزرعه رحمه الله فرمائى «بصري،أزدي،ثقة» [١٢] ابن حجر رحمه الله فرمائى

---

[١]) الجرح والتعديل:١/٤٢٧ كتاب الثقات: ٤/١٠٢، الكاشف:١/٢٨٧،الطبقات الكبرى:٧/١٧٩، حلية الأولياء: ٣/٨٥
[٢]) تهذيب الكمال: ٤/٤٣٦.
[٣]) حلية الاولياء:٣/٨٦البداية والنهاية:٩/١٠٢.
[٤]) الجرح والتعديل:١/٤٢٧تذكرة الحفاظ: ١/٧٢سيرأعلام النبلاء: ٤/٤٨٢، تهذيب التهذيب:٢/٣٨ تهذيب الكمال:٤/٤٣٦.
[٥]) حلية الاولياء: ٣/٨٦التاريخ الكبير:٢/٢٠٤ تذكرة الحفاظ: ١/٧٢إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٢.
[٦]) البداية والنهاية: ٩/١٠٣التاريخ الكبير:٢/٢٠٤.
[٧])حلية الاولياء: ٣/٨٦ البداية والنهاية: ٩/١٠٣ التاريخ الكبير:٢/٢٠٤ تذكرة الحفاظ: ١/٧٢إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٣.
[٨]) الطبقات الكبرى: ٧/١٨٠تذكرة الحفاظ:١/٧٢سيرأعلام النبلاء:٤/٤٨٢.
[٩]) تهذيب التهذيب:٢/٣٨إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٢.
[١٠]) كتاب الثقات:٤/١٠٢ تهذيب التهذيب:٢/٣٨.
[١١]) تهذيب الكمال:٤/٤٣٦الجرح والتعديل:١/٤٢٧تهذيب التهذيب:٢/٣٨.
[١٢]) الجرح والتعديل:١/٤٢٨ تهذيب الكمال:٤/٤٣٦تهذيب التهذيب:٢/٣٨.

«ثقة، فقيه» (١) طبري ﷫ طبقات الفقهاء كښې فرمائي: «كان عالماً فقيهاً» (٢) ابن عبد البر ﷫ فرمائي: «كان أحد الفقهاء العلماء الفضلاء، أثنى عليه ابن عباس بالعلم، وحسبك بذلك» (٣) يعنې جابر بن زيد دَ فقهاؤ علماؤ اوفضلاؤ نه دې. ابن عباس ﷠ دَهغوی دَعلم تعريف کړې دې هم دغه ستاسود پاره کافي دی. ابن کثير ﷫ فرمائي چه ابوالشعثاء (جابربن زيد) دَاهل علم نه وو او په بصره کښې به ئې فتوی ورکوله. (٤) منتجالي ﷫ فرمائي «كان يفتي الناس وكان ثقة» (٥)

**دَاباضيه طرف ته نسبت:** اباضيه، جابربن زيد ﷫ به دَ اباضی کيدو دعوی کوله، هم په دې وجه دَ بعض ائمه نه هم دَهغوی باره کښې دَ اباضی کيدو قول مروی دې. چنانچه ساجی دَ احمدبن محمد نه هغوی دَ يحيی بن معين ﷫ نه نقل کړی دی چه جابر (بن زيد) اباضی وو. (٦)

**دَدې نسبت حقيقت:** حقيقت دادې چه جابربن زيد ﷫ اباضی نه وو. دَ اباضيه دا دعوی غلطه ده هغه دَدې طرف ته دَ دروغو نسبت کوی هغه دَدې نه بری وو. هشام دَمحمد نه نقل کړی دی چه اباضيه چه څه وائی دَهغې نه جابر بری وو. عارم وائی چه اباضيه دَهغه دَ خپل طرف ته غلط او دروغ نسبت کولو. (٧) سفيان ﷫ عمرو بن دينار ﷫ ته اووئيل آيا تا چرته ابوشعثاء نه دَ اباضيه يا دَهغوی دَعقائدو باره کښې څه اوريدلی؟ هغه اووئيل مادَهغوی نه دې باره کښې هيڅ هم نه دی اوريدلی. (٨)

**دَهندبنت مهلب ګواهی:** دَ هندبنت مهلب په وړاندې دَ جابر بن زيد ﷫ تذکره اوشوه اوخلقو اووئيل چه هغوی اباضی وو. هند بنت مهلب اوفرمائيل جابربن زيد ﷫ به دَ خلقو نه زيات ماسره او زما مورسره وخت تيرولو هغه به ماته الله تعالی ته دَ نيزدې کيدو اعمالو حکم راکولو اودَ الله تعالی نه لرې کونکی څيزونو نه به ئې منع کولم. هغه زه کله هم دَ اباضيه طرف ته نه يم راغوښتې اونه ئې ماته ددې حکم راکړې دې. سره ددې چه هغه به ماته داهم خودل چه زه لوپټه څنګه په سرکړم اوهغې (هندبن مهلب) خپل لاس په تندی باندې کيخودو (دې دَپاره چه اوښائی چه جابربن زيد به هغې ته لوپټه اچولودَپاره څنګه ويناکوله). (٩)

**دَحضرت جابر دَ اباضيه نه براءت:** هم دغه خبره پخپله هم دَ جابر بن زيد ﷫ نه نقل ده. قتاده ﷫ او داود بن ابی قصاف دَ غزره نه نقل کړی دی هغه وائی چه ما جابربن زيد ﷫ ته اووئيل چه اباضيه

---

(١) تقريب التهذيب:١/١٥٢.

(٢) إكمال التهذيب كمال:٣/١٢٤.

(٣) إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٢.

(٤) البداية والنهاية:٩/١٠٢.

(٥) إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٤.

(٦) الكامل لابن عدى:٤/٧١ تهذيب التقريب:٢/٣٨ إكمال تهذيب الكمال٣/١٢٢.

(٧) الطبقات الكبرى: ٧/١٨١.

(٨) التاريخ الكبير:٢/٢٠٤ إكمال تهذيب الكمال:٣/١٢٢.

(٩) حلية الاولياء:٣/٨٩البداية والنهاية:٩/١٠٤-١٠٣.

داگمان کوی چه تاسو دَهغوی نه ئی؟ جابربن زید رحمه الله اوفرمائیل زه دَهغوی نه اودَهغوی دَ عقائدونه بری یم اودَالله تعالی پناه غوارم.(۱)

دَ ثابت بنانی رحمه الله په روایت کښې دی چه دَ جابربن زید رحمه الله نه دَ زنکدن په حالت کښې دَ اباضیه باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغوی دَ برات اظهاراوکړو.(۲)

**وفات:** ابن سعد رحمه الله او واقدی رحمه الله اوونیل چه جابربن زید رحمه الله ۱۰۳هجری کښې وفات شوې.(۳)هیثم بن عدی رحمه الله ۱۰۴هجری دَ وفات کال گرځولې دې.(۴)

امام احمد، فلاس، امام بخاری، عمرو بن علی، ابن حبان، ابونعیم، حافظ ابن حجر اوعلامه ذهبی رحمهم الله ۹۳هجری دَهغه دَ وفات کال گرځولې دې.(۵)

علامه ذهبی رحمه الله دَ ۱۰۳ هجری قول شاذ گرځولې دې هغه فرمائی «شذ من قال:إنه توفي سنة ثلاث ومئة»(۶) قتاده رحمه الله دَ هغوی دَ وفات په ورځ اوفرمائیل نن دَ اهل بصره علم یادَعراق عالم ختم کړې شو.(۷) یائی داسې اوفرمائیل نن دَدنیا والوعلم ختم شو.(۸)

**ابن عباس** رضی الله عنهما:دا مشهورصحابی، دحضورپاک دَتره خوئی حضرت عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشمْ بن عبدمناف رضی الله عنهما دې. دَدوی حالات «کتاب بدء الوحی، باب کیف کان بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم» په ځلورم حدیث کښې (۹)او« کتاب الإیمان باب کفران العشیر، وکفربعدکفر» دَ ړومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.(۱۰)

## شرح حدیث

**قوله:** :أن النبي صلى الله عليه وسلم وميمونة كانا يغتسلان من إناء واحد: «دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه» نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوحضرت میمونه رضی الله عنها دواړو «په یوځائی» په یولوښی سره غسل کولو.

**دَ زوجین په خپل مینځ کښې دَتعلق اهمیت:** دَ زوجین په یولوښی سره غسل کولو او دَ یوبل نه پاتې شوو اوبو سره طهارت حاصلولو سره متعلق مباحث تیرشوی دی. البته دَ زوجین په خپل مینځ کښې دَ تعلق باره کښې دلته یو بل اړخ ته توجه راګرځول مقصود دی. دَ کوم طرف ته چه په عام توګه شراح

---

(۱) الطبقات الکبیر:۱۸۱/۷تهذیب الکمال:۴۳۶/٤تهذیب التهذیب:۳۸/۲.

(۲) الطبقات الکبیر:۱۸۲/۷.

(۳) الطبقات الکبیر:۱۸۲/۷تهذیب الکمال:۴۳۶/٤تهذیب التهذیب:۳۸/۲تذکرة الحفاظ:۷۳/۳.

(۴) تهذیب الکمال:۴۳۶/٤تهذیب التهذیب:۳۸/۲.

(۵)التاریخ الکبیر:۲۰٤/۲کتاب الثقات:۱۰۲/٤تهذیب الکمال: ۴۳۶/٤تذکرة الحفاظ:۷۳/۱-۷۲تهذیب التهذیب: ۳۸/۲ إکمال تهذیب الکمال:۱۲۲/۳تقریب التهذیب: ۱۵۲/۱ الکاشف:۲۸۷/۱.

(۶) سیر أعلام النبلاء ٤۸۳/٤.

(۷) تهذیب الکمال:۴۳۶/٤ إکمال تهذیب الکمال:۱۲۳/۳تهذیب التهذیب: ۳۸/۲.

(۸) حلیة الأولیاء: ۸۶/۳تذکرة الحفاظ:۷۲/۱.

(۹) کشف الباری:۴۳۷/۱-۴۳۵.

(۱۰) کشف الباری:۲۰۶/۲-۲۰۵.

حدیث توجونه ده راګرځولي. دَدې وجه داده چه حدیث باب اودا شان روایت محدثین حضرات په کتاب الطهارة کښې په عام توګه ذکر کوی او دَدې نه دَ طهارت دَ مسائلو بیانول مقصود وی. دا اهم په خپل ځائې باندې دَ ډیراهمیت حامل دی. لیکن دَدې قسم روایاتونه دا هم پته لګی چه په شریعت کښې دَ زوجین په خپل مینځ کښې دَتعلق ډیرزیات اهمیت دې. دَدې تعلق دَ بقاء او په دې کښې دَ زیاتوالی دَپاره الله تعالی اودغه رسول ﷺ دَداسې اعمالو حکم فرمائیلې دې چه په ظاهر معمولې ښکاری لیکن په زوجین کښې دَخپل مینځ تعلق او الفت کښې اضافه او کلکوالی سبب جوړیږی. لکه دَ زوجین په یوځائې یولوښی سره غسل کول، نه صرف دَ مودت او الفت اظهاردې بلکه په دې کښې دَ زیاتوالی هم سبب دې.

**دَعلامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله وضاحت:** حضرت مولانا علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فتح الملهم کښې په دې اړخ باندې رڼړا اچولې فرمائی: دَ ښځې اوخاوند په مینځ کښې ټول تعلقات نه دَټولونه لوئی او اهم تعلق کورنې تعلق دې. هم دغه دَ ټولونه زیات فائده مند تعلق دې اودَدې ضرورت هم زیات پیښیږی. په دې وجه دَ اسلامی شریعت زیات کوشش داوی چه ترکومې پورې ممکن وی دا په ځائې اوساتلې شی. اودَدې مقاصد پوره کړې شی.

او دا تعلق بې کیف او مکدر یعنی خړ کول او مکمل ختمول شریعت ناخوښه کړی دی اودَهیڅ قسم تعلق ثمرات بغیردَ الفت اومحبت نه حاصلیدې نه شی. دَمحبت دَحاصلولودَپاره زوجین به په ځه خصال حمیده باندې کلك اودریدل وی لکه دَ یوبل سره دَهمدردئی اظهار دَ یوبل دَ ناخوښه خبرو معافی کول اودَهغه کارونونه ډډه کول دَ کومو په وجه چه په زړه کښې دَ یوبل دَپاره کینه اوبغض پیداکیږی. (او په څو کارونوباندې به کلك اودریدل وی خاص کړ) یوبل سره خنداخوشحالی کول په روڼ تندی سره ملاویدل وغیره.

دَحکمت تقاضا داوه چه دَدې امورو نه یوازې دا چه ترغیب ورکړې شی بلکه دَقول اوفعل په ذریعه زوجین دې ته تیار کړې شی. هم دَدې نکتې په رڼړا کښې حضورپاك هغه صحابی ته کوم چه ثیبه ښځې سره واده کړې وو اوفرمائیل څه ښه به وه چه تا یوې پیغلې سره واده کړې وو تادَهغې نه خوند اخستو اوتانه هغې خوند اخستو.(۱)

حضرت عائشه رضی الله عنها چه به په کوم لوښی کښې اوبه څکلې هم هغه لوښې به ئې دَحضورپاك په خدمت کښې پیش کولو. حضورپاك به دَ لوښی هم هغه حصې سره خله مبارکه لګولوسره اوبه څکلې دَ کوم ځائې نه چه به حضرت عائشه رضی الله عنها څکلې.(۲) دغه شان به حضورپاك دَحضرت عائشه صدیقه خوړلې

---

(۱) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه، کتاب الصلاة باب الصلاة إذا قدم من سفر. مختصراً. رقم الحدیث:٤٤٣ وفی کتاب البیوع، باب شراء الدواب والحمیر رقم :۲۰۹۷ ومسلم فی صحیحه کتاب الرضاع، باب استحباب نکاح ذات الدین، رقم:۳۶۳۶، وأیضاً فی باب استحباب نکاح البکر رقم:۳۶۴۲-۳۶۳۷، والترمذی فی سننه، کتاب النکاح باب ماجاء فی تزویج الأبکار رقم:۱۱۰۰، وأبوداوذ فی سننه فی کتاب النکاح باب فی تزویج الأبکار رقم:۲۰٤۸ وبن ماجه فی سننه، أبواب النکاح باب تزویج الأبکار رقم:۱۸۶۰ والنسائی فی سننه، کتاب النکاح باب نکاح الابکار رقم:۳۲۲۲-۳۲۲۱ انظر جامع الأصول رقم: ۳٤۰ وتحفة الأشراف: رقم: ۳٤۳۶، ۲۵۳۵.

(۲) الحدیث أخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض، باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله وطهارة سؤرها رقم:۶۹۲ وأوداؤد فی سننه فی کتاب الطهارة باب مؤکلة الحائض ومجامعتها، رقم: ۲۵۹، والنسائی فی سننه

شوي هم وكې چپول (١) اوحضورپاك اوحضرت عائشه صديقه به دواړو په يوخائی هم په يولوښي سره غسل كولو كله به حضورپاك اول د اوبو لوښي اخستلو او كله به حضرت عائشه رضي الله عنها اوبه اخستلو كښې وراندیوالي كولو تردې چه حضورپاك به ورته فرمائيل چه اول ما اوبو اخستو ته پرېږده او حضرت عائشه رضي الله عنها به ونيل چه اول ماپرېږده. (٢)

هم دغه اموردی چه په ښځه اوخاوند كښې محبت پيداكوی اود ناخوښئی نفرت او ورو كولونه ئی لرې سائی. (٣)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې باب ددريم حديث ترجمة الباب سره مناسبت كيدلو اونه كيدلوكښې د شارحين حديث په مينځ كښې اختلاف دی.

**دعلامه كرمانی رحمه الله رائې:** علامه كرمانی رحمه الله د حديث ترجمة الباب سره مناسبت ثابتولودپاره درې توجيهات بيان كړی دی:

**رومبۍ توجيه:** رومبۍ توجيه ئی دابيان كړې ده چه په حديث كښې «إناء» نه مراد فرق مذكوردې د كوم تذكره چه كتاب الغسل كښې راغلې ده. چونكه دهغوی په نيزدا معروف وو په دې وجه ئی د بيانولو ضرورت اونه گنړلو. (٤)

**دويمه توجيه:** دويمه توجيه ئی دا بيان كړې ده چه د دغه اناء نه يوخاص قسم لوښي مراد دې په كوم كښې چه دوه ياد دې نه زيات صاع اوبه راتلې. په عرف اوعادت باندې يقين كولوسره راوی ددې تذكره اونه كړه. (٥)

**دريمه توجيه:** دريمه توجيه دحديث ترجمة الباب سره د مناسبت په حواله دا بيان كړې چه دا د اختصارحديث د قبيل نه دی اودويم روايت كوم چه دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه نقل دې په هغې كښې تفصيل دې په كوم سره چه مذكوره ترجمه په آسانه ثابتيږی. (٦)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ صاحب رحمه الله ليكلی دی چه بعض شارحينودا دعوی كړې ده چه د حديث ميمونه رضي الله عنها ترجمه سره مناسبت نشته دې خكه چه په هغې كښې د لوښي مقدار نه دې خودلې شوې. اوپه ترجمه كښې صاع اود دې په اندازه د لوښي ذكر دې. ددې جواب دادې چه د دغه خلقو لوښي واړه وو،

لكه څنګه امام شافعی رحمه الله په ډيرو ځايونوكښې ددې تصريح كړې ده. لهذا داحديث ترجمه كښې ذكرشوې ونحوه مطابق به شی. يادددې دويم جواب دادې چه حديث ميمونه رضي الله عنها كښې اناء مطلق

---

فی كتاب الطهارة باب سؤر الحائض رقم: ٣٤٢ وابن ماجه فی سننه فی باب ماجاء فی مؤاكلة الحائض وسؤرها، رقم: ٦٤٣ انظر كذلك جامع الأصول رقم: ٥٤٠٣ وتحفة الأشراف: رقم: ١٦١٤٥.

(١) انظر الحاشية السابقة.

(٢) الحديث أخرجه مسلم فی صحيحه كتاب الحيض باب القدر المستحب من الماء فی غسل الجنابة رقم: ٧٣٢ والنسائی فی سننه كتاب الطهارة باب الرخصة فی ذلك رقم: ٢٤٠ انظر جامع الأصول رقم: ٥٠٤٠.

(٣) فتح الملهم: ٨٢/٣

(٤) شرح الكرمانی: ١١٧/٣ إرشاد السارى: ٤٩٢/١.

(٥) شرح الكرمانی: ١١٧/٣ إرشاد السارى: ٤٩٢/١.

(٦) شرح الكرمانی: ١١٧/٣.

حديث عائشه رضي الله عنها کښې ذکرشوې فرق مقيد باندې محمول کړې شي. ځکه چه دواړه هم د حضوراکرم ﷺ بيبيانې وې اوهرې يوې حضورپاك سره غسل کړې دې. لهذا دهرې يوې په حصه کښې به د يوصاع نه زياتې اوبه راغلې وي. په دې وجه چه د کوم لوښي ذکر په حديث ميمونه رضي الله عنها کښې راغلې دې په تقريبي توګه سره به په ترجمة الباب کښې داخل شي.(۱)

**دعلامه عيني رحمه الله رائې او په سابقه توجيهاتو باندې رد:** علامه عيني رحمه الله ليکلي دي چه د حديث ميمونه رضي الله عنها ترجمة الباب سره مناسبت غيرظاهر دې. بيانې دعلامه کرماني رحمه الله ذکرکړې شوې درېواړه توجيهات غيرموزون کولوسره وئيلي دي چه علامه کرماني رحمه الله د ترجمه ثابتولودپاره دتکلف نه کاراخستې دې. (هم دغه رائې دعلامه قسطلاني هم ده.)(۲)

بياد حافظ ابن حجر رحمه الله دواړه توجيهات ذکرکولوسره ليکي چه دا د علامه کرماني رحمه الله د توجيهاتونه هم په اخوا دي. ځکه چه دحضرت ميمونه رضي الله عنها د روايت غرض خو صرف د سړي او ښځې په يولوښي سره دغسل جواز بيانول دي نه چه د لوښي مقدار بيانول او په ترجمة الباب کښې مقدار ذکردې. نوبيا په حديث اوترجمة کښې څنګه مطابقت کيدې شي.

بيا دحافظ صاحب دا وينا کول چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضرت ميمونه رضي الله عنها دواړه د حضورپاك بيبيانې وې. دې نه دا معلوميږي چه د هغه اصول فن سره هډو مناسبت نشته. اودې دواړو دحضورپاك بيبيانې کيدل مطلق په مقيدباندې محمول کولوسبب څنګه کيدې شي؟ حالانکه اصل اوقاعده داده چه مطلق په خپل اطلاق باندې او مقيدپه خپل تقييد باندې جاري کيږي اومطلق په مقيدباندې محمول کولو صورتونه مخصوص دي کوم چه په خپل ځائې کښې ذکر دي.(۳)

**د شيخ الاسلام زکرياانصاري رحمه الله رائې:** شيخ الاسلام علامه زکريا انصاري رحمه الله ليکلي دي چه په دې حديث کښې د لوښي نه هغه لوښې مراددې په کوم کښې چه يوصاع اوبه راځي نوحديث به دترجمه موافق شي.(۴)

**دحضرت شاه ولي الله رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولي الله رحمه الله رساله شرح تراجم ابواب صحيح البخاري کښې ليکلي دي: «ثالث أحاديث الباب لم يذكر فيه قدر الصاع، ووجه الاستدلال به ثبوت ذكره فيه بطريق آخر»(۵) يعنې د دې باب په دريم حديث کښې د صاع دقدر تذکره نشته دې د دې نه د استدلال وجه داده چه په دويم طريق سره د دې تذکره ثابته ده. حضرت شاه ولي الله رحمه الله په دې توجيه کښې د کوم دويم طريق طرف ته اشاره فرمائيلې ده دهغې باره کښې حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دي چه امام بيهقي رحمه الله د عبدالوارث بهز بن حکيم په طريق سره موصولاً روايت کړې دې.(۶)

د ډير لټون نه باوجود د عبدالوارث روايت معلوم نه شوالبته امام بيهقي رحمه الله دحضرت ام هاني رضي الله عنها نه يوروايت نقل کړې دې: «اغتسل رسول الله صلى الله عليه وسلم وميمونة من إناء واحد قصعة فيها أثر العجين»

---

(۱) عمدة القاري:۳/۲۹۶.

(۲) فتح الباري لابن رجب الحنبلي:۱/۱۴۸.

(۳) فتح الباري:۲/۴۸۳.

(۴) تحفة الباري:۱/۲۲۱.

(۵) رسالة شرح تراجم أبواب صحيح البخاري:ص: ۱۸.

(۶) هدى الساري:۱/۲۵.

(۱). يعنى حضورپاك او حضرت ميمونه رضي الله عنها په يولوښي يعنى قصعه (كاسه) سره په كوم كښې چه د اغږلى شوې اوړو اثرات وو هغې سره غسل اوكړو.

**د ابن ملقن رحمه الله رائې:** ابن ملقن رحمه الله د امام بخارى رحمه الله دا حديث ((باب الغسل بالصاع ونحوه)) كښې د ذكركولووجه دا ليكلى ده چه حضورپاك اوعائشه رضي الله عنها به په فرق نومې لوښي سره غسل كولو اوداخبره اول تيره شوې ده چه فرق د دريو صاع وى اودډې نيم د يونيم صاع برابر وي اوهغه د اتو رطل او يورطل د يوصاع نه لږ شان زيات وى نولكه چه په يوخائى به ئى غسل كولو نودهريوپه حصه كښې يوصاع يا دډې نه څه زياتې اوبه راتلې اوهم دغه دترجمة الباب مقصد دې.(۲)

**قال أبوعبدالله: كان ابن عيينة يقول أخيراً: عن ابن عباس عن ميمونة، والصحيح ماروا ه أبونعيم:** يعنى امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل، سفيان بن عيينه رحمه الله په خپل آخرى عمركښې داسې فرمائيل (دا روايت مروى دې) دابن عباس رضي الله عنهما نه، هغه دميمونه رضي الله عنها نه (نقل كړې دې) اوصحيح هم هغه روايت دې كوم چه ابونعيم رحمه الله نقل كړې دې.

**دتعليق غرض:** دادامام بخارى رحمه الله د طرف نه په دريم حديث الباب باندې تعليق دې. دامام بخارى رحمه الله غرض دډې تعليق نه دډې باب دريم حديث (كوم چه دابونعيم نه روايت دې) د ابن عيينه رحمه الله دنورو شاګردانو په روايت باندې ترجيح وركول اوهغه په مسندات ابن عباس رضي الله عنهما كښې ګرځول دى.

**د علامه كرمانى رحمه الله او علامه عينى رحمه الله رائې:** علامه كرمانى رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله ليكلى دى چه امام بخارى په دې تعليق كښې ((قال ابن عيينه)) نه دى وئيلى بلكه ((كان ابن عيينه)) الفاظ ئې استعمال كړى دى دې د پاره چه په دې خبره باندې دلالت اوشى چه ابن عيينه رحمه الله په اخرى عمركښې استمرار سره د((ابن عباس عن ميمونة)) په طريق باندې روايت كولو. په دې تقديرباندې به دا روايت مسانيد حضرت ميمونه رضي الله عنها نه شى او د مخكښې روايت بنياد باندې دا مسانيد ابن عباس رضي الله عنهما نه به وى. امام بخارى رحمه الله د دواړو روايتونونه د ابونعيم روايت صحيح ګرځولې دې اوباقى حضراتو دا د مسانيد ميمونه رضي الله عنها نه ګرځولوته مرجوح وئيلې دى. (۳)

**دامام بخارى رحمه الله د ابونعيم رحمه الله روايت ته د ترجيح وركولو وجه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه اكثرروات مذكوره روايت دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دحضرت ميمونه رضي الله عنها زياتى سره نقل كړې دې كوم چه امام بخارى رحمه الله د ابن عيينه رحمه الله د آخرى عمر روايت ګرځولوسره مرجوح وئيلې دې. امام بخارى رحمه الله د محدثينو حضراتو دډې قاعدې مطابق د ابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح وركړې ده چه من جمله مرجحات كښې يوقدم سماع هم دې. په دې وجه په شروع عمركښې دشيخ حافظه قوى وى نو ابن نعيم رحمه الله هم د ابن عيينه رحمه الله د پخوانو شاګردانونه دې اودهغه نه ئى هغه وخت روايت اوريدلې دې كوم وخت چه دهغه حافظه قوى وه.(۴)

---

(۱) السنن الكبرى كتاب الطهارة باب التطهر بالماء الذى خالطة طاهر لم يغلب عليه:۷/۱

(۲) التوضيح:۵۵۸/۴.

(۳) شرح الكرمانى:۱۱۷/۳عمدة القارى:۲۹۳/۳.

(۴) فتح البارى:۴۸۳/۲.

علامه ابن ملقن، علامه انصارى، علامه كورانى، علامه قسطلانى، علامه عينى، او شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمهم الله ليكلى دى چه دامام بخارى رحمه الله په شان دارقطنى رحمه الله هم د ابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح وركړې ده اودا ئى په مسانيد ابن عباس رضى الله عنهما كښې شمير كړې دې.[1] «**ولهس الأمركما قالوا، سيأتى إن شاء الله**». دغه شان علامه عينى رحمه الله د محدث اسماعيلى په حواله سره ليكلى دى چه هغه هم روايت د مسانيد ابن عباس رضى الله عنهما نه كيدوته ترجيح وركړې ده. [2] حالانكه معامله ددې برعكس ده لكه چه وړاندې به راشى.

**لامع الدرارى كښې نقل يوه توجيه**: لامع الدرارى كښې ابونعيم رحمه الله د روايت د تصحيح په سلسله كښې حضرت گنگوهى رحمه الله طرف ته منسوب كولوسره دا توجيه ليكلې شوې ده چه اكثر روايات (كورنومعاملاتو او طهارت سره متعلق) دحضرت ميمونه رضى الله عنها نه نقل دى. په دې وجه بعض حضرات د ابن عباس رضى الله عنهما نه پس دحضرت ميمونه رضى الله عنها واسطه زياتوى دا اضافه ځكه صحيح نه ده چه دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما روايت په حضرت ميمونه رضى الله عنها باندې منحصر نه دې. لهذا دې خيال كولوسره دهغې واسطه زياتول صحيح نه ده. ددې دپاره دا ضرورى نه ده چه ذكرشوې روايت هم دميمونه رضى الله عنها نه مروى وى حالانكه ابن عباس رضى الله عنهما د نورو ازواج مطهرات نه او نورو ډيرو صحابه كرامو رضى الله عنهم نه هم روايت كوى ممكن ده چه دا روايت هم دهغوى نه علاوه د بل چانه وى.[3]

**په دې توجيه باندې يونظر**: دحضرت گنگوهى رحمه الله طرف ته دا توجيه منسوب كول قابل تامل ده كيدې شى دنقل اوتعبير څه فرق شوې وى. ځكه چه د امام بخارى رحمه الله مقصد صرف دابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح وركول دى د نورو حضراتو د روايت تغليط مقصودنه دې. دې نه علاوه په دې باره كښې محدثينو حضراتو زيربحث حديث د مسانيد ميمونه رضى الله عنها په حيثيت سره نقل كړې دې ددې ټولو طرف ته بلادليل اضافه كولو دپاره صرف نسبت صحيح نه دى. **والله اعلم بالصواب**.

**ترجيح امام بخارى رحمه الله اود نورو محدثينو رائې**: دامام بخارى رحمه الله نه علاوه نورو محدثينو اوشراح حديث زيربحث حديث د مسانيد ميمونه رضى الله عنها نه گرځولې دې اوهغه شارحين ددې يوڅو وجوهات هم بيانوى.

**د ترجيح رومبې وجه**: د مذكوره روايت مسانيد دحضرت ميمونه رضى الله عنها نه دكيدو د ترجيح رومبې وجه داده چه سفيان بن عيينه رحمه الله نه په آخرى عمركښې دحضرت ميمونه رضى الله عنها په واسطه سره روايت نقل كونكى په شمير كښې ډيرزيات دى اوهغوى ته د ابن عيينه رحمه الله طول صحبت هم حاصل دې.[4]

---

[1]) التوضيح:٥٥٨/٤ الكوثر الجارى:٤١١/١ إرشاد السارى:٤٩٢/١ عمدة القارى:٢٩٧/٣ تحفة البارى:٢٢١/١.

[2]) عمدة القارى:٢٩٧/٣.

[3]) لامع الدرارى:٢٠٨/١-٢٠٧ الكنز المتوارى:١٩٤/٣-١٩٣.

[4]) فتح البارى:٤٨٣/٢. قال الحافظ أبوبكر محمد بن موسى الحازمى الهمدانى: "الوجه الأول (أى من وجوه الترجيح) كثرة العدد فى أحد الجانبين، وهى مؤثرة فى باب الرواية، لأنها تقرب مما يوجب العلم وهو التواتر"... الوجه الحادى عشر: (أى من وجوه الترجيح): أن يكون أحدالراويين أكثر ملازمة لشيخه. فإن المحدث قد ينشط تارةً فيسوق الحديث على وجهه، وقد يتكاسل فى الأوقات فيقتصر على البعض، أو يرويه مرسلاً إلى غيرذلك من الأسباب". (الأعتبار فى الناسخ والمنسوخ فى الحديث:١٣١، ١٣٧/١).

**دويمه وجه دترجيح**: حافظ ابن حجر، علامه عينى علامه قسطلانى اوعلامه كورانى رحمهم الله د محدث اسماعيلى رحمه الله نه يو بله دترجيح وجه هم نقل كړې ده. چنانچه دا حضرات فرمائي: ((ورجحها الإسماعيلى من جهة أخرى من حيث المعنى وهى كون ابن عباس لايطلع على النبى صلى الله عليه وسلم فى حالة اغتساله مع ميمونة، فيدل على أنه أخذه عنها))(١)

يعنى محدث اسماعيلى رحمه الله وغيره ددې حديث مسانيد دحضرت ميمونه رضي الله عنها نه دكيدو يو معنوى وجه دترجيح هم بيان كړې ده هغه دا چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما پخپله خود حضورپاك حضرت ميمونه رضي الله عنها سره د غسل كولو كيفيت باندې خبريدې نه شى لهذا هغه به هم دحضرت ميمونه رضي الله عنها نه اوريدو سره نقل كړې وى.

**دريمه وجه د ترجيح**: اكثرمحدثين د سفيان بن عيينه رحمه الله روايت دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دحضرت ميمونه رضي الله عنها په واسطه سره نقل كوى. چنانچه امام مسلم، امام نسائى، امام ابن ماجه، امام ترمذى رحمهم الله(٢)امام شافعى، امام احمدبن حنبل، امام طحاوى، ابن ابى شيبه، حميدى، ابوعوانه، طبرانى، بيهقى او بزار رحمهم الله وغيره دا هم د ميمونه رضي الله عنها نه نقل كړې دى.(٣) سفيان بن عيينه رحمه الله وائى چه اميرالمؤمنين فى الحديث امام شعبه رحمه الله ته ددې حديث موصول كيدل (يعنى دحضرت ميمونه رضي الله عنها نه روايت كيدل) خوښ وو.(٤)

**د ابن عيينه رحمه الله د اكثرشاګردانو روايت**: محدث اسماعيلى رحمه الله په خپل صحيح كښې دابن عيينه رحمه الله د هغه ټولو شاګردانو تذكره كړې ده چه د هغه نه مذكوره روايت دحضرت ميمونه اضافه سره نقل كوى. دهغوى په شاګردانو كښې مقدمى، ابوبكر بن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، عباس نرسى، اسحاق طالقانى، ابوخيثمه، سريج بن يونس، ابن منمنيع ، مخزومى، عبدالجبار، ابن بزاز،

---

(١) فتح البارى لابن رجب الحنبلى:١٣٣/١ فتح البارى للعسقلانى:٤٨٣/٢ إرشادالسارى:٤٩٢/١ الكوثرالجارى:٤١١/١.

(٢) الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض، باب القدر المستحب من الماء فى غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة فى إناء واحد فى حالة واحدة، غسل أحدهما بفضل الآخر، رقم:٣٢٢، وأخرجه الترمذى فى سننه فى أبواب الطهارة، باب ماجاء فى وضوء الرجل والمرأة من إناء واحد، رقم: ٦٢، وأخرجه النسائى فى سننه فى كتاب الطهارة، باب ذكر اغتسال الرجل والمرأة من نسائه من إناء واحد رقم:٢٣٧، وأخرجه ابن ماجه فى سننه كتاب الطهارة وسننها، باب الرجل والمرأة يغتسلان من إناء واحد رقم:٣٧٧، انظرجامع الأصول، النوع الثامن فى اجتماع الرجل والمرأة على الإناء الواحد رقم:٥٠٤١ وانظر كذلک تحفة الأشراف رقم:٥٣٨٠.

(٣) انظر مسندالشافعى (بترتيب السندى) الباب السابع فى أحكام الغسل:٣٩/١ رقم:١٠٨ ومسند الإمام أحمدبن حنبل:٣٨١/٤٤ رقم:٢٦٧٩٧ وشرح معانى الآثار للطحاوى، كتاب الطهارة باب س.ر بنى آدم:٢٥/١ رقم:٨٩ ومصنف ابن أبى شيبة، كتاب الطهارة باب فى الرجل والمرأة يغتسلان بماء واحد:٣٥٥/١ رقم:٣٧ ومسندالحميدى: ١٤٨/١ رقم:٣٠٩ والجمع بين الصحيحين للحميدى:٦٥/٢ رقم:١٠٦٣ ومسندأبى عوانة كتاب الطهارة باب الإجابة للرجل أن يغتسل بفضل ماء المرأة والاغتسال معها فى إناء واحد:٢٣٩/١ رقم:٨١٠-٨٠٩ والمعجم الكبير للطبرانى:٤٢٥/٢٣ وسنن الكبرى للبيهقى كتاب الطهارة باب فى فضل الجنب:١٨٨/١ ومسند البزار:١٣/٣: رقم:٥٢٦١، انظر كذلک هدى السارى:٢٥/١ تغليق التعليق:١٥٣/٢-١٥٢.

(٤) مسندالحميدى:١٤٨/١ رقم:٣٠٩.

ابوهمام، ابومسوى انصارى، ابن وكيع، احمسى او ابن مهدى رحمهم الله وغيره مذكوره روايت دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها نه نقل كړې دي.[1]

**دَامام دارقطني رحمه الله رائې:** امام دارقطنى رحمه الله په خپل علل كښې ليكلي دى چه ابن عيينه رحمه الله مذكوره روايت دَ عمرو نه نقل كړې دې اودائې دَمسانيد حضرت ميمونه رضي الله عنها نه ګرځولې دې اودَدې تذكره ئې نه ده كړې چه دَ ابن عيينه رحمه الله دَ شاګردانونه دَهغوى په نقل كښې اختلاف پيداشوې دې. (بس صرف دَحضرت ميمونه رضي الله عنها نه ئې روايت ذكر كړې دې)[2]

**دَ ابن رجب الحنبلي رائې:** ابن رجب حنبلى رحمه الله تيره شوې دَ ترجيح وجه ذكر كولونه پس دَامام بخارى رحمه الله دَ ابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح وركول وهم ګرځولې دې.[3]

**دَ دارقطني رحمه الله دَ ترجيح وضاحت:** داخبره اول راغلې ده چه دَ امام بخارى رحمه الله په شان دارقطنى رحمه الله هم دَ ابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح وركړې ده. اكثرشراح حديث دَهغوى طرف ته هم دغه منسوب كړې دى. دَ شراح داخبره قابل تامل ده ځكه چه امام دارقطنى رحمه الله دَ ابونعيم رحمه الله روايت ته ترجيح نه ده وركړې بلكه هغوى ليكلي دى ابن عيينه رحمه الله دَ عمرو نه دغه مذكوره روايت نقل كړې دې اوهغه دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها نه روايت كوى. هغه دَ ابن عيينه رحمه الله دَ شاګردانودَاختلاف ذكرنه دې كړې البته دائى وئيلى دې چه ابن جريج رحمه الله دَ ابن عيينه رحمه الله مخالفت كړې دې اودَ عمرو بن دينار نه ئې روايت كړې دې هغه دَجابربن زيد رحمه الله نه هغوى دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَحضرت ميمونه رضي الله عنها نه پاتې شوې اوبوسره غسل كولو.

دَ ابن جريج والا روايت امام مسلم رحمه الله په خپل سندسره نقل كړې دې ليكن په هغې كښې عمرو بن دينار رحمه الله دَ جابربن زيد رحمه الله طرف ته نسبت كولو كښې متردد دې. لهذا په دې وجه دې ته دَ ابن عيينه رحمه الله په روايت باندې ترجيح نه شي وركولې. كه چرې دَهغه حديث محفوظ اومنلې شي نوبيا هم دوارو (ابن عيينه رحمه الله او ابن جريج رحمه الله) دَ روايت په الفاظوكښې فرق دې. دَ ابن عيينه رحمه الله په روايت كښې دى چه حضورپاك او حضرت ميمونه رضي الله عنها به په يولوښى سره غسل كولو خودَ ابن جريج رحمه الله په روايت كښې دَ حضورپاك دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها نه پاتې شوو اوبوسره دَ غسل كولوتذكره ده لهذا دواړه جدا جدا احاديث دى.[4]

**دَ حديث نه مستنبط شوى احكام:** ① دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ سړى اوښځې په يولوښى سره غسل كول جائزدى.[5]

② حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلي دى چه دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ امام بخارى رحمه الله په نيز عن فلان او إن فلاناً نه روايت يوشان نه دې.[6]

---

[1] فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۷/۱.

[2] العلل للدارقطنى، حديث أم المؤمنين ميمونة عن النبى صلى الله عليه وسلم:۲۵۹/۱۵ رقم:۴۰۰۸، فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۷/۱.س

[3] فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۷/۱.

[4] العلل للدارقطنى، ۲۵۹/۱۵ رقم:۴۰۰۸، فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۷/۱.

[5] عمدة القارى:۲۹۷/۳.

# ۴- باب: مَنْ أَفَاضَ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثًا

## په سر باندې درې ځل اوبه بیهول

**ماقبل سره مناسبت:** دَدې باب سابقه باب سره مناسبت بالکل واضح اوښکاره دې چه په دې کښې دَغسل او دَ هغې دَ هیئت بیان وو اودلته هم دَغسل اودَهغې هیئت بیانولې شی.[۲]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** پخوانوشراح حدیث دَدې باب څه غرض نه دې بیان کړې البته زمونږ دَ اکابرینونه بعض حضراتو په دې باندې کلام فرمائیلې دې.

**دَ شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې:** دَ شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې داده چه امام بخاری رحمه الله دلته دَ یواهم اختلافی مسئلې طرف ته شاره فرمائیلې چه غسل کښې "دلك" فرض دې که نه؟ دَ مالکیه په نیزفرض دې او دَ جمهورو په نیز فرض نه دې. امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې لفظ "أفاض" لوستلوسره دَ جمهورو تائیدکړې دې. چنانچه شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی «لایبعد عند هذا العبد الضعیف: أن غرض الترجمة الإشارة إلى أن الدلك لیس بفرض، بل یکفی إسالة الماء خلافاً لمن أوجبه» [۳]

یعنی دَ بنده ضعیف په نیز غرض دَ ترجمې دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه په غسل کښې دلك فرض نه دې بلکه اوبه بهیول کافی دی په خلاف دَهغه خلقو چه دا واجب ګرځوی.

**شیخ الاسلام علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله رائې:** شیخ الاسلام علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله دَدې باب دَغرض او مقصد باره کښې لیکلی دی چه داباب هم دَغسل په هیئت باندې مشتمل دې اودلته په غسل کښې درې ځل په سرباندې اوبو بهیولوذکردې. کوم چه دَ تکرار بالکل آخری حددې. دَ ترجمه مقصد دَ دریو شمیر ثابتول دی یا صرف دَ استیعاب ثابتول مقصددې په کوم سره چه څه شك پاتې نه شی. غالبًا دَامام بخاری رحمه الله مقصد دَ دریو شمیر ثابتول نه دی بلکه استیعاب او دَ تکرار آخری حدبیانول دی. [۴]

**دَ تثلیث في الغسل حکم:** دَ حنفیه شافعیه اوحنابله په نیزپه غسل کښې تثلیث مسنون اومستحب دې.[۵] دَ عام مالکیه رائې داده چه تثلیث مستحب نه دې. په کومواحادیثوکښې چه راغلی دی حضورپاك په خپل سرمبارك باندې درې ځل اوبه اچولی دی یائی چاته دَ دریوځلو اوبواچولوتلقین کړې دې نودَدې مقصدتکرارنه دې بلکه استیعاب دې. چونکه په یوځل اوبو اچولوسره سر پوره نه

---

[۱] فتح الباری:۲/۴۸۳. ابن عبدالبر رحمه الله په دې خبره باندې اجماع نقل کړې ده چه دَجمهورو په نیز عن فلان او إن فلاناً دواړه برابر دی. په دې باره کښې دَنور تفصیل دپاره اوګورئې: علوم الحدیث لابن الصلاح، النوع الحادی عشر، ص: ۷۲-۶۲ النکت علی کتاب ابن الصلاح لابن حجر العسقلانی النوع الحادی عشر:۲/۶۰۳-۵۹۰ النکت علی مقدمة ابن الصلاح للزرکشی النوع الحادی عشر ص: ۱۷۹-۱۷۰.

[۲] عمدة القاري: ۳/۲۹۷.

[۳] الأبواب والتراجم لصحیح البخاری: ص:۶۰ الکنز المتواری:۳/۱۹٤.

[٤] فضل الباری:۲/٤۳۰ تثلیث فی الغسل سره متعلق څه بحث کتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل په رومبی حدیث کښې ثلاث غرف لاندې تیرشوې دې.

[۵] بدائع الصنائع:۱/۲۶۹ البحر الرائق:۱/۹۳ المنهاج: ٤/۲۳۵-۲۳٤ المجموع:۲/۱۸۵ المغنی:۱/۱۳۸.

لمیدیږی په دې وجه حضورپاك درې ځل ښی او ګس طرف او په مینځ کښې دَ اوبو اچولو حکم فرمائیلې دې. چنانچه دَعلامه قرطبی قاضی عیاض اوابن عربی رحمهم الله وغیره هم دغه قول دې.[۱]
شافعیه کښې ابوالحسن ماوردی رحمه الله دَ تثلیث في الغسل قائل نه دې. [۲]اوعلامه ابوالحسن سندهی رحمه الله هم دَ استیعاب قائل دې دَ تثلیث قائل نه دې.[۳]
علامه نووی رحمه الله ماوردی رحمه الله منفردګرځولوسره فرمائیلی دی چه دَ هغوی داقول ضعیف اومتروك دې.[۴] ابن ملقن رحمه الله فرمائی چه دادَ ماوردی رحمه الله تفردنه دې بلکه شرح الفروع کښې هم دغه خبره ابوعلی السنجی هم وئیلې ده.[۵]
علامه خلیل مالکی رحمه الله فرمائی په سرکښې تثلیث دې په باقی بدن کښې نشته دې. لهٰذا باقی بدن لوندول کافی دی البته په سرباندې درې ځل اوبه اچول مستحب دی. دَابوبرکات علامه دردیرمالکی رحمه الله هم دغه مذهب دې.[۶]

**دَ امام بخاری رحمه الله خیال:** امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې «من أفاض علی رأسه ثلاثاً» فرمائیلی دی «علی بدنه» نه دی فرمائیلی. په دې سره دومره خو معلومیږی چه هغه په دې مسئله کښې دَ جمهورو هم خیال نه دی تثلیث مستحب نه مني. اوس دَ امام بخاری رحمه الله په رائې کښې دوه احتمالات دی یا خوداَمام بخاری رحمه الله رجحان دَ علامه خلیل مالکی دَ رائې طرف ته ګنړل ېکاردی لکه چه هغه دَ تثلیث رأس قائل دې اوتثلیث في الغسل قائل نه دې. هم دَدې امام بخاری رحمه الله هم قائل دې. لیکن دَدې دا مطلب نه دې چه هغوی دَ علامه خلیل مالکي رحمه الله متابعت کړې دې ځکه چه علامه خلیل رحمه الله خودَ ډیر روستو وخت سړې دې او امام بخاری رحمه الله دَ هغه نه دَ ډیر وړاندې وخت سړې دې. یا داسې وئیلې کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله «من أفاض» وئیلوسره دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه په احادیثوکښې داکوم درې درې ځل دَ اوبواچول راغلی دی دا څه متعین صورت نه دې بلکه مقصود سرلوندول دی. که دَ چا سر په رومبی ځل اوبه اچولوسره لوندشی نودادَهغه دَپاره کافی دی اوکه چاته دَ دې نه دَ زیات ضرورت پیښ شی نوهغه دې دَخپل سر لوندولودَپاره درې ځل یادَدې نه زیاتې اوبه هم اچولې شی.
خلاصه دا چه که څرې امام بخاری رحمه الله دَ استحباب تثلیث فی الغسل قائل نه دې نودَ استحباب تثلیث غسل رأس قائل دې. «کماهورأی الخلیل المالکی رحمه الله». ابن التین رحمه الله دَعلماؤنه نقل کړی دی چه دَدې حدیث نه مراد یا خو تکرار فی الطهارة دې یادا تمامیت دَ طهارت دَ پاره دې ځکه چه استیعاب دَ غسل دَپاره یوځل وینځل نه کافی کیږی. بعض حضراتو فرمائیلی دی چه تثلیث مستحب دې البته په څومره سره چه اسباغ اوشی هغه جائزدی.[۷]

---

[۱] أوجز المسالك:۱/۴۹۹عارضة الأحوذی:۱/۱۵۸-۱۵۷إکمال إکمال المعلم:۱/۹۳ شرح الزرقانی:۱/۹۱.
[۲] المنهاج للنووی:۴/۲۳۵ التوضیح لابن الملقن :۴/۵۶۱.
[۳] حاشیة السندی علی صحیح البخاری:۱/۵۷ حاشیة السندی علی النسائی:۱/۱۳۶.
[۴] المجموع شرح المهذب:۲/۱۸۵.
[۵] التوضیح: ۴/۵۲۱عمدة القاری:۳/۲۹۹.
[۶] الشرح الصغیر مع الصاوی:۱/۱۷۲حاشیة الدسوقی:۱/۲۲۵ جواهر الإکلیل:۱/۲۳.
[۷] التوضیح لابن ملقن:۴/۵۶۱عمدة القاری:۳/۲۹۹.

ابن بطال رحمه الله فرمائی «والعدد فی ذلك مستحب عند العلماء، وما أسبغ وعمّ ذلك أجزأ» [۱] يعنی په دې حواله سره عدد خود علماؤ په نيز مستحب دې البته په څومره سره چه هم تعميم او اسباغ حاصله شی هغه جائز دی.

## الحديث الأول

۲۵۳ - حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَمَّا أَنَا فَأُفِيضُ عَلَى رَأْسِي ثَلَاثًا، وَأَشَارَ بِيَدَيْهِ كِلْتَيْهِمَا» [حديث باب] [۲]

ترجمه: مونږ ته بيان كړو حديث ابونعيم، اووئيل مونږ ته زهير، هغوی د ابواسحاق نه اوهغوی اووئيل ماته سليمان بن صرد بيان اوكړو ماته جبير بن مطعم رضی الله عنه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائيلو زه خو (په غسل كښې) په خپل سرباندې درې لپې (اوبه) بهيوم او رسول الله صلی الله علیه وسلم د دواړو لاسونوپه اشاره كولوسره اوخودل.

## تراجم رجال

**ابونعيم:** دا مشهور محدث ابونعيم الفضل بن دكين الملائی الكوفی رحمه الله دې. د دوی حالات كتاب الإيمان باب فضل من استبرألدينه د رومبی حديث لاندې تيرشوی دی. [۳]

**زهير:** دا زُهير (تصغيرسره) بن معاويه بن حُديج بن الرُحَيل بن زهير بن خيثمه جعفی رحمه الله دې. د دوی مفصل احوال كتاب الإيمان باب الصلاة من الإيمان د رومبی روايت په ذيل كښې تيرشوی دی. [۴]

**ابواسحاق:** دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبيد سبعی كوفی رحمه الله دې. د دوی تفصيلی حالات كتاب الايمان باب الصلاة من الايمان د رومبی حديث لاندې تيرشوی دی. [۵]

**سليمان بن صُرَد رضی الله عنه:** ذا سليمان بن صرد «بضم المهملة وفتح الراء» [۶] بن الجون بن ابی الجون بن منقذ بن ربيعة بن اصرم بن حرام بن حَبَشِيَة (وقيل: أو حُبْشِيَة) بن سلول بن كعب بن عمرو بن ربيعة الخزاعی الكوفی رضی الله عنه. (۱) ابومطرف د هغوی كنيت دې. [۲]

---

[۱] شرح ابن بطال:۱/۳۸۴عمدة القاری:۳/۲۹۹التوضيح:۴/۵۶۱.

[۲] الحديث أخرجه مسلم فی صحيحه فی كتاب الحيض، باب استحباب إفاضة الماء علی الرأس وغيره ثلاثاً رقم: ۳۲۷وأبوداؤد فی سننه فی كتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة رقم: ۲۳۹والنسائی فی سننه فی كتاب الطهارة باب ذكر مايكفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه رقم: ۲۵۱وأيضًا فی كتاب الغسل والتيمم باب مايكفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه رقم:۴۲۵انظرجامع الأصول رقم: ۵۳۲۷وانظر كذلك تحفة الأشراف رقم:۳۱۸۶.

[۳] كشف الباری:۲/۶۷۳-۶۶۹.

[۴] كشف الباری:۲/۳۷۰-۳۶۷.

[۵] كشف الباری:۲/۳۷۵-۳۷۰.

[۶] تقريب التهذيب ص:۲۵۲ رقم الترجمة: ۲۵۷۴فتح الباری:۲/۴۸۴.

**شرف صحابیت:** دا صحابی رسول ﷺ دي.(۲)علامه ذهبی رحمه الله دي په صغار صحابه کښې شمیرلې دي.(۳)لیکن علامه عسقلانی، عینی او قسطلانی رحمهم الله دي فاضل صحابه کرامو کښې شمیرلې دي.(۴)

**شیوخ حدیث:** سلیمان بن صرد رضی الله عنه دَحضرت رسول اکرم ﷺ نه نیغ په نیغه او ابی بن کعب، علی بن ابی طالب، جبیر بن مطعم، حسن بن علی رضی الله عنه نه دَ حدیث روایت کوی.(۶)

**تلامذه:** دَهغوی نه روایت نقل کونکوکښې ابواسحاق سبیعی، تمیم بن سلمه، شقیر العبدی، شمر، ضبثم الضبی، عبدالله بن یسار جهنی، عدی بن ثابت، ابوالضحی، مسلم بن صبیح، یحیی بن یعمر، ابوحنیفه والد عبدالاکرم بن ابی حنیفه او ابوعبدالله رحمهم الله وغیره شامل دی.(۷)

**دَ ژوند حالات:** دَ اسلام راوړلونه مخکښې دَ جاهلیت په زمانه کښې دَ هغوی نوم یسار وو کله چه ئې اسلام قبول کړو اودَ حضورپاك په صحبت کښې شامل شو نو حضورپاك دَ هغوی نوم دَ یسار نه بدل کړو او سلیمان ئې کیخودو.(۸)

هغوی رضی الله عنه دَ خپل قوم دَ اوچتې درجې معزز کسانونه وو.(۹).حضورپاك چه کله دَدې دنیا نه تشریف یوړو نوحضرت سلیمان رضی الله عنه دَ نورو مسلمانانوسره کوفه ته تشریف یوړو.(۱۰) دَخطیب بغدادی وغیره په قول هغوی رضی الله عنه په بنوخزاعه کښې اوسیدلو. دې نه علاوه هغوی رضی الله عنه دَ مدائن او بغداد هم سفر اوکړو.(۱۱)ابن عبدالبر رحمه الله وغیره فرمائي «کان رضی الله عنه خیراً فاضلاً، له دین وعبادة»(۱۲) یعنی هغوی رضی الله عنه بهترین فاضل متدین او عبادت ګذار سړې وو. هغوی رضی الله عنه حضرت علی رضی الله عنه سره په جنګ صفین وغیره کښې هم شریك شوې.(۱۳)

---

(۱)تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۵-۴۵۶طبقات ابن سعد:۴/۲۹۲التاریخ الکبیر:۴/۱ رقم الترجمه: ۱۷۵۲الجرح والتعدیل ۴/۱۲۰ تاریخ بغداد:۱/۲۱۵معرفة الصحابة:۲/۴۶۱تاریخ الإسلام:۲/۴۱۲سیرأعلام النبلاء:۳/۲۹۴تهذیب التقریب:۴/۲۰۰ الإصابة :۲/۷۵

(۲) طبقات ابن سعد:۴/۲۹۲ تاریخ بغداد:۱/۲۱۵

(۳) معرفة الصحابة:۲/۴۶۱الإصابة: ۲/۷۶تاریخ الإسلام:۲/۴۱۲سیرأعلام النبلا: ۳/۲۹۴.

(۴) تاریخ الإسلام:۲/۴۱۲.

(۵) فتح الباری:۲/۴۸۴عمدة القاری:۳/۲۹۷إرشادالساری:۱/۴۹۳.

(۶) الإصابة فی تمییز الصحابة:۲/۷۶تاریخ الإسلام:۲/۴۱۲تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۵سیرأعلام النبلاء:۳/۳۹۴ تهذیب التهذیب:۴/۲۰۰

(۷) معرفة الصحابة:۲/۴۶۱الإصابة: ۲/۷۶ تهذیب الکمال:۴۵۶-۱۱/۴۵۵ الجرح والتعدیل: ۴/۱۲۰.

(۸) تاریخ بغداد:۱/۲۱۵ الإصابة فی تمییز الصحابة:۲/۷۶ تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۶-۴۵۵ تهذیب التقریب:۴/۲۰۰.

(۹) الاستیعاب فی أسماء الأصحاب علی هامش الإصابة:۲/۶۴ تاریخ الإسلام:۲/۴۱۳ تاریخ بغداد:۱/۲۱۵

(۱۰) طبقات ابن سعد:۴/۲۹۲ تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۶ الاستیعاب:۶۴-۲/۶۳.

(۱۱) تاریخ بغداد:۱/۲۱۵ الاستیعاب فی أسماء الأصحاب علی هامش الإصابة:۲/۶۳ تهذیب إلکمال:۱۱/۴۵۶.

(۱۲) الاستیعاب فی أسماء الأصحاب علی هامش الإصابة:۲/۶۳ تهذیب الکمال: ۱۱/۴۵۶ تهذیب التهذیب:۴/۲۰۰.

(۱۳) طبقات ابن سعد:۴/۲۹۲ تهذیب التهذیب:۴/۲۰۱ الاستیعاب:۲/۶۴ الإصابة:۲/۷۶ معرفة الصحابة:۲/۴۶۱ تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۶.

وفات: هغوى رضي الله عنه ۶۵ هجرى دَ ربيع الاول آخرى ورځوكښې دَ "عين ورده" په مقام باندې شهيد كړې شو. هغه وخت دَهغوى رضي الله عنه عمر ۹۳كاله وو.(۱) ابن حبان كتاب الثقات كښې ليكلى دى چه هغوى دَ عين ورده په مقام دَ رمضان المبارك په مياشت ۶۷ هجرى كښې شهيد كړې شو. (۲)ليكن دا خبره صحيح نه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره ليكلى دى چه "والأول أصح وأكثر" يعنى ۶۵ هجرى كښې دَ هغوى وفات اكثرمؤرخينو نقل كړې دې اوهم دغه قول اصح دې. (۳)

**دَ حضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه سره متعلق دَ تاريخى رواياتو جائزه:** دَ تاريخ په كتابونوكښې په عام توګه هرقسم روايات سندونوسره جمع كولې شى. تنقيح اوتحقيق نه شى كولې. دَدې رواياتو تنقيح او تحقيق دَ فن دَماهرينو په ذمه وى. بغيرتنقيح اوتحقيق په دې رواياتوباندې قبوليت اوعدم قبوليت حكم لګول صحيح نه دى. چنانچه طبرى رحمه الله په تاريخ الأمم والملوك المعروف بتاريخ طبرى مقدمه كښې ليكلى دى چه ما په دې كتاب كښې دَ سلف سره متعلق چه كوم اخبار (روايات) نقل كړى دى كه چرې قارى دا ناخوښه اوګرځوى يا سامع دا په طعن اوتشنيع باندې محمول كړى په دې وجه چه دَدې رواياتو صحيح توجيه هم نه شى كيدې اونه دَدې رواياتوحقيقت سره څه تعلق دې نوهغه حضرات دې په دې خبره پوهه شى چه دا (ناخوښه او دَ طعن اوتشنيع والاروايات) زمونږ دَ طرف نه نه دى بلكه دادَ بعض ناقلينودَ طرف نه دى مونږ خودَ دغه ناقلينو بيان كړې شوى روايات (دَهغوى سندسره) نقل كړى دى.(۴)حضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه په حواله سره هم دَ تاريخ كتابونه خاص كر

---

(۱) تاريخ بغداد:۲۱۵/۱ طبقات ابن سعد: ۲۹۳/۴-۲۹۲ تاريخ الإسلام:۴۱۳/۲الإصابة:۷۶/۲ الاستيعاب: ۶۴/۲تهذيب الكمال: ۴۵۶/۱۱ سيرالأعلام النبلاء: ۳۹۵/۳ معرفة الصحابة:۴۶۱/۲.

(۲) كتاب الثقات:۳۳۰/۱ رقم الترجمة: ۵۲۹ تهذيب الكمال:۴۵۷/۱۱ تهذيب التهذيب: ۲۰۱/۴.

(۳) تهذيب الكمال:۴۵۷/۱۱ تهذيب التهذيب: ۲۰۱/۴.

(۴) اوګورئى تاريخ الأمم والملوك بتاريخ طبرى، خطبة الكتاب ۱۱/۱.

دكتور خالد علال كبير "مدرسة الكذابين فى رواية التاريخ الاسلامي وتدوينه": ۶۸/۱-۶۷ كښې دَعلامه طبرى رحمه الله دَدې طرزعمل متعلق ليكلى دى چه زما په نيز هغوى دا (يعنى تحقيق اوتمحيص نه بغير صرف دَ سندسره روايات ذكر كولوسره) يوناقص كاركړې دې اودغه ټولو رواياتوهغه پخپله ذمه وار دې كوم چه هغه په خپل تاريخ كښې مدون كړى دى. هغوى عمداً دَ دروغژنو راويانو په كثرت سره روايات نقل كړى دى او په هغې باندې ئې سكوت يعنى خاموشى اختياركړه. دا ډيره خطرناكه معامله ده چه روستو دَ راتلونكو ډيرو نسلو دپاره دَ ګمراهئى سبب جوړ شوې دوى (يعنى علامه طبرى رحمه الله) له پكاروو چه هغودى دَ دغه دروغژنو راويانو بغيرد څه ضرورت نه تذكره نه كوله يائى په هغوى باندې نقد كولې اودَ دغه رواياتو جانچ پړتال ئى كولې. صرف دهغوى په اسانيدباندې اكتفا كولوسره ئى سكوت نه وې اختيار كړې.

داكټرصاحب نور ليكلى چه (دَ رواياتو جانچ پړتال او نقدكول په دې وجه ضرورى وو) ځكه چه دَهغوى كتاب (تاريخ طبرى) مطالعه كونكوكښې غالب اكثريت دهغه خلقو دې په چاكښې چه دومره علمى صلاحيت نه وى چه هغوى په دغه رواياتو باندې دَ سند اومتن په اعتبارسره نقد اوكړې شى نوځه به هغوى دَ دې نه استفاده كونكى، حديث تاريخ او نورو علوموكښې متبحر كيدلې نوبيا داخبره فيصله شوې وه چه هغوى دَ نقد اوتمحيص عمل سرته رسولې.

داكټرصاحب نور ليكى چه دا معامله ددې نه هم نوره سخته كړې دې خبرې چه دَ طبرى نه پس راتلونكى اكثر مؤرخينو دَ قرون ثلاثه باره كښې دهغوى نه په كثرت سره روايات نقل كړى دى او اكثر ئى بغيرد سند نه نقل كړى دى. لكه ابن جوزى په منتظم كښې، ابن الاثير الكامل كښې او ابن

تاريخ طبرى[۱]، دابن اثير جزرى "الكامل"[۱] او ددې دواړو نه نقل شوې د ابن كثير "البداية والنهاية"[۲] وغيره[۳] كښې چه كوم روايات ذكر دى دهغې څه حصه په كتب رجال كښې هم نقل كړې شوې ده.[۱]

---

كثير البدايه كښې كړى دى. او دغه شان بغيرد سند نه نقل كولو سره د ثقه او دروغژنو راويانو روايات ګډوډ شو. اكثر وختونو كښې تاريخ طبرى طرف ته مراجعت كولونه بغير په دې كښې تميز مستحيل كيږى. په دې وجه د فن دماهرينو د اقوالو په رڼا كښې حضرت سليمان بن صرد رضي الله عنه سره متعلق د تاريخى رواياتو جائزه اخستل ضرورى دى.

[۱]) اوګورئى تايخ الطبرى: ۳/۲۷۷، ۳۹۰، ۴۲۰-۴۰۵، ۳۹۷-۳۹۱ صرف د اهل علم د پاره په توګه د نمونې د ابومخنف خانه ساز د يوخط تذكره كوو كوم چه هغه د سليمان بن صرد رضي الله عنه طرف ته منسوب كړې دې. طبرى ۳/۲۷۷ اوابن الاثير: ۳/۲۸۵ بغيرد څه نقد او تمحيص نه نى هغه نقل كړې دې د خط الفاظ دادى: "لحسين بن على من سليمان بن صرد والمسيب بن نجبة، ورفاعة بن شداد، وحبيب بن مظاهر، وشيعته من المؤمنين والمسلمين من أهل الكوفة: سلامٌ عليك، فإنا نحمد إليك الله الذى لاإله إلا هو، أما بعد، فالحمدلله الذى قصم عدوّك الجبّار العنيد الذى انتزى على هذه الأمة فابتزّها، وغصبها فيئها، وتأمر عليها بغير رضاً منها، ثم قتل خيارها، واستبقى شرارها وجعل مال الله دُولةً بين جبا برتها وأغنيائها، فبعداً له كما بعدَتْ ثمود! إنه ليس علينا إمام فاقبل، لعلّ الله أن يجمعنا بك على الحق". اهـ. داخانه ساز خط اولولئى او د لږ شان وخت د پاره غور او فكر اوكړئى آيا يوصحابى د رسول الله صلى الله عليه وسلم بل صحابى د رسول الله صلى الله عليه وسلم ته داسې ناروا بې هوده اوظالمانه اندازسره متهم كولې شى. كوم چه نه صرف د نقل خلاف دې بلكه دعقل هم.

ضرورت ددې امر دې چه دا لاتدينى امور رو بعمل راوړلوسره د تاريخ اسلام تدوين جديد اوكړې شى: ① اعتدال سره د دغه ټولو مؤرخينو د كتابونونه په ثقه او دروغژنو راويانو په روايتونوكښې تميز اوكړې شى چا چه په خپلو كتابونوكښې دواړه قسمه رواياتوته ځائې وركړې دې. لكه خليفه بن خيام، محمدبن سعد، زبير بن بكار، موسى بن عقبه، وهب بن منبه، طبرى او ابن اثير وغيره. ② داخبره هم په ذهن كښې ساتل پكاردى چه علماء رجال ومحدثين عظام د نقد تحقيق اوتمحيص نه پس د احاديثو په ذخيره كښې موجود په سوونو نه بلكه په زرګونو لكهونو احاديثونه صحيح اوسقيم او ضعيف او موضوع وغيره تعيين كړې دې خوزمونږ تاريخى ورثه ددې نه لمن رانبكلې ده.

③ ضرورت ددې امر دې چه دتاريخى كتابونو په ټولو قواعدو اوضوابطوپه رڼا كښې د سند اومتن په اعتبار سره نقد اوتمحيص او تحقيق اوكړې شى كوم چه محدثين علماء رجال بيان كړى دى.

④ په خلقوكښې ددې خبرې شعور پيداكړې شى چه دتاريخ فلانكې فلانكې راوى او روايت قابل اعتبارنه دې د هغې نه ډډه اوكړى او په صحيح او ثقه رواياتو باندې اكتفاء اوكړې شى.

⑤ په دې خبره كښې هم تفريق ضرورى دې چه مؤلف اوصاحب د تاريخ بخپله خو ثقه دې مګر هغه په واقعاتو او نقل د رواياتوكښې په دروغژنو راويانو اعتماد كړې دې. لكه څنګه د مؤرخ طبرى حال دې. نو په دې صورت كښې به دهغه صرف د ثقه راويانو والا روايتونه مقبول وى. د دروغژنو راويانو روايتونه به مردود ګرځولې شى.

⑥ اوكه چرې مؤلف پخپله كذاب وى نو بيا دهغه په كتاب كښې به موجود د ثقه خلقو روايات هم غيرمعتبروى.

⑦ اصل اوضابطه د دروغژنو راويانو د روايتونو عدم قبوليت دې خوكه دهغوى روايات د قرآن سنت او اجماع د امت مخالف نه وى نو د ثقه راويانو تائيد او نور قرائن اومرجحاتو په موجودګئى كښې به دهغې د قبلولو ګنجائش وى.

⑧ د تاريخ په مطالعه كولوسره داخبره هم واضحه شوې ده چه د دغه دروغژنو راويانو تعلق دمختلف ګمراه فرقو اوعلمى حلقوسره دې چاچه د خپلو نظرياتو او عملى مزعوماتو د تائيد او ترويج او

چه حضرت سلیمان بن صرد ؓ دَهغه خلقو نه وو چه حضرت حسین ؓ ئی کوفه ته دَ رابللو دَپاره خطونه لیکلی وو دَهغوی په تشریف راوړلو باندې ئی هغوی ځان له پریخودل دَهغوی دَامداد نه شاته شو. دَهغوی په شهادت باندې خپیمانه شو نو یو لښکر جوړلو سره ئی دَ بدله اخستلو دَپاره عبیدالله ابن زیاد سره جنګ اوکړو وغیره وغیره.

دَ تاریخ دَ کتابونودا ټول روایات کوم چه دَ سلیمان بن صرد په حواله سره دی په هیڅ قسم باندې من اوعن نه شی منلې کیدې. لهذا چه کله دَدې قسم روایاتو دَ حقیقت پیژندګلودَپاره د تاریخ کتابونو او بیا د کتب رجال طرف ته مراجعت اوکړې شو نوداخبره واضحه شوه چه په دې کښې اکثر روایات دَ ابومخنف لوط بن یحیی دَ ځان نه جوړکړی دی.

**ابومخنف دَ جرح اوتعدیل په تله کښې:** لوط بن یحیی ابومخنف باره کښې ائمه دَ جرح اوتعدیل اقوال اوګورئی: علامه ذهبی ؒ اوعلامه ابن حجر ؒ وائی "أخباري، تالف، لایوثق به"(۵) ابوحاتم وغیره هغه ته متروك الحدیث وئیلی دی. یحیی بن معین ؒ فرمائی: "لیس بثقة"، "لیس بشيء".(۶) عقیلی ؒ ضعفاء کښې تذکره کړې ده.(۷) ابوعبیدآجری وائی چه ما دَ امام ابوداؤد ؒ نه دَ ابومخنف باره کښې پوښتنه اوکړه نوهغه خپل لاسونه اوخنډل اوونی فرمائیل چه آیا څوك دَدې باره کښې هم پوښتنه کوی یعنی هغه د دې قابل نه دې چه دَهغه باره کښې پوښتنه اوکړې شی.(۸)

ابن عراق کنانی ؒ فرمائی "کذاب تالف"(۹) ابن عدی ؒ فرمائی: "شیعي محترق، صاحب أخبارهم".(۱۰) بعض خوتردې پورې لیکلی دی امامی شیعه وو.(۱۱) ابن جوزی ؒ هم ورته کذاب وئیلې دې. (۱۲)

**ابومخنف دَ شیعه مؤرخینو په نظرکښې:** شیعه مؤرخین خاص کر دَ کتب رجال مصنفین، محسن امین، شرف الدین، آغا بزرګ طهرانی، عباس قمی، محمد مهدی طباطبائی، خوئی، خاقانی، نجاشی، حِلی او طوسی وغیره دَ ده تذکره په خپلو کتابونوکښې دَ شیعه مؤرخ په توګه کړې ده. بلکه

---

دنیاوی مفاداتودَحاصلولودَپاره په رسول الله ﷺ اوپه صحابه کرامو ؓ باندې ډیر زیات دروغ وئیلی دی. دَنور تفصیل دَپاره اوګورئی "مدرسة الکذابین فی روایة التاریخ الإسلامی وتدوینه" والله اعلم بالصواب

(۱) الکامل فی التاریخ:۳/۳۸۵، ۴۹۰-۳۸۶، ۳/۱۲-۳.

(۲) ۲/۲۵۵-۲۵۸

(۳) تاریخ بغداد: ۲۱۶-۱/۲۱۵.

(۴) الاستیعاب:۲/۶۴ الإصابة:۲/۷۶ تهذیب الکمال:۱۱/۴۵۶ سیرأعلام النبلاء:۳/۲۹۵ طبقات ابن سعد:-۴/۲۹۲ ۲۹۳ کتاب الثقات:۱/۳۳۰.

(۵) لسان المیزان:۵/۵۶۷ میزان الاعتدال:۳/۴۱۹.

(۶) الضعفاء الکبیر:۴/۱۸لسان المیزان:۵/۵۶۸.

(۷) حواله سابقه دَ نور تفصیل دَپاره اوګورئی: سیرأعلام النبلاء:۷/۳۰۲ الضعفاء والمتروکین، ص:۳۳۳ میزان الاعتدال:۳/۴۲۰ المغنی فی الضعفاء: ۲/۲۳۴.

(۸) لسان المیزان:۵/۵۶۸.

(۹) تنزیه الشریعة:۱/۹۸.

(۱۰) الکامل فی ضعفاء الرجال:۶/۹۳لسان المیزان:۵/۵۶۸.

(۱۱) الأعلام لخیر الدین الزرکلی:۵/۲۴۵.

(۱۲) الموضوعات:ص:۴۰۶.

دَ ده شميرنى په لويو اواكابر شيعه مؤرخينوكښې كړې دى. (۱)دې نه علاوه صاحب دَ "الفوائد الرجاليه" طباطبائى خوتردې پورې ليكلى دى چه (ابومخنف) په شيعه كيدوكښې دَ چا شك نشته دې لكه چه دَ اصحاب معاجم يوجماعت ددې تصريح كړې ده.(۲)

**په مشاجرات صحابه باندې دَ ځان نه جوړشوې كتابونو تصنيف:** دا ابومخنف هغه بدبوئى داره شيعه مؤرخ دې چا چه په خيرالقرون كښې پيښيدونكى ټول اهم واقعات، سقيفه بنوساعد كښې بيعت ابوبكر رضي الله عنه، شورى (خلافت سره متعلق دَحضرت عمر رضي الله عنه قائم كړې شوې شورى)، مقتل عثمان رضي الله عنه، مقتل على رضي الله عنه، جنګ جمل وصفين، مقتل حسين رضي الله عنه، وفات معاويه رضي الله عنه او ولايت يزيد، مقتل عبدالله بن الزبير رضي الله عنه او سليمان بن صرد رضي الله عنه اودَ عين ورده په نوم سره مستقل دَ ځان نه كتابونه ليكلى دى. (۳)

مشهور مستشرق اې بل "دائره معاف اسلاميه" كښې ددې خبرې تصريح كړې ده چه ابومخنف په قرن اول كښې ښكاره كيدونكى واقعاتوپه تاريخ كښې ۳۲ رسالې ليكلى دى دكوم اكثر حصه چه طبرى نقل كړې ده البته دَ ابومخنف كوم كتابونه چه مونږ ته رسيدلى دى هغه دَ متاخرين (شيعه) وضع كړې شوى دى. (۴)

---

۱) أعيان الشيعة: ص:۱۲۷، أعلام الشيعة:۱۶/۱ لاكنى والألقاب: ۱۴۸/۱ فهرست أسماء مصنفى الشيعة للنجاشى ص:۲۲۵-۲۲۴ الفهرست للطوسى:۲۰/۲ الفوائد الرجالية لبحر العلوم: ۳۷۹/۱-۳۷۵ الكنى والألقاب ۱۶۹/۱ المراجعات:۲۱/۲ حلية الأبرار: ۱۴۶/۴رجال الطوسى:۴۵۹/۱ رجال النجاشى:۳۲۱/۱ معجم الأبرار:۱۴۶/۴ رجال الخاقانى:۱۷۷/۱ معجم رجال الحديث ۱۳۸/۱۱-۱۳۶ الاحتجاج للطبرسى:۴۵۶/۱ الذريعة:۳۹۴/۶خلاصة الأقوال:۳۸۹/۱ نقدالرجال:۱۴۱/۷-۱۴۰.

۲) الفوائد الرجالية:۳۷۹/۱.

۳) فوات الوفيات لمحمد بن شاكر، ص:۲۲۵، الأعلام للزركلى:۲۴۵/۵ الفهرست لابن النديم ص:۱۰۶-۱۰۵، معجم الأدباء: ۲۷۰/۶ معجم المؤلفين:۱۵۷/۸.

۴)الأعلام للزركلى:۲۴۵/۵ابومخنف باره كښې مشهور مستشرق جوليئس والهاوزن (J.Welhausen) په خپل شهره آفاق كتاب (The Arab Kingdom and its Fall) كښې ليكلي دى تركومې چه دَ شيعه ګانو دَتاريخ تعلق كوفې سره پاتې دې ابومخنف دَهغې مستند ترين ماخذ پاتې دې اودهغه حالات اوواقعات كه هرڅومره اورده ولې نه وى طبرى عموماً دَ ابومخنف نه علاوه په بل چا باندې اعتماد نه كوى. نور ليكى د توابون د خبرونو راوى هم ابومخنف دې هغه خاص كر د حميد بن مسلم ازدى نه روايت كړې دې دا سړې د سيدنا حسين رضي الله عنه په قتل كښې شريك وو. روستو دهغه د ټولو نه بهادر حاميانو كښې شو. (عهد اموى كښې سياسى مذهبى احزاب، از: پروفيسر ډاكټر على محسن صديقى (كراچى يونيورسټى) باب اول ص:۱۴، ۷۱ قرطاس كراچى يونيورسټى ط:۱۴۲۷ هجرى۲۰۰۷م) دكتور عبدالمعطى امين قلعجى الضعفاء الكبير تعليقات كښې ليكلى دى چه مستشرقين ابومخنف ته ډير اهميت وركړې دې. اودهغه كتابونه ئې لاس په لاس اخستى دى او په هغې باندې تحقيق كولوسره چهاپ كړل. دې د پاره چه د هغې په ذريعه هغه زمونږ تاريخى او ادبى ورثه متهم كولو خپلوكوششونود پاره ځه لاز اولټوى اودَ شريعت اسلامى مصدر ثانى يعنى د نصوص سنت په نقل كولوكښې كوم ثقاهت او اعتماد موندلې شى هغې ته نقصان اورسولې شى، دابومخنف اكثر مؤلفات جرمنى اوهالينډ كښې چهاپ كړې شوى دى. (تعليقات الدكتور عبدالمعطي امين قلعجي على الضعفاء الكبير: ۱۹/۴).

عباس قمی شیعي په الکنیی والالقاب کښې دَ ابومخنف باره کښې لیکلی دی: "کان أبومخنف من أعاظم مؤرخي الشیعة، ومع اشتهار تشیعه اعتمد علیه علماء السنة فی النقل عنه کالطبري وابن الأثیر وغیرهما". [1] یعنی ابومخنف دَ لویو شیعه مؤرخینونه وو، دَهغه مشهور شیعه کیدو نه باوجود علماء دَ اهل سنت نه طبری او ابن اثیر وغیره دَ هغه نه روایات نقل کولو کښې په هغه باندې اعتماد کړې دې.

**دَ ابن کثیر رحمه الله وضاحت:** حافظ ابن کثیر رحمه الله دَ طبری وغیره نه دَ ابومخنف روایات نقل کولونه پس په لیکلو باندې مجبورشوې: "وللشیعة والرافضة فی صفة مصرع الحسین کذب کثیر وأخبار باطلة، وفیما ذکرنا کفایة، وفي بعض ما أوردناه نظر، لولا أن ابن جریر وغیره من الحفاظ والأئمة ذکروه ما سقته، وأکثره من روایة أبی مخنف لوط بن یحیی، وقد کان شیعیاً وهو ضعیف الحدیث عند الأئمة، لکنه أخباري حافظ عنده من هذه الأشیاء مالیس عند غیره. ولهذا یترامی علیه کثیر من المصنفین فی هذا الشأن". [2]

یعنی اهل تشیع او رافضیانو دَ شهادت حسین رضي الله عنه سره متعلق ډیرزیات دروغ وئیل او بې بنیاده خبرې دی. مونږ چه کوم ذکر کړل په هغې کښې کفایت دې اوزمونږ ذکرکړې شوی بعض څیزونه قابل اشکال دی. که چرې ابن جریر او طبری وغیره په شان ائمه حفاظ دا نه ذکرکولی نومونږ به هم دا روایات نه راوړل.اودا اکثر دَ ابومخنف روایتونه دی چه یقیناً شیعه دې اودَ ائمه حدیث په نیز ضعیف دې لیکن اخباری (صحافی) او حافظ دې. اوهغه سره په دې حواله باندې داسې څیزونه دی کوم چه نورو سره نشته دې. لهذا روستنو اکثرمصنفینو (دَدې روایاتو) باره کښې دابومخنف نه په نقل کولوباندې اکتفاء کړې ده.

**دَ ابن عدی رحمه الله صراحت:** ابن عدی رحمه الله صراحت کړې دې چه دَ ابومخنف هیڅ یو روایت دَ اعتبارقابل نه دې ټول بدبودار او بې هوده روایتونه دی او هیڅ لرې خبره نه ده چه بدبخت به دَ سلف صالحین سپکاوې کوی. چنانچه فرمائی: "حدث بأخبار من تقدم من السلف الصالحین ولا یبعد منه أن یتناولهم وهو شاعی (شیعی) محترق صاحب أخبارهم وإنما وصفته لا یستغنی عن ذکر حدیثه، فإني لا أعلم له من الأحادیث المسندة ما أذکره، وإنما له من الأخبار المکروهة الذي لا أستحب ذکره". [3]

یعنی ابومخنف دَمتقدمین سلف صالحین باره کښې خبرونه نقل کوی اودَ هغه نه لرې نه ده چه هغه دَدوی سپکاوې کوی، دا بدبودار او شیعه دَهغوی مؤرخ دې. ما څکه دَهغه ذکرکړې دی چه دَهغه دَاحادیثو دَ ذکرنه استغناء نشته. زما په علم کښې دَهغه هیڅ داسې صحیح روایت نشته کوم چه زه ذکرکړم، البته دَهغه هغه ناخوښه بدبوداره روایتونه دی کوم چه زه ذکرکول نه خوښوم.

**دَ بحث خلاصه:** په دې ټولو تصریحاتوسره دا خبره بالکل دَنمر په شان ښکاره اوواضحه شوې ده چه ابومخنف یوبدبوداره شیعه امامی مؤرخ دې. چه په اتفاق سره دَټولو ائمه حدیث اورجال په نیز یوناقابل اعتبار او دروغژن سړې دې. بلکه دابن عدی رحمه الله په قول دا سړې دَ سلف صالحین واقعات ذکرکولوسره دَهغوی سپکاوې کوی. چنانچه کومو تاریخ داناچه خپلو اسنادوسره خاص کر طبری او ابن اثیر وغیره چه بغیردَ څه تنقیح اوتحقیق دا قسم بدبوداره شیعه او امامی او دروغژن سړی بې

---

[1] الکنی والالقاب: ۱۶۹/۱.

[2] البدایة والنهایة: ۲۰۹/۸.

[3] الکامل فی ضعفاء الرجال: ۹۳/۶.

بنياده روايتونه په خپلو كتابونوكښې په كثرت سره نقل كړي دي. ضرورت د دې خبرې دې چه حضرات صحابه كرام ﷺ سره متعلق يوداسې روايت مخې ته راشي په كوم كښې چه اشارتاً كنايتاً يا په هرقسم طريقه سره دهغوى په شان كښې د گستاخئى يا تنقيص اړخ راوځى نوهغه په پټوسترگو نقل كول يا په هغې باندې په ړندو سترگو اعتماد كولوپه ځائې دهغې تنقيح اوتحقيق كول پكاردي. دې دپاره چه دابومخنف غوندې بدبخت شيعه مؤرخ په صحابه كرامو ﷺ باندې دختو اچولو منحوس نامبارك او نامسعودغلطې منصوبې كښې ناكام او نامراد شي.(١)

---

(١) اسلامي تاريخ اودَدې راويانومتعلق يوځو علمي او فكري امورو رعايت ډير ضروري دي. دې دپاره چه دتاريخ د مطالعه دوران كښې د دغه غلطيانونه ځان اوساتلې شي كوم چه اهل زيغ اوضلال اود جاده مستقيم نه د گمراه خلقو خاصه ده. چنانچه دا خبره دې واضحه وي چه كله يوقوم اوقبيله پارټي او جماعت حكومت ختم كړي شي او دويم قوم اوجماعت په اقتدار باندې قابض كيږي نودخپلو وړاندينو حكمرانانو ټول ښه خويونه اومحاسن اوتعميرى كارونه هم په خاميانو بدو او تخريب سره تعبيركولودپاره پوره حكومتى مشينرى يوځائې كوى اوزوور لگوى. په اسلامي تاريخ باندې نظر اچولوسره معلوميږي چه دحضرت حسن ﷺ حضرت امير معاويه ﷺ سره دمصالحت نه پس تقريباً د ١٣٢هجرى پورې دبنو اميه حكومت وو. ددې نه پس ١٣٢هجرى په موافقت د ٧٤٩ د بنوعباس يوسرى ابوالعباس سفاح د بنو اميه حكومت ختمولوسره د بنو عباس حكومت قائم كړو اوداخبره هم بالكل ښكاره ده چه دخاندانى اوقبائلى تعصباتو لاندې داخلق د بنو اميه سخت خلاف وو. لكه چه روستو راتلونكى حكومت د مخكښنى حكومت خلاف وي.

ددې فطرى او نفسياتى ضابطه لاندې تاريخ اسلام د تدوين په زمانه كښې هم دغه شان صورت حال مخې ته شو. چنانچه په دويمه صدئى هجرئى كښې د بنوعباس په دوركښې عموماً د تاريخ دتدوين شروع اوشوه نو مؤرخينو په عام توگه تاريخى واقعات مرتب كولوكښې پورتنى نظريات په ذهن كښې اوساتل. او بعض مؤرخينو د خپل دور حكمرانانو د خوشحالودپاره اود امراء رضامندى مخې ته ساتلو سره دهغوى په نظرونوكښې خپل مقام پيداكولو په خاطر په خپلو تصانيفوكښې مذكوره طريقه اختياركړه اودغه شان هغوى خپل معاشى اوتمدنى حالات هم مستحكم كړل.

دنيزدې زمانې يو مشهور مؤرخ علامه شبلى نعمانى ﷺ خپل تصنيف "الانتقاد على التمدن الإسلامي" كښې داسلامى تاريخ د تدوين يوبهترين جائزه پيش كړي ده هغه فرمائى: د اسلامى تاريخ مؤرخينو عموماً د بنو عباس په دوركښې پيدا شوى دى اودا خبره معلومه ده چه دعباسيانو په دوركښې د بنو اميه محاسن ذكركولوپه يوسرى كښې استطاعت نه وو ځكه چه كه چا دبنو اميه د څه خوبو يوځيز اتفاقاً صادركيدلو نود هغې وينا كونكى به په قسماقسم سزا گانو سره تنكولې شو اود سپكاوى نه علاوه به ناموافق انجام سره هم مخ كولې كيدې شو. د تاريخ په دفتركښې ددې ډير مثالونه موجوددى. (بحواله سيرت حضرت امير معاويه ﷺ ٢/٢٢-١٢)

ددې نه علاوه تاريخى واقعات نقل كونكى راويانو نظريات اومذهبى رحجانات هم ددغه واقعاتو دبيانولودپاره اختياركړې شوې تعبيركښې مركزى كردار اداكړو. خصوصاً چه كله د دغه روايت بالمعنى هم عام اجازت وو. چنانچه رافضى اوخارجى راويانو د واقعاتو حقائق هيرولوسره دخپل ځان نه روايات جوړ كړل اوډيرزيات اعتراضات او مطاعن ئې راپيدا كړل.

داخبره دې هم واضحه وي چه علماء كرامو صراحت كړې دې چه كوم روايت او حديث هم درايت اودعقل خلاف وي يا د اصول شريعت مناقض وي نو خبرښتى چه دغه روايت موضوع دې اوددې د راويانو هيڅ اعتبارنشته. دغه شان چه كوم روايت د حس او مشاهده خلاف وي يا د قرآن اوسنت متواتره او اجماع قطعى مبائن وي نوهغه روايت هم د قبلولو قابل نه دي. (فتح المغيث شرح ألفية الحديث، الموضوع: ١/٢٥٠-٢٤٩).

**جبيربن معطم** رضي الله عنه: دادَ رسول الله ﷺ صحابى حضرت جبير (دَ جيم په ضمه هاء فتحه يا سكون او آخره كښې راء سره لوستلې شى) (۱)بن مطعم (دَ عين كسره سره باب دَ ا فعال "الاطعام" نه دَ اسم فاعل صيغه ده)(۲)

بن عدى بن نوفل بن عبدمناف بن قصى بن كلاب ابن مرة بن كعب بن لؤى بن غالب، نوفلى، قرشى، مدنى رضي الله عنه دې. أبومحمد، ابوعدى او ابوسعيد دَدوى كنيت دې.(۳) دَدوى دَ مور نوم ام جميل يا ام حبيب بنت سعيد بن عبدالله بن ابى قيس دې. دَ دې تعلق بنوعامر بن لؤى سره دې. (۴) ابونعيم په "معرفة الصحابة" كښې دَحضرت جبير رضي الله عنه دَ مور نوم اونسب داسې نقل كړې دې: ام جميل يا ام حبيب بنت شعبة ابن عبدالله بن ابى قيس بن عبدود بن نصر بن مالك بن حسل. (۵)علامه مزى رحمه الله هم دا اختيار كړې دې. البته هغوى ام جميل او ام حبيب نه دَ ام جميل تعيين كړې دې. (۶)

---

علامه عبدالحي لكهنوى رحمه الله ليكلى دى چه دَاحاديثو اوروایاتو په وضع كونكوكښې بعض هغه خلق دى چاچه دَصحابه كرامو حضراتو او دَ دين دَ امامانو بدنى او عيبونه بيانولودپاره اودنورو مذموم اغراض اومقاصدو دَتكميل دپاره روايات وضع كړې. دَهغوى دا عمل يا دَ عنادد وجې نه دې يادَ تعصب اوفساد دَ وجې نه، نوددغه خلقو دَ رواياتوهيڅ اعتبارنشته دې تر كومې چه دهغوى يوسند معتمدنه موندلې شى. يا په سلف صالحين كښې چا په هغې باندې اعتمادكړې وى. (الأجوبة الفاضلة للأسئلة العشرة الكاملة، تحت الجواب عن السوال الأول ص:۲۹)

علامه نووى رحمه الله قاضى عياض رحمه الله اوعلامه مازرى رحمه الله په حواله سره فرمائيلى چه مونږ له صحابه كرامو حضراتو سره دَ ښه ګمان ساتلو او دَهربدخصلت دهغوى نه دَ نفى حكم راكړې شوې دې. لهذا كه دَهغوى باره كښې په يوروايت كښې اعتراض وى اودَهغې دَ صحيح تاويل ګنجائش نه وى نوبيا داسې صورت كښې به مونږ ددې روايت دَ راويانوطرف ته دَ دروغونسبت كوو.(دَ صحابه كرامو رضي الله عنهم طرف ته به دَ څه غلط امر انتساب نه شى كولې) (المنهاج، المعروف بشرح النووي، كتاب الجهاد باب حكم الفي: ۲۹۶/۱۲).

علامه عبدالعزيز فرهاروى رحمه الله ليكلى دى كه چرې دَ صحابه كرامونه (دَ بشريت په تقاضا) سره يوه داسې خبره اوشى چه دهغوى دِ شان سره برابره نه وى نوددې باره كښې دَاهل سنت والجماعت مذهب دادې چه تركومې ممكن وى دَهغې څه مناسب تاويل دې اوكړې شى اوكه چرې مناسب تاويل ممكن نه وى نودغه روايت ردكولوسره سكوت اختياروُل واجب دى اوطعن خو به باليقين ترك كولې شى. ځكه چه الله تعالى صحابه كرامو سره دَ مغفرت او جنت وعده كړې ده. (الناهية عن طعن معاوية، ص: ۶۶).

(۱) شرح الكرماني:۱۱۷/۳عمدة القاري:۲۹۷/۳إرشاد الساري:۴۹۳/۱.

(۲) تهذيب الأسماء واللغات:۱۴۶/۱شرح الكرماني:۱۱۷/۳ عمدة القاري:۲۹۷/۳.

(۳) الاستيعاب:۲۳۱/۱الإصابة:۲۲۵/۱ معرفة الصحابة:۴۳۱/۱التاريخ الكبير:۲۲۳/۲المعجم الكبير:۱۲/۲ تهذيب الأسماء:۱۴۶/۱ تاريخ الإسلام:۳۰۰/۲البداية والنهاية:۴۹/۸ الجرح والتعديل:۴۴۵/۲ الثقات:۵۰/۳ تهذيب التهذيب:۶۳/۲ إكمال تهذيب الكمال:۱۶۹/۳.

(۴) الاستيعاب:۲۳۱/۱الإصابة:۲۲۵/۱.

(۵) معرفة الصحابة:۴۳۱/۱.

(۶) تهذيب الكمال:۵۰۷/۴.

**شیوخ حدیث:** هغوی رضی الله عنه دَ حضوراقدس ﷺ نه نیغ په نیغه روایت دَ حدیث کوی.[1]

**تلامذه:** دَهغوی رضی الله عنه نه دَ حدیث روایت کونکوکښې ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف، سعیدبن مسیب، سلیمان بن صرد، ابوسروعه عقبه بن الحارث رضی الله عنهما، عبدالله بن باباه المخزومی، عبدالله بن ابی سلیمان، عبدالرحمن بن أذینه، علی بن رباح اللخمی، محمدطلحه بن یزید بن رکانه، یحیی بن عبدالرحمن بن حاطب، ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف، عبدالرحمن بن ازهر او دَهغوی ځامن محمدبن جبیر بن مطعم او نافع بن جبیر بن مطعم رحمهم الله شامل دی.[2]

**دَ روایاتو شمیر:** حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه ۶۰ احادیث نقل کړی دی. په دې کښې ۶ بخاری اومسلم دواړو نقل کړی دی. درې داسې دی کوم چه صرف امام بخاری رحمه الله نقل کړی دی. او امام مسلم رحمه الله دَ یو روایت نقل کولوکښې منفردې دې.[3]

**دَ ژوند حالات:** هغوی رضی الله عنه شریف اومطاع سړې وو. دَ هغوی رضی الله عنه شمیر دَ خپلې زمانې دَ قریشو شیوخوکښې کیدلو.[4] مصعب زبیری وائی چه جبیر بن مطعم رضی الله عنه حلیم او دَ قریشو دَ سردارانونه وو اوخلقو به دَهغوی نه دَ نسب باره کښې استفاده کوله.[5]

ابن اسحاق دَ یعقوب بن عتبه نه نقل کړی دی چه جبیربن مطعم رضی الله عنه په قریشو کښې دَ قریشو او ټولو اهل عرب انساب دَ ټولو نه زیات پیژندونکې وو هغه به فرمائیل چه ما دَ انساب علم دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه حاصل کړې دې او حضرت ابوبکر رضی الله عنه دَ ټولو نه زیات دَ نسبونو علم لرونکې وو.[6]

دَ زبیر بن بکار په روایت کښې دی چه کله دَحضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه په خدمت کښې دَ نعمان بن منذر توره راوړې شوه نوهغوی جبیر بن مطعم رضی الله عنه ته اوفرمائیل (جبیر بن مطعم دَ قریشو دَ نسب دَعلماؤ نه وو) چه تاسو به دَنعمان بن منذر کوم طرف ته نسب کولو؟ نو جبیر بن مطعم رضی الله عنه په جواب کښې اووئیل دَ قنص ابن معدطرف ته به مو نسب کولو.[7]

حضرت عمر رضی الله عنه دَ نعمان بن منذر توره حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه ته ورکړې وه.[8]

**دَ اسلام قبلول:** حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه کله اسلام راوړلې؟ په دې باره کښې مختلف اقوال نقل کړې شوی دی. ① رومبې قول دادې چه هغوی رضی الله عنه دَ فتح مکه په موقع باندې اسلام راوړې دې په دې وجه بعض حضراتو دهغوی شمیر په مؤلفة القلوب کښې کړې دې. دَ چا اسلام چه ښکلې شوې وو

---

[1]) تهذیب الکمال:۵۰۶/۴ تهذیب التهذیب:۶۴/۲.

[2])تهذیب الکمال:۵۰۷/۴سیرأعلام النبلاء:۹۶/۳-۹۵ الإصابة:۲۲۶/۱ معرفة الصحابة:۴۳۱/۱تهذیب التهذیب:۶۴/۲

[3]) تهذیب الأسماء واللغات:۱۴۶/۱شرح الکرمانی:۱۱۷/۳عمدة القاری:۲۹۷/۳.

[4]) سیرأعلام النبلاء:۹۵/۳.

[5]) الاستیعاب:۲۳۰/۱ البدایة والنهایة:۴۹/۸ أعلام النبلاء:۹۷/۳.

[6]) تهذیب الکمال:۵۰۸/۴ الاستیعاب:۲۳۰/۱ سیرأعلام النبلاء: ۹۷/۳.

[7]) سیرأعلام النبلاء:۹۷/۳ تهذیب الکمال:۵۰۹/۴-۵۰۸.

[8]) تهذیب الکمال:۵۰۹/۴ سیرأعلام النبلاء:۹۷/۳.

يعنى پوخ اوكامل ايمان ئې وو. دا قول ضعيف دې چه اكثرو حضراتو په قيل سره نقل كړې دې.[1] ② دويم قول دادې چه هغوى رضي الله عنه دَ فتح مكه نه وړاندې اسلام راوړې وو.[2] ③ دريم قول دادې چه هغوى رضي الله عنه دَ خيبر دَ واقعه نه مخكښې ايمان راوړلې وو.[3] ④ څلورم قول دادې چه هغوى رضي الله عنه دَ صلح حديبيه او فتح مكه په مينځ كښې اسلام راوړې.[4] ⑤ پنځم قول دادې چه هغوى دَ فتح خيبر په كال اسلام راوړې.[5]

**راجح قول:** پنځم قول راجح او اصح دې خكه چه په څلورم اوپنځم قول كښې څه تضاد نشته دې خكه چه ددواړو مقصد هم يو دې. هغه داسې چه څلورم قول دادې چه هغوى رضي الله عنه دَ صلح حديبيه او فتح مكه په مينځ كښې اسلام قبول كړې او پنځم قول دادې چه دَفتح خيبر والا په كال ئې اسلام قبول كړې. اودَفتح خيبر واقعه دَ صلح حديبيه او فتح مكه په مينځ كښې پيښه شوې ده. لهذا دَ پنځم قول په رڼاكښې دَ څلورم قول نتيجه هم هغه راوځي چه هغوى رضي الله عنه دَخيبر والا په كال اسلام قبول كړې وو. دويمه وجه دَ ترجيح دپنځم قول داده چه ابن كثير رحمه الله البداية والنهاية كښې دَ دې دَ اصح كيدو تصريح فرمائيلې ده.[6] والله اعلم بالصواب.

**دَأسارئ بدر واقعه:** حضرت جبيربن مطعم رضي الله عنه دَ اسلام راوړلونه مخكښې دَ حضورپاك په خدمت كښې دَ بدر دَ قيديانو دَ فديه په سلسله كښې راغلې وو. دا واقعه پخپله هم دَهغوى نه روايت ده. چنانچه حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه وائې: ما حضورپاك صحابه كرام رضي الله عنهم ته دَ مانبام يا دَ ماسخوتن مونځ وركولوسره اوليدلو. دَ حضورپاك دَقراءت آواز دَ جمات نه باهر راتللو. ما چه واوريده نو حضورپاك دا آيت تلاوت كولو ﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ﴾[7] حضرت جبير رضي الله عنه وائې لكه چه دې آيت زما په زړه باندې پرتې دَ كفر پردې لرې كړې. يو روايت كښې دى ((فأخذني من قراءته كالكرب))[8] يعنى دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم قراءت زه بې آرامه كړم او په ما ئې څه چل اوكړو. بعض رواياتو كښې سورت طور اودَې دَ شروع آيات ﴿وَالطُّورِ ۙ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ۙ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ﴾[9] دَ لوستلو تذكره راغلې ده.[10]

---

[1] الاستيعاب:۱/۲۳۱-۲۳۰ الإصابة ۱/۲۲۶ البداية والنهاية:۸/۴۹ سيرأعلام النبلاء:۳/۹۵ تهذيب ا لكمال:۴/۵۰۶ إكمال تهذيب الكمال:۳/۱۶۹ الثقات:۳/۵۰ تهذيب التهذيب خ:۲/۶۴.

[2] الإصابة:۱/۲۲۶.

[3] تهذيب الكمال:۴/۵۰۶تهذيب الأسماء واللغات:۱/۱۶۹.

[4] الإصابة:۱/۲۲۶معرفة الصحابة:۱/۴۳۱إكمال تهذيب الكمال:۳/۱۶۹.

[5] الاستيعاب:۱/۲۳۰البداية والنهاية:۸/۴۹ تهذيب التهذيب:۲/۶۴.

[6] البداية والنهاية:۸/۴۹.

[7] الطور:۷ بيشكه عذاب ستا دَ رب به كيږى.(ترجمه شيخ الهند رحمه الله)

[8] سيرأعلام النبلاء:۳/۹۶ المعجم الكبير للطبرانى:۲/۱۱۶ رقم:۱۴۹۸.

[9] سورت طور:۳-۱ قسم دې دَ طور اودَ ليكلى شوى كتاب په كولاؤ پاڼړو كښې.(ترجمه شيخ الهند رحمه الله)

[10] المعجم الكبير للطبرانى:۲/۱۱۶-۱۱۵ رقم: ۱۵۰۱-۱۴۹۱.

په يوبل روايت كښې دَحضرت جبير رضي الله عنه نه دانقل دی چه ما حضورپاك نه دا آيت تلاوت كولوسره واؤريدو ﴿ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ۝ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ۝ ﴾ [1]
حضرت جبير رضي الله عنه وائي دَدې آيت په اوريدو سره نيزدې وه چه زما زړه الوتې وې. يعنې دَ آيت او رسول الله ﷺ دَ قراءت په تاثيرسره په زړه كښې يو دَ بې آرامئ كيفيت پيدا شو او نيزدې وه چه زړه مې دَ كفر څادر شلولې وې او بهر راوتلې وې. دَ بخاری شريف په روايت كښې دی «وذلك أول ما وقر الإيمان في قلبي» يعنې په رومبی ځل زما په زړه كښې اسلام په دې موقع داخل شوې وو. [2]
حضرت جبير رضي الله عنه وائي چه كله رسول الله ﷺ مونځ وركولونه فارغ شو نوما دَ حضورپاك ته دَ أسارىٰ (قيديانو) دَ بدر باره كښې درخواست اوكړو(چه دوی په فديه اخستو سره خلاص كړی) حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو كه چرې ستا پلار ژوندې وې اوهغه ما سره دَدوی باره كښې خبره كړې وی نوما به دَهغه سفارش قبلولو. بعض رواياتوكښې دی چه حضورپاك اوفرمائيل كه چرې ستا پلار ژوندې وې يا مطعم بن عدی ژوندې وې اوهغه ماسره دَ كفردَ گندگئی نه ډكو دې خلقو باره كښې خبره كړې وی نوما به دَ هغوی دَ خاطره دوی آزادول.

**دَ مطعم بن عدی احسانات:** حضوراكرم دَ هغه دَ پلار مطعم بن عدی باره كښې دَ دې خيالاتو اظهارځكه اوكړو چه دَ مطعم په حضورپاك باندې څه احسانات وو. هغه دَ نورو كفار قريشو په شان حضورپاك اودَهغوی صحابه كرامو ته تكليفونه اوسزاگانې نه وې وركړې. مطعم بن عدی دَ اشراف قريش نه وو اودَ نسب عالم هم وو.
حضورپاك ﷺ طائف كښې بنوثقيف ته دَ دين حنيف دعوت وركولودَپاره تشريف يوړو اودَ اهل طائف شريرَ او بدمعاشانو هلكانو دَ لاسه زخمی شو واپس راغلو نوحضورپاك ته مطعم بن عدی پناه وركړه او حضورپاك په تسلئی سره عمره اداكړه. دغه شان قريشو چه كله دَ حضورپاك اودَهغوی دَ صحابه كرامو سره مقاطعه او بائيكاټ اوكړو اوحضورپاك ئې په شعب ابی طالب كښې په پناه اخستو باندې مجبوركړو او په دې باره كښې ئې يوه معاهده اوليكله او په بيت الله كښې ئې زوړندكړه نومطعم بن عدی هم دَ هغه خلقو نه وو چه دا كاغذ ئې راكوز كړو او وئې شلولو اودَ مقاطعه دَ ختمولو اعلان ئې اوكړو په كوم سره چه هغه مقاطعه او بائيكاټ ختم شو.مطعم بن عدی دَ واقعه بدر نه اووه مياشتې وړاندې صفر ۲ هجری كښې دَ كفر اوشرك په حالت كښې انتقال شو. هغه وخت دَهغه عمر ۹۰كال نه زيات وو. په مكه مكرمه كښې په جحون نومې ځائی كښې دَ اهل مكه په قبرستان كښې خښ شو. [3] ابوالحجاج مزی رحمه الله فرمائی دَ هجرت نه يوكال پس دَهغه انتقال شوې. [4]

---

[1]) سورت طور: ۳۶-۳۵آيا هغه جوړ شوې دې خپل په خپله هم هغه ياهم هغه دی جوړونكې يا هغه جوړكړل آسمانونه اوزمكې، هيڅوك نشته ولې هغوی يقين نه كوی.(ترجمه شيخ الهند رحمه الله).
[2]) رواه البخاري في كتاب المغازي باب رقم:۴۰۲۳ وفي كتاب التفسير، سورة الطور رقم:۴۸۵۴ ويتكرر أيضاً رقم:۷۶۵، ۳۰۵۰ الإصابة:۲۲۶/۱ البداية والنهاية:۴۹/۸.
[3])دَدې پوره واقعه دَتفصيلاتودَپاره اوګورئی: الاستيعاب:۲۳۱/۱-۲۳۰ الإصابة:۲۲۶/۱ البداية والنهاية:۴۹/ المعجم الكبير:۱۱۸/۲-۱۱۴ تهذيب الكمال: ۵۰۸/۴-۵۰۷ سير أعلام النبلاء:۹۸/۳، ۹۵.
[4]) تهذيب الكمال:۵۰۸/۴.

حضرت جبير بن معطم رضي الله عنه ته دا عزت هم حاصل دې چه هغوی دَ دريم خليفه شهيد مظلوم او شهيد قرآن حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه خښونكوكښې شامل وو اوهم هغوی دَ حضرت عثمان رضي الله عنه جنازه كړې وه.(١)

**عهدې اومناصب:** ابواحمدعسكرى رحمه الله وائي حضرت جبير رضي الله عنه په هغه خلقوكښې ووځوك چه به خلقو حَكم جوړول. حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه اوحضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه په خپله څه مسئله كښې هغوی رضي الله عنه حَكم جوړ كړې وو.(٢)

خليفه بن خياط حضرت جبير رضي الله عنه دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ طرف نه دَ كوفه په ګورنرانوكښې شمير كړې دې. حضرت عمر رضي الله عنه هغه دَحضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه اول دَ كوفې ګورنرجوړكړې وو.(٣)

**وفات:** دَهغوی رضي الله عنه دَ وفات په كال كښې اختلاف دې. امام نووى رحمه الله ۵۴ هجرى نقل كړې دې.(٤)حافظ ابن حجر رحمه الله الاصابة كښې ۵۷، ۵۸ او ۵۹ هجرى درېواړه "او" سره نقل كړې دى.(٥) ابواحمد عسكرى رحمه الله ۵۶ هجرى نقل كړې دې.(٦)

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي چه حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه په مدينه منوره كښې ۵۷هجرى كښې وفات شوې اوپه قيل سره ئې نقل كړې دې چه دَحضرت معاويه رضي الله عنه دَ خلافت په دوركښې ۵۹هجرى كښې انتقال شوې. (٧) محمدبن سعد رحمه الله الطبقات الكبيركښې دغه پورتنې قول نقل كړې دې مګر دَ وفات كال ئې نه دې نقل كړې. (٨)

ابن حبان رحمه الله په قيل سره نقل كړې دى چه حضرت جبير رضي الله عنه او رافع بن خديج رضي الله عنه هم په يوه ورځ انتقال شوې وو او رافع بن خديج رضي الله عنه باره كښې ئې اووئيل چه دَهغه ۷۳ يا ۷۴ هجرى كښې انتقال شوې وو.(٩) مدائنى رحمه الله وائي ۵۸هجرى كښې وفات شوې.(١٠)

ابن كثير رحمه الله فرمائي مشهور دادى چه حضرت جبير ۵۸هجرى كښې وفات شوې او قيل سره ۵۹هجرى قول هم نقل كړې دې.(١١)

علامه مزى رحمه الله او ابن حبان رحمه الله دَ وفات كال ۵۹هجرى نقل كړې دې. هم دغه قول دَ خليفه بن خياط، هيثم بن عدى او ابن قتيبه هم دې.(١)

---

(١) تهذيب الكمال:۵۰۷/۴.
(٢) إكمال تهذيب الكمال:۱۶۹/۳ تهذيب التهذيب:۶۴/۲
(٣) سير أعلام النبلاء:۹۷/۳.
(٤) تهذيب الأسماء واللغات:۱۴۷/۱.
(٥) الإصابة:۲۲۶/۱.
(٦) تهذيب التهذيب:۶۴/۲إكمال تهذيب الكمال:۱۶۹/۳.
(٧) الاستيعاب:۲۳۱/۱.
(٨) إكمال تهذيب الكمال:۱۷۰/۳.
(٩) كتاب الثقات: ۵۰/۳إكمال تهذيب الكمال:۱۷۰/۳.
(١٠) تهذيب الكمال:۵۰۹/۴ سير أعلام النبلاء:۹۹/۳.
(١١) البداية والنهاية:۴۹/۸.

## شرح حديث

**قوله: : قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: أما أنا فأفيض على رأسي ثلاثاً**: يعني حضرت جبير رضي الله عنه وائي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو زه خو په (غسل كښې په خپل سرباندې درې لپه (اوبه) بهيوم.

**قوله: : أمّا**: لفظ أمّا دَهمزه فتحه او ميم په تشديدسره دَحروف شرط نه دې. كله دَتفصيل اوكله دَتاكيدپاره استعماليږي. أمّا حرف شرط او فعل شرط په ځائې باندې وى. دې نه پس جواب شرط ذكر كيږي. دَ دواړو په مينځ كښې دَ ربط دَپاره په جواب شرط باندې فاء جزائيه لازميږي لكه "أما أنا فلا أقول غيرالحق" په اصل كښې "مهما يكن من شيئ: فلا أقول غيرالحق" وو "مهما يكن من شيئ" حذف كولوسره أمّا دَهغې په ځائې جوړكړې شو. دَ أمّا تفصيليه مثال ﴿فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ ۝ وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ ۝ وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۝﴾ [2] كه چرې په كلام كښې تاكيد مقصودوى اودَ يوكار لا محال بيانول وى نو بيا أمّا تاكيدپه راوړلې شى لكه "أما خالد فشجاع" [3]

**فأفيض**: أفيض دَهمزه ضمه سره باب دَ افعال نه الافاضة نه واحد متكلم صيغه ده. اوبوبهيولوته وائى. [4]

دَ الإفاضة تحقيق كتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل دَ رومبى حديث لاندې "ثم يفيض الماء على جسده كله" لاندې تيرشوې دې.

**دَ "أما" قسم سره متعلق يوبحث**: علامه كرمانى رحمه الله وغيره په دې موقع باندې يواعتراض نقل كړې دې چه كه څوك اووائى "أما" خودَتفصيل بيانولودَپاره راوړلې شى نودَدې قسيم اومقابل چرته دې؟ [5]

**دَعلامه كرمانى رحمه الله جواب**: علامه كرمانى رحمه الله دَ اعتراض كولونه پس دَدې په جواب كښې فرمائيلى دى چه "أمّا" هروخت دَقسيم تقاضا اوكړى دا ضرورى نه ده اوكه چرې مونږ دا اومنو چه "أمّا" دَپاره قسيم كيدل ضرورى دى نوبيا دلته قسيم محذوف دې. سياق په دې باندې دلالت كوى.

امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح كښې (جبير بن مطعم رضي الله عنه نه نقل كړى دى. "أن الصحابة تماروا في صفة الغسل عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال صلى الله عليه وسلم: "أما أنا فأفيض (أي) وأما غيري فلا يفيض أوفلا

---

[1]) تهذيب الكمال:۵۰۹/٤ كتاب الثقات:۵۰/۳سير أعلام النبلاء:۹۹/۳تهذيب التهذيب:٦٤/۲تهذيب الأسماء واللغات:۱٤۷/۱.

[2]) الضحى:۹—۱۱ ترجمه: پس چه څوك څه يتيم وى هغه مه رټه اوڅه چه غوارى هغه مه رټه او كوم چه احسان دې ستادَ رب پس بيان ئې كړه.

[3]) جامع الدروس العربية:۱۹۵/۳ارشاد السارى:٤۹۳/۱ شرح ابن عقيل:۵۲/٤شرح الرضى على الكافية:۵۰٤/٤ أوضح المسالك ألى ألفية ابن مالك:۲۱۰/٤-۲۰۹مغنى اللبيب عن كتب الأعاريب:۱۱۸/۱-۱۱۷.

[4]) شرح الكرمانى:۱۱۷/۳فتح البارى:٤۸٤/۲عمدة القارى:۲۹۸/۳أرشاد السارى:٤۹۳/۱ تحفة البارى:۲۲۱/۱.

[5]) شرح الكرمانى:۱۱۷/۳ عمدة القارى:۲۹۸/۳.

أعلم حاله کیف یعمل ونحوه....". (۱) یعنی دَحضرات صحابه کرامو ﷺ په مینځ کښې دَحضورپاك په مجلس کښې دَ غسل دَ صفت باره کښې بحث اوشو. نوحضورپاك اوفرمائیل زه خو په غسل کښې په خپل سر باندې درې لپې اوبه بهیوم. (یعنی) باقی پاتې شوه خبره زما نه علاوه خلقو، یاخوهغوی اوبه نه بهیوی یا ماته نه ده معلومه چه هغوی څنګه غسل کوی... تقدیری عبارت به داسې شی: مهمایکن من شئی فأناأفیض ثلاثاأی ذلك حاصل علی جمیع التقدیرات. (۲)

یعنی چه څه هم وی (که هریواحتمال واخستې شی) زه په غسل کښې په خپل سرباندې درې لپې اوبه بهیوم. حافظ ابن حجر رحمه الله او شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله اوعلامه کورانی رحمه الله دَ څه کمی زیاتی سره دغه پورتنئ جواب نقل کړې دې. (۳)

**دَعلامه عینی رحمه الله تحقیق:** علامه عینی رحمه الله دَدې اعتراض په جواب کښې دَعلامه کرمانی رحمه الله وغیره ذکرکړې شوې توجیه ردکړې ده چه دلته دَ أما قسیم محذوف دې کوم چه دَ صحیح مسلم په روایت کښې ذکر دې. دَ علامه عینی رحمه الله تحقیق په دې باره کښې دادې چه أمّا دلته په حدیث کښې دَ تاکیدد‌پاره دې نه چه دَتفصیل دپاره، لهذا نه دَ قسیم څه ضرورت شته اونه دَ دې محذوف منلو څه حاجت شته. ددې تفصیل دادې چه أمّا دَهمزه فتحه او میم په تشدیدسره حرف شرط دې. کله دَتفصیل اوکله دَتاکید دپاره راوړلې شی. دَ شرط دپاره دَ استعمالیدلو دلیل دادې چه کوم ځائی دَ شرط دپاره راځی هلته به دَدې نه پس فاء جزائیه لازمًا راځی لکه﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ﴾ (۴) (په مثال کښې أمّا دَ شرط دپاره دې په دې وجه دَ دې په جزا باندې فاء راوړلې شوې ده).

کله أمّا دَ تفصیل دپاره راځی لکه ﴿أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ.......وَأَمَّا الْغُلَامُ......وَأَمَّا الْجِدَارُ﴾ (۵).

(دې آیاتونوکښې أمّا دَ تفصیل دپاره دې) اوکله أمّا صرف دَ تاکیددپاره راځی علامه زمخشری دا ذکر کړې دې هغه وائی چه دَ أمّا فائده په کلام کښې داده چه تاسو دادَ تاکید دپاره واخلئ لکه زید ذاهب کښې که چرې تاسو دَدې خبرې اراده کوئی چه زید به لامحال ځی اوهم دَدې په اهتمام کښې لګیان دې اوداهغه پوخ عزم او اراده د ه نوتاسو دَ دغه تاکید دَښکاره کولودپاره به أمّا راوړئی اوداسې به وایئی أمّا زید فذاهب.

---

(۱) تمام الحدیث ولفظه: عن جبیر بن مطعم قال: تماروا فی الغسل عند رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال بعض القوم: أما أنا، فإنی أغسل رأسی کذا وکذا، فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: "أما أنا فإنی أفیض علی رأسی ثلاث أکف" الصحیح للإمام مسلم، کتاب الحیض، باب استحباب إفاضة الماء علی الرأس وغیره ثلاثاً، رقم: ۷۴۰ (۳۲۷)

(۲) شرح الکرمانی:۳/۱۱۷عمدة القاری:۳/۲۹۸.

(۳) فتح الباری للعسقلانی:۲/۴۸۴تحفة الباری:۱/۲۲۱إرشادالساری:۱/۴۹۳الکوثر الجاری للکورانی:۱/۴۱۲.

(۴) البقرة:۲۶،ترجمه: نوچه کوم خلق مؤمنان دی هغوی یقینًا پیژنی چه دا مثال ټیک دې. (ترجمه: ازشیخ الهند رحمه الله).

(۵) الکهف:۸۰-۷۹ ترجمه: هغه چه کومه کشتئ وه نود یوڅو محتاجانو چه کوم محنت ئې کولو په دریاب کښې..... اوهغه کوم هلك چه وو نودَهغه مور پلار وو ایمان والا...... اوهغه کوم دیوال چه وو دَ دوو یتیمانو هلکانو وو. (ترجمه: از شیخ الهند رحمه الله)

دغه شان په حديث باب كښې هم أما صرف دتاكيد دپاره دې اومقصد هم د دې خبرې تاكيد دې چه حضورپاك به په غسل كښې په سرمبارك باندې درې لپې اوبه اچولې لهذا دلته دقسيم هيڅ حاجت نشته او نه ددې خبرې ضرورت دې چه داسې اوونيلې شي چه دلته قسيم محذوف دې.(١)

**په علامه كرمانى رحمه الله او علامه ابن حجر رحمه الله دعلامه عينى رحمه الله رد:** علامه كرمانى رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله وغيره أماتفصيليه منلوسره دمسلم شريف روايت ددې دپاره په توګه د قسيم محذوف ګنړلې وو نوعلامه عينى رحمه الله يو خودا اوخودل چه دلته أمّا د تاكيد د پاره دې او دويم ئې دااوخودل چه په مسلم شريف كښې د ابوالاحوص عن ابى إسحاق په طريق سره كوم روايت ذكردې چه «تماروافى الغسل عندالنبى صلى الله عليه وسلم فقال بعض القوم: أما أنا فأغسل رأسى بكذا وكذا....» بعض حضراتو علامه كرمانى رحمه الله او ابن حجر رحمه الله وئيلى دى چه داحديث دباب د قسيم محذوف دې.

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د مسلم شريف دا روايت د قسيم محذوف منلو هيڅ حاجت نشته دې ځكه چه دا ضرورى ده چه هركلام ته دهغې دمقتضاء حال مطابق د هغې حق وركړې شي. (يعنى هغه هم په هغه ځائې كيخودې شي او دهغې تشريح هم دهغې د مقام د مقتضى مطابق اوكړې شي) لهذا ددې خبرې په رڼاكښې ددې ځيز هيڅ حاجت او ضرورت نشته دې چه دحديث باب دپاره دمسلم شريف د روايت نه څه ځيز محذوف اومقدر اومنلې شي. (٢)

**ثلاثا:** د ثلاثًا نه "ثلاث أكف" (درې لپې) مراد دى. (٣)

دمسلم شريف په روايت كښې "ثلاث أكف" تصريح ده.(٤)مطلب دا شو چه درې لپې، هره لپه په دواړو لاسونوسره ډك بهيول وى. (٥)

**په دواړو لاسونو د لپې ډكولو دليل:** هريولپه په دواړو لاسونو باندې د ډكولودليل يوخو د امام احمد رحمه الله روايت دې. «فأخذ ملء كفى ثلاثاً، فأصب على رأسى»(٦) يعنى زه دواړه لاسونه ډك كړم درې ځل اوبه اخلم او په خپل سرباندې بهيوم. د امام احمد رحمه الله په دويم روايت كښې كوم چه د حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه نقل دې «كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصب بيديه على رأسه ثلاثاً» (٧)يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم به په خپل لاس مبارك سره په خپل سر باندې درې ځل اوبه بهيولې.دحضرت جابر رضى الله عنه په روايت كښې دى «كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصب بيديه على رأسه ثلاثاً» (٨)يعنى رسول الله صلى الله عليه وسلم به په خپلو دواړو لاسونو مباركو سره په خپل سرباندې درې ځل اوبه بهيولې.

---

(١) عمدة القارى:۲۹۸/۳أرشاد السارى:۴۹۳/۱.

(٢) عمدة القارى:۲۹۸/۳.

(٣) عمدة القارى:۲۹۸/۳الكوثر الجارى:۴۱۲/۱إرشادالسارى: ۴۹۳/۱.

(٤) الحديث رواه مسلم فى صحيحه كتاب الحيض باب ا ستحباب إفاضة الماء على الرأس وغيره ثلاثاً رقم :۳۲۷."ثلاث أكف"

(٥) عمدة القارى:۲۹۸/۳إرشادالسارى:۴۹۳/۱ الكوثر الجارى:۴۱۲/۱ المنهاج للإمام النووى: ۲۳۴/۴.

(٦) مسندأحمد بن حنبل، مسند جبير بن مطعم رضى الله عنه: ۷۲۸/۵ رقم:۱۶۸۷۰ عمدة القارى:۲۹۸/۳ فتح البارى لابن رجب الحنبلى:۱۴۸/۱.

(٧) مسند الإمام أحمد بن حنبل مسند أبى هريرة رضى الله عنه: ۷۷/۵رقم الحديث: ۷۴۱۲.

(٨) مسندالإمام أحمد بن حنبل، مسند جابر بن عبدالله الأنصارى رضى الله عنه:۶۷/۳رقم الحديث:۱۴۴۸۳.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې ثلاثًا لفظ په دې خبره باندې دلالت کوی چه په صحابه کرامو کښې بعضو دا اوونیل «فإنی أغسل رأسی کذا وکذا» نوهغوی دَ دریو ځلو نه زیاتې اوبه بهیول مراد اخستل (۱)

**دَ رسول الله ﷺ نه سوال کونکی څوک وو؟** دَ حضورپاک نه په دې باره کښې سوال کونکی دَ وفد ثقیف خلق وو لکه چه دَمسلم شریف وغیره په روایت کښې دی «أن وفد ثقیف سألوا النبی صلی الله علیه وسلم..... فقال: أما أنا فأفرغ علی رأسی ثلاثًا» (۲) یعنی دَ ثقیف وفد دَحضورپاک ﷺ نه په غسل کښې په سرباندې دَ اوبو بهیولو باره کښې سوال اوکړو نوحضورپاک ورته اوفرمائیل زه خو په خپل سرباندې درې ځل اوبه بهیوم. دَطبرانی په مرفوع روایت کښې دی «ثم تفرغ علی رأسك ثلاث مرات تدلك رأسك كل مرة» (۳) یعنی بیا تاسو په خپل سرباندې درې ځل اوبه اوبیهوئی او دَ هرځل اوبو بهیولوسره خپل سر مږئی.

**دَ ثلاثًا نه تکرار مراد دی که استیعاب؟** حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه په ثلاثاً کښې دوه احتماله دی یاخودَې نه تکرار مراد دې یا په ټول بدن باندې اوبه بهیول مرا دی. لیکن هم دَدې باب په آخره کښې دَحضرت جابر رضی الله عنه دَ روایت نه مخکښې احتمال قوی کوی. (۴)

علامه عینی رحمه الله سابق کښې تیرشوی دَ مسنداحمد او طبرانی روایات ذکرکولونه پس فرمائی چه په دې احادیثو سره دَحافظ ابن حجر رحمه الله هغه قول ساقط کیږی چه ثلاثًا کښې دوه احتمال دی. (۵) ځکه چه دَدې احادیثونه معلومیږی چه مقصد په سرباندې اوبه بهیول دی په دې کښې دویم بل هیڅ احتمال نشته دې.

**قوله ::وأشار بیدیه:** او حضورپاک په خپلو دواړو لاسونو سره اشاره کولو کښې لپې جوړول اوخودل. دادَ حضرت جبیر رضی الله عنه کلام دې دَ أشار فاعل حضورپاک دې. (۶) په دې سره دَدې خبرې تائید کیږی چه هر یولپه به ئی په دواړو لاسونو سره ډك بهیولو. (۷)

**قوله ::کلتیهما:** دَ اکثرو حضراتو په روایت کښې کلتیهما دې. دَ کشمیهنی په روایت کښې کلاهما دې او ابن التین په روایت کښې کلتاهما نقل کړې دې. (۸)

---

(۱) فتح الباری: ۲/ ۴۸۴.

(۲) صحیح مسلم کتاب الحیض باب أستحباب إفاضة الماء علی رأس وغیره ثلاثًا رقم: ۳۳۰ فتح الباری: ۲/ ۴۸۴ عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹.

(۳) إتحاف الخیرة المهرة، کتاب الحیض: ۱/ ۴۰۲ رقم ۳/۷۳۰ دارالوطن، الریاض الطبعة الأولی ۱۴۲۰هجری عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹

(۴) فتح الباری: ۲/ ۴۸۴.

(۵) عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹.

(۶) شرح الکرمانی: ۳/ ۱۱۷ عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹ إرشاد الساری: ۱/ ۴۹۳.

(۷) عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹.

(۸) شرح الکرمانی: ۳/ ۱۱۸-۱۱۷ فتح الباری: ۲/ ۴۸۴ تحفة الباری: ۱/ ۲۲۱ عمدة القاری: ۳/ ۲۹۹ إرشادالساری: ۱/ ۴۹۳ الکوثر الجاری: ۱/ ۴۱۲ التوشیح: ۱/ ۲۴۴،

دكلتيهما راوړلو وجه داده چه په يديه كښې يدين تثنيه مؤنث دې. په دې وجه دتاكيد كلتاسره راوړلې شو دكوم حالت جرى ياء سره چه راځى. دَجمهورو نحويانو هم دغه مذهب دې.(١) دَ كشميهنى په روايت كښې كلاهما دې چونكه يدين لفظ مذكر دې په دې وجه دَ لفظ رعايت كولوسره كلا راوړلې شو.(٢) دَ ابن التين په روايت كښې كلتاهما دې يدين چونكه معنًا مؤنث دى نو په دې اعتبارسره كلتا راوړلې شوې دې.

**دكلاهما او كلتيهما دَ مرفوع كيدو دوميې وجه:** باقى پاتې شوه خبره دَ كشميهنى او ابن التين دَ روايت كلاهما او كلتاهما مرفوع راوړل، نودا دَ بنو حارث بنوخثعم بنو زيد بنوكنانه او بنو هجيم وغيره دَ مذهب مطابق دې. دَدې حضراتو په نيزدَ تثنيه اعراب په دريواړو حالتونو رفع نصب اوجر كښې الف سره راځى.(٣)

لكه څنګه چه دَ شاعر په دې قول كښې دى:

**إن أباها وأبا أباها قد بلغا فى المجد غايتاها** (٤)

**ترجمه:** بيشكه دَ هغه پلار اونيكه يقينًا دواړه په عزت كښې دَهغې انتهاء ته رسيدلى دى.

په دې شعركښې دَ تثنيه **غايتاها** حالت نصبى الف سره راوړلې شوې دې.

**دويمه وجه:** دَ كشميهنى او ابن التين په روايت كښې كلاهما اوكلتاهما دَمرفوع كيدو يوه بله وجه دا هم بيان كړې شوې ده چه كلاهما اوكلتاهما (على تقدير اللفظ والمعنى) ما قبل نه قطع كولوسره مستقل جمله اومنلې شى. دا مبتداء جوړولوسره خبر محذوف راواوبستلې شى نو تقديرى عبارت به داسې شى: **كلاهما يا كلتاهما مشارٌ بهما.** (٥)

**فائده:** صاحب مغني اللبيب ابن هشام انصارى رحمه الله وغيره كلاوكلتا دَ بحث په ذيل كښې دَدې خبرې وضاحت كړې دې چه كلا دَماقبل دَپاره تاكيدهم جوړولې شى اودَماقبل نه منقطع كولوسره مبتداء هم جوړولې شى. (٦)

---

(١) شرح الرضى على الكافية:١/٨٠-٧٤،٧٩ شرح الأشمونى:١/٥٨ شرح ابن عقيل:١/٥٨ أوضع المسالك:١/٤٧شرح قطرالندى ص:٦٥ شرح شذور الذهب ص:٥٢-٥١.

(٢) تحفة البارى:١/٢٢١عمدة القارى:٣/٢٩٩ إرشادالسارى:١/٤٩٣ التوشيح:١/٢٤٤.

(٣) شرح الأشمونى:١/٥٨شرح ابن عقيل:١/٥٨ شرح شذور الذهب ص:٥٤ شرح الكرمانى:٣/١١٨ فتح البارى:٢/٤٨٤ تحفة البارى:١/٢٢١ إرشاد السارى:١/٤٩٣ الكوثر الجارى:١/٤١٢ التوضيح لابن الملقن:٤/٥٥٨.

(٤) الرجز لؤبة فى ملحق ديوانه ص:١٦٨ وله أولأبى النجم فى الدرر:١/١٠٦ شرح التصريح:١/٦٥ شرح شواهدالمغنى:١/١٢٧، ٢/٥٨٥ المقاصدالنحوية:١/١٣٣، ٣/٦٣٦ وله أو لرجل من بنى الحارث فى خزانة الأدب:٧/٤٥٣،٤٥٥، ٤/١٠٥ أسرار العربية:ص٤٦ الإنصاف ص:١٨أوضح المسالك:١/١٤٦،١٤٤ تلخيص الشواهد ص:٥٨ رصف المبانى ص:٢٤،٢٣٦ سرصناعة الاعراب:٢/٧٠٥ شرح الأشمونى:١/٢٩ شرح ابن عقيل ص:٣٣ شرح المفصل:١/٥٢ مغنى اللبيب:١/٣٨همع الهوامع:١/٣٩.

(٥) فتح البارى:٢/٤٨٤ التوشيح:١/٢٤٤.

(٦) مغنى اللبيب:١/٤٠٤ جامع الدروس العربية:٢/١٦١.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه ترجمة الباب کښې په سربانديې درې ځل اوبو بهيولو ذکر دې او په حديث کښې فأفيض على رأسي ثلاثاً صراحت موجود دې په کوم سره چه ترجمه ثابتيږي.(١)

**علمی مناظره اومباحثه:** دَمسلم شريف په روايت کښې «**تماروا في الغسل عند رسول الله صلى الله عليه وسلم**» الفاظ راغلی دی (٢)يعنی دَحضورپاك په مجلس کښې دَ حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم په مينځ کښې دَ صفت غسل باره کښې مباحثه او مناظره اوشوه. چا اووئيل چه په دومره دومره اوبوسره غسل کوم اوچا په کښې اووئيل زه داسې غسل کوم. امام نووی رحمه الله دَدې په ذيل کښې ليکلی دی: «**فيه جواز المناظرة والمباحثة في العلم، وفيه جواز مناظرة المفضولين بحضرة الفاضل، ومناظرة الأصحاب بحضرة إمامهم وكبيرهم**»(٣) يعنې دَ دې حديث نه په علمی مسائلوکښې مناظره او مباحثه جواز معلوميږي اوداهم معلوميږي چه دَ ائمه اکابر او په مرتبه کښې دَاوچتو خلقو دَ مجلس په موجودګئ کښې کشران شاګردان اودغوی ملګری خپل مينځ کښې علمی مناظره او مباحثه کولې شي.

**دَمناظره دَ فن ضرورت اواهميت:** دَ احقاق حق او دَ ابطال دَ باطل کولودپاره دَ غيرمسلم او اسلام دَ دښمنانو بې بنيادہ اعتراضونو جوابونه اودَ بې ځايه شکونواوشبهاتو دَ ختمولودپاره اکثر دَمناظره ضرورت پيښيږي. دَ مناظره دَ فن مقصد هم دَ حق دفاع اوقيام اودَ باطل جواب او نزول دی. دا پخوانې اوعالمانه طريقه ده دې سره مناسبت لرونکی أصحاب علم باندې دَحق دَ معرفت لارې آسانيږي. مناظره نه صرف شرعاً محمود ده بلکه مطلوب هم ده.

په افکار اونظريات کښې اضافه اودَمعاملاتو دکثرت دَ وجې نه ورځ په ورځ دَترقئ دَ وجې نه په علمی مسائلوکښې زياتوالې کيږي. بيا دَ طبيعتونو او ذهنونو دَ فرق دَ فطری قانون لاندې دَمختلفو فکرونو او رائې ګانو مرکز جوړيدل يوه کيدونکې خبره ده. په داسې حالاتوکښې چه په مختلفو فرقوکښې بحث مباحثه وی نو ضروری دی چه داسې قانون جوړشی دَ کوم په ذريعه چه په مردود کيدو او مقبول کيدو کښې فرق اوکړې شی.(٤)

علامه ابن خلدون رحمه الله په مقدمه کښې ليکلې دی چه دَ دې علم په تعارف کښې وئيلی شی چه دا علم دَ استدلال قواعد يعنی دَ داسې تعريفونو او آدابو دَ پيژندلو نوم دې په کوم سره چه دَ يورائې او نظريه حفاظت يا ماتيدل يعنی تائيد او ترديد کار اخستلې شی که دَ دې تعلق دَ فقه سره وی اويا بل يوفن سره وی.(٥)

---

(١) عمدة القاری:٢٩٧/٣ فضل الباری:٤٣١/٢.

(٢) الحديث رواه مسلم في صحيحه، كتاب الحيض، باب استحباب إفاضة الماء على الرأس وغيره ثلاثاً رقم: ٧٤٠ (٣٢٧).

(٣) المنهاج للنووی:٢٣٤/٤.

(٤) كشف الظنون عن أسامي الكتب والفنون ص:٣٩-٣٨.

(٥) مقدمة ابن خلدون ص:٥٧٩دارالفكر بيروت.

علماؤ ليكلى دى چه مناظره هغې ته وائى چه دَحق دَ واضح كولو په جذبه سره داسې بحث مباحثه كول چه هر فريق خپل موقف صحيح اودَ بل موقف غلط ثابتولو كوشش اوكړى.[۱]

**دَمناظره مشروعيت:** قرآن كريم كښې دَالله تعالى ارشاد مبارك دې ﴿ اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ﴾ [۲].

دَدې آيت مبارك په تفسيركښې علامه ابن كثير رحمه الله ليكلى: «أي من احتاج منهم إلى مناظرة وجدال، فليكن بالوجه الحسن برفق ولين، وأحسن خطاب»[۳] يعنى كوم دَحق داعى ته چه دَ بحث اومباحثه ضرورت پيښ شى نوهغه له پكاردى چه هغه دې دا فريضه په ښه طريقه نرمئى او ښكلى خطاب سره سر ته اورسوى.

دَحضرت انس رضى الله عنه نه روايت دې چه حضورپاك صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى «جاهدوا المشركين بأموالكم وأنفسكم وألسنتكم»[۴]

علامه ابن حزم رحمه الله فرمائى چه داحديث دَ صحت آخر ته رسيدلې دې په دې كښې مناظره دَ جانى اومالى جهاد په شان واجب گرځولې شوې ده.[۵]

پخپله حضورپاك دَ مكې كافرانوسره اودَ نجران نصاراؤ سره مناظره كړې ده دكومې نه پس چه دَ سورت آل عمران دَ شروع آياتونه نازل شو.

علامه ابن عبدالبر رحمه الله په جامع بيان العلم وفضله كښې باب إتيان المناظرة والمجادلة وإقامة الحجة په عنوان سره باب قائم كړې دې. په كوم كښې چه په قرآن اوحديث دَ صحابه رضى الله عنهم اواسلافو نه دَ مناظره دَ جواز دلائل او واقعات نقل كړى دى. په دې موضوع باندې دَ تفصيل دپاره دَهغې مطالعه به فائده مند وى.[۶]

**دَ امام ابوحنيفه رحمه الله دَ يو رافضى سره مناظره:** چونكه دَ مناظره سره متعلق بحث شروع دې په دې وجه په دې مناسبت سره حضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله يورافضى سره يو زړه راښكونكې مناظرانه خبرې اترې پيش خدمت دى:

په كوفه كښې يو رافضى سړې اوسيدلو چه دَحضرت عثمان رضى الله عنه په شان كښې به ئې گستاخى كوله اوهغوى ته به كافر اويهودى وئيلو (العياذ بالله) امام ابوحنيفه رحمه الله ته دَدې خبر اورسيدو نوهغه له لاړو او ورته ئې اووئيل ما ستا دَ لور دَپاره دَ يوسړى دَ نكاح پيغام راوړې دې. هغه سړې حافظ قرآن دې توله شپه په مانځه كښې دَ قرآن پاك تلاوت كوى دَ الله تعالى دَ ويرې نه ډير زيات ژاړى ليكن هغه

---

[۱]) شرح رسالة آداب البحث، قلمى ص:۵ الرسالة الولدية فى آداب البحث والمناظرة ص:۷ آداب البحث ص:۳.

[۲]) سورة النحل:۱۲۵ ترجمه: ښه ده دَ خپل رب په لار باندې پخې خبرې زده كولوسره نصيحت اورولوسره په ښه شان سره او الزام دې وركړى هغوى ته څنگه چه بهتر وى. (ترجمه شيخ الهند رحمه الله)س

[۳]) تفسير القرآن العظيم المعروف بتفسير ابن كثير، سورة النحل تحت (رقم الايه:۱۲۵): ۷۸/۴.

[۴]) مسندالإمام أحمدبن حنبل، مسندأنس بن مالك رضى الله عنه، رقم الحديث:۱۲۲۶۸ وقال محققه الشيخ شعيب الأرنؤوط فى تعليقه على هذا الحديث: إسناده صحيح على شرط مسلم، رجاله ثقات رجال الشيخين غير حماد بن سلمة، فمن رجال مسلم .

[۵]) الإحكام فى أصول الأحكام:۲۹/۱.

[۶]) جامع بيان العلم وفضله:۹۷۳/۲-۹۵۲.

يهودي دي. رافضي په جواب كښې اووئيل چه تاسو څه خبره كوئى؟ آيا زه دَخپلې لور واده يهودي سره اوكړم؟ امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل بيا رسول الله ﷺ دَ يوې نه بلكه دَ خپلو دوو لونړو واده حضرت عثمان غنى رضي الله عنه سره ولې كړې وو؟ دې اوريدو سره هغه رافضي خبردار شو او توبه ئې اوكړه اودَخپل دې ګنده عادت نه منع شو.[1]

**دويمه واقعه:** يوه ورځ امام ابوحنيفه رحمه الله په جمات كښې ناست وو چه دَ رافضيانو يو عالم راغلو كوم ته چه به شيطان طاق وئيلې شو. هغه امام اعظم رحمه الله ته اووئيل دَ جناب رسول الله ﷺ نه دَ ټولو نه زيات طاقتور څوك وو؟ امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل مونږ حضرت على رضي الله عنه ته دَ ټولوزيات طاقتور وايو اوتاسو حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته دَ ټولو نه زيات طاقتور وايئ. شيطان طاق اووئيل نه، تاسو برعكس اووئيل. امام ابوحنيفه رحمه الله اووئيل چه مونږ وايو چه حضرت على رضي الله عنه طاقتور وو. هغه ته علم وو چه دَ رسول الله ﷺ نه پس خلافت دَحضرت ابوبكر رضي الله عنه حق وو نوهغه خلافت حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته حواله كړو. ليكن تاسو وايئ چه حق دَحضرت على رضي الله عنه وو ليكن حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ طاقت په زور باندې خلافت واخستو، نو اوس وايه طاقتور څوك شو؟ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په دې جواب اوريدو سره حيران پاتې شو.[2]

**دَحديث باب نه مستنبط شوې احكام اومسائل:** دَحديث باب نه دا لاندينى احكام اومسائل مستنبط كړې شوى دى:

① ددې حديث نه دا مستنبط كړې شوى دى چه په غسل كښې تثليث مسنون دې. دَ پوره بدن وينځل په اجماع سره فرض دى.[3]

② دَ شافعيه په نيز په سرباندې درې ځل اوبه بهيول مستحب دى او په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې.[4]

③ ددې حديث نه معلومه شوه چه لپه به دَ دواړو لاسونو نه ډكولې شى.[5]

④ دَ حديث په ظاهرسره دَهغه خلقو ترديد كيږى چه دَ دريو نه زيات لپې استعمالوى. او حضورپاك اوخودل چه هغوى درې لپې اوبه بهيوى هم په دې كښې زمونږ دپاره اسوه حسنه ده.[6]

⑤ ددې حديث په سند كښې روايت الاقران اودَ صحابى دَ صحابى نه روايت موندلې شى.[7]

⑥ ددې حديث نه دا هم معلوميږى چه حضورپاك به په غسل كښې زياتې اوبه نه بهيولې بلكه دَ اعتدال نه به ئې كار اخستلو اودومره اوبه به ئې استعمالولې چه دَ حدث اكبردَ ختمولودپاره به كافى كيدلې. البته دَغسل نظافت (تبريد) وغيره كښې زياتې اوبه هم استعمالولې شى.[1]

---

[1] ) أبوحنيفه حياته وعصره آراءه وفقهه، صفات أبى حنيفة ص: ٥٥.

[2] ) الخيرات الحسان لابن حجر الهيثمى (المتوفى: ٩٧٤هجرى) الفصل الثانى والعشرون والثالث والعشرون فى عظيم ذكائه وأجوبت المسكتة عن الأسئلة المبهمة ص: ١٠٤-١٠٣ تعليق: الشيخ محمدعاشق الهى البرنى، دار أرقم، بيروت ، لبنان.

[3] ) عمدة القارى:٣/٢٩٩.

[4] ) عمدة القارى:٣/٢٩٩ شرح الكرمانى:٣/١١٨ التوضيح: ٤/٥٦٠.

[5] ) التوضيح: ٤/٥٦١عمدة القارى:٣/٢٩٨الكوثر الجارى:١/٤١٢أرشاد السارى:١/٤٩٣.

[6] ) التوضيح: ٤/٥٦١.

[7] ) عمدة القارى:٣/٢٩٨ فتح البارى:٢/٤٨٤.

؟؟[حدیث باب (دویم حدیث)][۲۵۳/۲۵۲][۱]

**ترجمه**: مونږ ته محمدبن بشاربیان اوکړو وئی وئیل مونږ ته غندر (محمدبن جعفر) اوږئیل هغه وانی مونږ ته شعبه اووئیل هغوی ته مخول بن راشد هغوی ته محمدبن علی (الباقر) هغوی دحضرت جابر به عبدالله رضی الله عنه نه نقل کړی، حضرت جابر رضی الله عنه اوفرمائیل چه نبی کریم ﷺ به (په غسل جنابت کښې) په خپل سر باندې درې څل اوبه بهیولې.

## تراجم رجال

**محمدبن بشار**: دا مشهور امام حدیث محمدبن بشار بن عثمان عبدی بصری رحمه الله دې. ابوبکردَدوی کنیت دې اوبُندار دَ دوی لقب دې. دَ دوی تفصیلی حالات **کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کی لاینفروا** دَ دویم حدیث لاندې بیان کړې شوی دی.[۳]

**غُندَر**: دا ابوعبدالله بن محمد جعفر هذلی رحمه الله دې. دَغندر په لقب سره مشهوردې. دَدوی احوال **کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم** دَ ړومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.[۴]

**شعبة**: دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج بن الورد، عتکی، واسطی بصری رحمه الله دې. دَدوی مختصر حالات **کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده** دَړومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.[۵]

**مخوَل بن راشد**: دا مخول بن راشد بن ابی المجالد الکوفی، الحناط، النهدی دې. نهدی ورته څکه وائی چه داد بنونهد آزاد کړې شوې غلام دې.[۶] دَ مجاهد بن راشد رور اودَمخول بن ابراهیم نیکه دې.[۷]

**دَ مخول تلفظ**: مخول دوه شان لوستلې شی. مُخَوَّل، دَ میم ضمه او دَ واؤد تشدید سره دَ محمد په وزن باندې لوستلې شی. مِخْوَل: دَ میم کسره سره مِخنَف او مِنبَر په وزن باندې لوستلې شی.[۸] دَمیم په ضمه سره دَ ابن عساکر رحمه الله روایت دې او دَ میم په کسره سره دَ اکثر حضراتو روایت دې خودَابوذر نه دواړه

---

[۱] الشرح المسیر لصحیح البخاری:۳۲۸/۱.

[۲] الحدیث أخرجه النسائی فی سننه فی کتاب الغسل والتیمم، باب: مایکفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه، رقم:۴۲۶ وأخرجه أحمد فی مسنده، مسند جابربن عبدالله الأنصاری:۲۳/۵رقم:۱۴۲۳۸، ۲۰۱/۵ رقم:۱۵۰۳۸، کلاهما من طریق شعبة عن مخول بن راشد، عن محمد بن علی أبی جعفر عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما وأخرجه مسلم من طریق عبدالوهاب عن جعفر عن أبیه عن جابر بن عبدالله رضی الله عنهما قال: کان النبی صلی الله علیه وسلم إذا اغتسل من جنابة صبّ علی رأسه ثلاث حفنات من ماء...... إلخ، کتاب الحیض، باب استحباب إفاضة الماء علی الرأس وغیره ثلاثاً. ۲۵۹/۱ رقم:۳۲۹، انظر جامع الأصول:۲۹۴/۷-۲۹۳ رقم:۵۳۲۵.

[۳] کشف الباری:۲۶۱/۳-۲۵۸.

[۴] کشف الباری:۲۵۱/۲-۲۵۰.

[۵] کشف الباری:۶۷۸/۱

[۶] التاریخ الکبیر:۲۹/۸تهذیب الکمال:۳۴۸/۲۷ الطبقات الکبیر:۳۵۲/۶ الثقات:۵۱۵/۷تاریخ الإسلام: ۱۳۹/۴ تقریب التهذیب :۱۶۸/۲الجرح والتعدیل:۴۵۶/۸تهذیب التهذیب:۷۹/۱ الکاشف:۲۵۰/۲إکمال تهذیب الکمال :۱۱۶/۱۱.

[۷] تهذیب الکمال:۲۵۰/۲تقریب التهذیب:۱۶۷/۲.

[۸] تقریب التهذیب:۱۶۷/۲ فتح الباری:۴۸۵/۲عمدة القاری:۲۹۹/۳تحفة الباری:۲۲۲-۲۲۱.

«بضم ميم وبكسرها» نقل دى.(۱) اوپه كتب رجال كښې اكثر مُخَوّل په وزن دَ محمد «دَ ميم ضمه سره» ضبط كړې شوې دې. (۲)

**شيوخ:** هغوى دَ ابوجعفر بن على بن حسين، مسلم البطين او ابوسعيد مدنى رحمهم الله نه روايت نقل كوى.(۳)

**تلامذه:** دَهغوى نه دَحديث روايت كونكو كښې جعفر الاحمر، سفيان ثورى، شريك ابن عبدالله، شعبه بن حجاج او ابوعوانه رحمهم الله شامل دى. (۴)

**دَ ائمه جرح وتعديل اقوال:** ابن ابى حاتم په خپل سند سره نقل كړى دى چه عبدالملك ميمونى وائى چه ماد امام احمدبن حنبل رحمه الله نه دَ مخول بن راشد باره كښې پوښتنه اوكړه هغوى اوفرمائيل «ما علمت إلا خيرا» (۵)يعنى زه دَهغه باره كښې دَخير نه علاوه هيڅ نه پيژنم.ابوحاتم رحمه الله فرمائى«يكتب حديثه» (۶)ابن حبان رحمه الله كتاب الثقات كښې دَهغوى تذكره كړې ده.(۷) ابن سعد رحمه الله فرمائى «كان ثقة إن شاءالله» (۸)امام نسائى، ابن معين، عجلى، ابن شاهين، دارقطنى، ابن عمار، يعقوب بن سفيان، ابن حجراوعلامه ذهبى رحمهم الله دَ هغوى توثيق كړې دې. (۹)

**تنبيه:** دَمخول بن راشد باره كښې دَ ټولو ائمه جرح والتعديل نه هم توثيقى كلمات نقل دى. البته امام ابوداؤد رحمه الله نه يو روايت كښې دَهغه شيعى كيدل نقل كړې شوى دى.(۱۰)ليكن ښكاره خبره ده چه صرف شيعى كيدل دَهغه دَمطعون او مردود كيدو دَپاره كافى نه دى ځكه چه دا دَ زيات نه زيات بدعت دې اودَ هغه بدعتى حديث مردود ګڼرلې شى. ځوك چه داعيه وى اودَخپل مذهب په ترويج كښې احاديث روايت كوى.(۱۱) خو دلته دَهغوى باره كښې داسې هيڅ څه خبره نقل نه ده. بل په صحيح بخارى كښې دَهغوى نه يو روايت نقل دې دَ كوم چه متابعت هم كړې شوې دې. (۱)

---

(۱) فتح البارى:۴۸۵/۲ عمدة القارى:۲۹۹/۳تحفة البارى: ۲۲۲-۲۲۱إرشاد السارى:۴۹۳/۱.

(۲) الكاشف:ص:۲۵۰.

(۳)تهذيب الكمال:۳۴۸/۲۷تهذيب التهذيب:۷۹/۱۰التاريخ الكبير:۲۹/۸تاريخ الإسلام ۱۳۹/۴ الجرح والتعدى ۴۵۶/۸: الكاشف:ص:۲۵۰.

(۴)تهذيب الكمال:۳۴۸/۲۷تهذيب التهذيب:۷۹/۱۰التاريخ الكبير:۲۹/۸تاريخ الإسلام۴/۱۳۹ الجرح والتعديل ۴۵۶/۸: الكاشف:ص:۲۵۰.

(۵) الجرح والتعديل ۴۵۶/۸ تهذيب الكمال:۳۴۹/۲۷.

(۶) الجرح والتعديل: ۴۵۶/۸تهذيب الكمال:۳۴۹/۲۷تهذيب ا لتهذيب: ۷۹/۱۰.

(۷) كتاب الثقات: ۵۱۵/۷تهذيب الكمال:۳۴۹/۲۷.

(۸) الطبقات الكبرى:۳۵۲/۶تهذيب التهذيب:۷۹/۱۰.

(۹) تهذيب الكمال:۳۴۹/۲۷تهذيب التهذيب:۷۹/۱۰ تاريخ الإسلام۱۳۹/۴ إكمال تهذيب الكمال: ۱۱۷-۱۱۸/۱۱تقريب التهذيب: ۱۶۷/۲ الكاشف:ص:۲/۲۵۰.

(۱۰) تهذيب التهذيب:۷۹/۱۰تقريب التهذيب: ۱۶۷/۲.

(۱۱) قال ابن حبان فى ترجمة جعفر بن سليمان الجرشى: "ليس بين أهل الحديث من أئمتنا خلاف أن الصدوق المتقن إذا كان فيه بدعة ولم يكن يدعو إليها أن الا حتجاج بأخباره جائز، فإذا دعا إلى بدعته سقط الاحتجاج بأخباره". (كتاب الثقات:۱۴۱/۶-۱۴۰) وقال أبوعمر الشهرزورى (المتوفى:۶۴۳هجرى) "وقال قوم: تقبل روايته

**وفات:** دَمخول بن راشد انتقال ۴۰ هجری نه پس دَابوجعفر منصوریه ابتدائی دور حکومت کښې اوشو.[2]

**محمدبن علی:** دا محمدبن علی بن حسین بن علی بن ابی طالب، القرشی، الهاشمی دې. ابوجعفر دَهغوی کنیت دې اودَ باقر په لقب سره مشهور دې.[3] دَدوی تفصیلی حالات **کتاب الوضوء، باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین القبل والدبر** لاندې اوګورئ.[4]

**جابر بن عبدالله** رضي الله عنه: دا مشهور صحابي رسول ﷺ حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه بن عمرو بن حرام بن ثعلبه بن کعب بن غنمك بن کعب بن سَلمة بن سعد بن علی بن اسد بن سارده ابن تزید بن جشم بن الخزرج، انصاری، خزرجی، سملی مدنی دې. ابوعبدالله ابوعبدالرحمن او ابومحمد دَدوی کنیت دې.[5] دَ دوی حالات **کتاب الوضوء، باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین القبل والدبر** لاندې اوګورئ.[6]

**شرح حدیث:** **کان النبی صلی الله علیه وسلم یفرغ علی رأسه ثلاثاً** یعنی نبی کریم ﷺ به په غسل جنابت کښې، په خپل سرباندې درې لپې اوبه بهیولې.

**قوله:: یُفْرِغُ:** یفرغ دَ یاء په ضمه سره باب افعال الإفراغ نه مضارع معروف واحد مذکر غائب صیغه ده.[7] بهیولو ته وائی مراد دلته اوبه بهیول دی لکه «**أفرغت الإناء إفراغاً: إذا قلبت ما فیه من الماء او "أفرغت الدلاء: أرقتها"**» هغه وخت وئیلی شی کله چه ته په لوښی کښې موجود اوبه بهیوې.[8] "**الإفراغة**" مفردې دې یوخل اوبه بهیولوته وائی دَدې جمع "إفراغات" راځی.[9]

**قوله:: ثلاثاً:** "**أي ثلاث غرفات**" یعنی درې لپې اوبه به ئې په خپل سرباندې بهیولې.[10]

---

إذا لم يكن داعية، ولا تقبل إذ كان داعية إلى بدعته، وهذا مذهب الكثير أو الأكثر من العلماء"...... وهذا المذهب الثالث أعدلها وأولاها، والأول بعيد مباعدٌ للشائع عن أئمة الحديث. فإن كتبهم طافحة بالرواية عن المبتدعةغير الدعاة، وفي "الصحيحين" كثير من أحاديثهم في الشواهد والأصول". (معرفة أنواع علم الحديث ص:۲۳۲-۲۳۰) قال ابن حجر رحمه الله: "الأكثر على قبول غير الداعية، إلا إن روى ما يقوى بدعته فيرد على المذهب المختار". (النزهة: ۱۳۸-۱۳۷) انظر للمزيد والتفصيل: البحر المحيط: ۲۷۲/٤-۲۷۱ الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان: ۸۹/۱ الكفاية ص: ۱۹۵، ۲۰۱ إكمال المعلم: ۱۲۵/۱ كشف الأسرار: ٤٦/۲ الإفتراح في بيان الاصطلاح ص: ٤٤٤-٤٤٢ التقييد ص: ۱۵۰ معرفة الرجال ص:۳۲ تدريب الراوي: ۳۲۹/۱-۳۲۸.

[1] تهذيب التهذيب: ۷۹/۱۰.

[2] تهذيب الكمال: ۳٤۹/۲۷تهذيب التهذيب: ۷۹/۱۲۰كتاب الثقات: ۵۱۵/۷ تقريب التهذيب: ۶۷/۲تاريخ الإسلام: ۱۳۹/٤

[3] تهذيب الكمال:۱٤۲/۲۶-۱۳۶تهذيب التهذيب:۳۵۲/۹-۳۵۰الطبقات الكبرى:۳۲٤/۵-۳۲۰.

[4] كشف الباري كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر.

[5] تهذيب الكمال: ٤٤٤/٤ تهذيب التهذيب:٤۲۳/۲-٤۲۱ طبقات ابن سعد:۵۷٤/۳.

[6] كشف الباري: كتاب الوضوء، باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر.

[7] فتح الباري:٤۸۵/۲عمدة القاري: ۳۰۰/۳إرشادالساري:٤۹٤/۱.

[8] النهاية: ۳۶۳/۲الصحاح ص:۸۰۸ جامع الأصول: ۲۹٤/۷.

[9] النهاية: ۳۶۳/۲ جامع الأصول: ۲۹٤/۷.

[10] فتح الباري:٤۸۵/۲عمدة القاري: ۳۰۰/۳إرشادالساري:٤۹٤/۱.

امام اسماعیلی په روایت کښې دا الفاظ هم نقل کړي دي: «قال شعبة: أظنه من غسل الجنابة» [1] شعبه وائي چه زما خیال دې چه دا «درې لپې اوبه بهیول» د غسل جنابت باره کښې دی. امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې شعبه عن مخول په طریق سره د حضرت جابر رضي الله عنه نه هم دغه روایت نقل کړې دې. په کوم کښې چه د شعبه دغه پورتنې مذکوره قول هم دې. هم په دغه روایت کښې دی لکه چه پخپله د حدیث باب په وړاندې روایت کښې هم راغې: «فقال رجل من بني هاشم: إن شعري كثير، فقال جابر: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم أكثر شعرا منك وأطيب» [2] یعنی د بنو هاشم یو سړی اوونیل زما ویښته خو زیات دی (زما دپاره درې لپې اوبه کافی نه دی) نوحضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائیل رسول الله صلى الله عليه وسلم ستا نه د زیاتو (ګڼړو) ویښتو والا اوتانه زیات پاك (نظافت والا) وو (هغوی صلى الله عليه وسلم له به درې لپې کافی کیدل).

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی: «كان النبي صلى الله عليه وسلم يفرغ، هذا التركيب مما يدل على استمرار العادة في ذلك» [3] یعنی د حدیث الفاظ «كان النبي صلى الله عليه وسلم يفرغ» په دې خبره باندې دلالت کوی چه درې لپې اوبه بهیول د حضورپاك دائمی عادت وو.

**دمخول بن راشد رحمه الله د مذکوره روایت سره متعلق یووضاحت:** د مخول بن راشد رحمه الله په بخاری شریف کښې هم دغه یو روایت دې دې نه علاوه بل یوروایت دهغوی نه بخاری شریف کښې نه دې نقل. [4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «وليس له في البخاري غير حديث واحد توبع عليه عنده» [5] یعنی بخاری کښې د مخول بن راشد صرف هم دغه یو روایت دې. اودهغوی په نیز ددې متابعت کړې شوې دې. دمخول بن راشد روایت امام نسائی «أخبرنا محمد بن عبد الأعلى قال: حدثنا خالد عن، شعبة عن مخول عن أبي جعفر محمد بن علي بن حسين، عن جابر» په سلسله سند سره نقل کړې دې. [6]

**متابع اوشواهد:** د دوی نه علاوه احمدبن علی التمیمی په مسند ابویعلی الموصلی کښې د زهیر په طریق سره هغوی ابن عیینه نه هغوی دجعفر نه اوهغه دخپل پلار نه، دهغوی پلار دحضرت جابر رضي الله عنه نه نقل کوی: «أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يغرف على رأسه ثلاثا، يعني في الغسل». [7] هم دې سند سره امام حمیدی رحمه الله د سفیان په طریق سره دا روایت په خپل مسند کښې هم نقل کړې دې. [8]

---

[1] تحفة الباري: ۲۲۲/۱ فتح الباري: ۴۸۵/۲ عمدة القاري: ۳۰۰/۳ إرشادالساري: ۴۹۴/۱.

[2] مسندأحمد مسند جابر بن عبدالله رضى الله عنه: ۲۳۲/۵ رقم: ۱۴۲۳۷.

[3] شرح الكرماني: ۱۱۸/۳.

[4] عمدة القاري: ۳۰۰/۳ إرشادالساري: ۴۹۴/۱ التوضيح: ۵۶۰/۴ فتح الباري: ۴۸۵/۲.

[5] تهذيب التهذيب: ۷۹/۱۰.

[6] سنن النسائي، كتاب الغسل والتيمم، باب مايكفي الجنب من إفاضة الماء على رأسه، رقم الحديث ۴۲۶، مسندالإمام أحمد بن حنبل، مسند جابر بن عبدالله الأنصاري رضى الله عنه: ۲۳/۵ رقم الحديث: ۱۴۲۳۸، ۲۰۱-۲۰۲/۵ رقم الحديث: ۱۵۳۰۸.

[7] مسند أبي يعلى الموصلي، مسند جابر بن عبدالله رضى الله عنه: ۳۸۵/۲ رقم: ۱۸۴۶.

[8] أخرجه الحميدي في مسنده في أحاديث جابربن عبدالله رضى الله عنه: ۵۳۲/۲ رقم: ۱۲۶۴.

خو امام احمد رحمه الله یوخانی دَ یحیی په طریق سره او دویم خانی کښې دَعبدالوهاب ثقفی په طریق سره [1] او ابن ماجه رحمه الله حفص بن غیاث په طریق سره نقل کړې دې [2] اودا درېواړه دَ جعفر بن محمدبن علی نه هم په دې سندسره نقل کوی. امام بخاری رحمه الله پخپله هم په دې باب کښې ددې نه په وړاندې روایت کښې هم دغه مضمون دَ ابونعیم په طریق سره دَ ابوجعفر نه نقل کړی دې اوهغه دَحضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه نه نقل کوی. [3] نولکه چه دا ټول روایتونه دَ مخول بن راشد دَ حدیث باب دَ روایت متابعات، او شواهد نه دی.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه په ترجمه کښې په سرباندې درې لپې اوبه بهیولو ذکر دې او په حدیث کښې «کان النبی صلی الله علیه وسلم یفرغ علی رأسه ثلاثاً» صراحت موجود دې په کوم سره چه بغیردَ څه اخفا نه ترجمه ثابتیږی. [4]

**مایستفاد من الحدیث** دَ سابقه روایت لاندې بیان کړې شوی دی.

## الحدیث الثالث

۲۵۶- حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَعْمَرُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَامٍ، حَدَّثَنِي أَبُو جَعْفَرٍ، قَالَ: قَالَ لِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَتَانِي ابْنُ عَمِّكَ يُعَرِّضُ بِالْحَسَنِ بْنِ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ. قَالَ: كَيْفَ الْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ؟ فَقُلْتُ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُ ثَلَاثَةَ أَكُفٍّ وَيُفِيضُهَا عَلَى رَأْسِهِ، ثُمَّ يُفِيضُ عَلَى سَائِرِ جَسَدِهِ» فَقَالَ لِي الْحَسَنُ إِنِّي رَجُلٌ كَثِيرُ الشَّعَرِ، فَقُلْتُ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرَ مِنْكَ شَعَرًا» [حدیث ۲۵۳] [5]

**ترجمه:** مونږ ته ابونعیم بیان اوکړو وئی وئیل مونږ ته معمر بن یحیی بن سام، اووئیل ماته ابوجعفر (باقر) بیان اوکړو ماته جابر رضی الله عنه هغوی اوفرمائیل ماله ستا دَ تره خوئی راغلو دَهغه اشاره حسن بن محمد بن حنفیه طرف ته وه هغه تپوس اوکړو چه دَ جنابت دَ غسل څه طریقه ده؟ ما اووئیل نبی کریم ﷺ به درې لپې اوبه اخستلې او هغه به ئې په خپل سرباندې بهیولې. بیابه ئې په خپل ټول بدن باندې اوبه بهیولې. حسن په دې باندې اووئیل زه خود ډیرو ویښتو والا سړې یم ما جواب ورکړو چه دَنبی کریم ﷺ ویښته تانه زیات وو.

## تراجم رجال

[1] مسند أحمد، مسند جابربن عبدالله رضی الله عنه: ۷۷/۵رقم الحدیث: ۱٤٤۸۳، ۲۲۳/۵ رقم: ۱۵۱۱۸.

[2] سنن ابن ماجه، أبواب التیمم، باب فی الغسل من الجنابة، رقم: ۵۷۷.

[3] صحیح البخاری کتاب الغسل باب من أفاض علی رأسه ثلاثاً رقم:۲۵۶.

[4] عمدة القاری:۲۹۹/۳.

[5] الحدیث أخرجه مسلم فی صحیحه کتاب الحیض باب استحباب إفاضة الماء علی الرأس وغیره ثلاثاً: ۲۵۹/۱ رقم:۳۲۹ والنسائی فی أبواب الغسل والتیمم، باب مایکفی الجنب من إفاضة الماء علی رأسه رقم:٤٤٦ انظر جامع الأصول: ۲۹٤/۷-۲۹۳ رقم: ۵۳۲۵.

**ابونُعیم:** دامشهورمحدث ابونعیم الفضل بن دکین عمرو بن حماد الملائی الکوفی الاحول دی. دکین دَ دوی دَپلار لقب دې اودَهغه نوم عمرو بن حماد دې. (١)دَدوی تفصیلی احوال ((کتاب الایمان باب: فضل من استبرألدینه)) دَ رومبی روایت په ذیل کښې راغلی دی. (٢)

**معمر بن یحیی بن سام:** دا معمر بن یحیی بن سام موسیٰ ضبی کوفی دې. (٣)

**دَمعمر تلفظ:** معمر په دوه شان لوستلې کیږی "مَعْمَر" دَمیم فتحه اودَمیم ثانی تخفیف سره او "مُعَمَّر" دَمیم ضمه اوعین فتحه اومیم ثانی تشدید سره هم لوستلې کیږی. (٤)

حافظ عبدالغنی بن سعید ازدی اوعلامه ذهبی رحمهما الله دَمیم په ضمه او میم ثانی په تشدید سره نقل کړې دې(٥)هم دا علامه ذهبی رحمه الله صحیح گرځولی دی. (٦)مُعَمَّر په وزن دَمحمد هم دغه دَ قابسی روایت دې اوهم په دې باندې حاکم جزم کړې دې. (٧) ابن ماکولا په مختلف فیه کښې ذکرکړې دې(٨)لیکن امام بخاری رحمه الله پخپله التاریخ الکبیر کښې دَمیم فتحه اومیم ثانی تخفیف سره نقل کړې دې(٩)لکه څنګه چه ابن ماکولا وغیره هم دَدې صراحت کړې دې. (١٠)هم دغه دَاکثرو حضراتو روایت دې(١١)علامه مزی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم دَمیم فتحه او تخفیف سره نقل کړې دې. (١٢) کله کله دَ دوی نسبت دَ پلار په خانې دَنیکه طرف ته هم کیږی اومعمر بن سام ورته وئیلی شی. (١٣)

**شیوخ حدیث:** هغوی دَ حدیث سماع دَخپل رور ابان بن یحیی بن سام، ابوجعفر محمد ابن علی بن الحسین او فاطمه بنت علی بن ابی طالب نه کړې ده. (١٤)

**تلامذه:** دَهغوی نه دَحدیث سماع کونکو کښې ابو أسامه حماد بن أسامه، ابو نُعیم الفضل بن دکین او وکیع بن الجراح رحمهم الله شامل دی. (١٥)

---

(١) تهذیب الکمال: ١٩/٢٣سیر أعلام النبلاء: ١٤٢/١٠.

(٢) کشف الباری:٦٧٣/٢-٦٦٩س

(٣) التاریخ الکبیر:٣٧٧/٧الثقات لابن حبان: ٤٨٥/٧الجرح والتعدیل:٢٩٤/٨تاریخ الإسلام: ١٤٣/٤الکاشف: ٢٨٣/٢تهذیب الکمال:٣٢٣/٢٨تقریب التهذیب: ٢٠٣/٢خلاصة الخزرجی ص: ٣٨٤.

(٤) المؤتلف والمختلف للأزدی:٦٣١/٢.

(٥) المؤتلف والمختلف للأزدی:٦٣١/٢ الکاشف: ٢٨٣/٢.

(٦) توضیح المشتبه: ٢٤٠/٥.

(٧) فتح الباری:٤٨٥/٢عمدة القاری:٣٠٠/٣ إرشادالساری:٤٩٤/١.

(٨) الإکمال لابن ماکولا:٢٧٠/٧.

(٩) التاریخ الکبیر: ٣٧٧/٧.

(١٠) الإکمال: ٢٧٠/٧المؤتلف والمختلف للازدی: ٦٣٣/٢توضیح المشتبه: ٢٤٠/٥.

(١١) فتح الباری:٤٨٥/٢عمدة القاری:٣٠٠/٣ إرشادالساری:٤٩٤/١.

(١٢) تهذیب الکمال: ٣٢٣/٢٨تقریب التهذیب:٢٠٣/٢.

(١٣) تهذیب الکمال: ٣٢٣/٢٨تهذیب التهذیب: ٢٤٩/١٠ تقریب التهذیب:٢٠٢/٢.

(١٤) تهذیب التهذیب:٢٤٩/١٠ تهذیب الکمال:٣٢٣/٢٨ الثقات: ٤٨٥/٧ الجرح والتعدیل: ٢٩٤/٨.

(١٥) التاریخ الکبیر: ٣٧٨/٧-٣٧٧ الجرح والتعدیل: ٢٩٤/٨ تاریخ الإسلام: ١٤٢/٤ تهذیب الکمال: ٣٢٣/٢٨.

**دهغوی باره کښې د ائمه جرح والتعدیل اقوال**: ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې دهغوی تذکره کړې ده.[1]

د ابوزرعه رحمه الله نه د معمر بن یحیی بن سام رحمه الله باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغوی اوفرمائیل «**کوفی ثقة**».[2] علامه ذهبی رحمه الله الکاشف کښې فرمائیلي **وثق**.[3]

یعقوب بن سفیان رحمه الله او ابن معین رحمه الله فرمائیلي دي ثقة.[4] آجری د امام ابوداؤد رحمه الله نه نقل کړي دي چه هغوی اوفرمائیل «**لابأس به**» لکه چه امام ابوداؤد هغه خوښ نه کړو.[5] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلي **مقبول**.[6]

**تنبیه**: دحافظ صاحب رحمه الله هغه ته صرف مقبول وئیل پخپله غیرمقبول دی. ځکه چه حافظ صاحب رحمه الله د امام ابوداؤد رحمه الله رائې قابل التفات نه ګنړی. هم دغه وجه ده چه هغوی د فتح الباري په مقدمه کښې دمعمر بن یحیی باره کښې څه خبرې اترې نه دی کړې.[7] حافظ ابن حجر رحمه الله هغه د طبقه سادسه په راویانو کښې شمیر کړې دې.[8]

**دویمه تنبیه**: حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله فرمائي: «**لیس له فی البخاري إلا هذا الحدیث**».[9] یعنی بخاری شریف کښې دهغوی صرف د حدیث باب والاروایت دې. حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذیب التهذیب کښې فرمائیلي «**أخرجه متابعة**».[10] امام بخاری رحمه الله دا هم (د مخول بن راشد د روایت دپاره) په توګه د متابع نقل کړې دی.

**ابوجعفر**: دا محمدبن علی بن حسین بن علی بن ابی طالب قرشی هاشمی دې. ابوجعفر ددوی کنیت دې اوباقر د دوی لقب دې.[11] ددوی حالات **کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین القبل والدبر** لاندې تیر شوی دی.[12]

**جابر** رضی الله عنه: دا مشهور صحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت جابر بن عبدالله انصاری رضی الله عنهما دې. قد مر آنفًا.[1]

---

[1] التاریخ الکبیر: ۳۷۸/۷-۳۷۷ الجرح والتعدیل:۲۹۴/۸ تاریخ الإسلام: ۱۴۲/۴تهذیب الکمال:۳۲۳/۲۸.

[2] الجرح والتعدیل: ۲۹۴/۸تهذیب الکمال: ۳۲۴/۲۸ تهذیب التهذیب: ۲۴۹/۱۰تاریخ الإسلام: ۱۴۲/۴.

[3] الکاشف:۲۸۳/۲.

[4] تعلیقات تهذیب الکمال: ۳۲۴/۲۸.

[5] تهذیب التهذیب: ۲۴۹/۱۰تعلیقات تهذیب الکمال: ۳۲۴/۲۸.

[6] تقریب التهذیب:۲۰۳/۲ تعلیقات تهذیب الکمال:۳۲۴/۲۸.

[7] قال الشیخ محمدعوامه حفظه الله فی تعلیقاته علی الکاشف:۲۸۳/۲ مانصه: فهو ثقة إن شاء الله، فقول الحافظ فی التقریب:۶۸۱۴: مقبول غیر مقبول، بل إنه نفسه لم یلتفت إلی رأی أبی داؤد فی الرجل، ولذالم یترجمه فی مقدمة الفتح. (انتهی).

[8] تقریب التهذیب: ۲۰۳/۲.

[9] فتح الباری:۴۸۵/۲عمدة القاری:۳۰۰/۳.

[10] تهذیب التهذیب: ۲۴۹/۱۰ فتح الباری: ۴۸۵/۲ عمدة القاری: ۳۰۰/۳.

[11] دنورتفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال: ۱۴۲/۲۶-۱۳۶تهذیب التهذیب: ۳۵۲/۱۰-۳۵۰ الطبقات الکبری :۳۲۴/۵-۳۲۰.

[12] صحیح بخاری کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء إلا من المخرجین القبل والدبر.

**الحسن بن محمدبن الحنيفة**: دا حسن بن محمد بن على بن ابى طالب قرشى هاشمى مدنى دي.[2] دهغوى پلار محمدبن على ابن الحنفيه په نوم سره معروف دي ابومحمد دهغه كنيت دي.[3] خليفه بن خياط وغيره وائى دهغوى د والده نوم جمال بنت قيس بن مخرمه بن المطلب بن عبدمناف دي.[4]

**ابن الحنيفة**: حنفيه دحضرت على رضي الله عنه دويمه بى بى ده چاسره چه هغوى دحضرت فاطمه رضي الله عنها د وفات نه پس نكاح كړې. دهغې نه محمد پيدا شو چه دخپلې مور په نسبت سره محمد بن الحنفيه په نوم سره مشهور شو.[5]

**شيوخ حديث**: دې د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه سلمه بن الاكوع رضي الله عنه عبدالله بن عباس رضي الله عنهما عبيدالله بن ابي رافع رضي الله عنه ابوسعيد خدرى رضي الله عنه ابو هريرة رضي الله عنه ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه علاوه دخپل پلار محمدابن الحنفيه رحمه الله اوبنت عبدالله بن جعفر نه دحديث روايت كوى.[6]

**تلامذه**: دهغوى نه د حديث روايت كونكوكښې ابان بن صالح، سعيد بن المرزبان، ابو سعد البقال، سلمه بن اسلم جهنى، عاصم بن عمر بن قتاده، عبدالواحد بن آيمن، عثمان بن ابراهيم بن محمدبن حاطب جمحى، عمرو بن دينار، قيس بن مسلم، محمدبن خليفه اسدى، محمدبن عبدالله بن قيس بن مخرمه، مسلم بن شهاب زهرى، منذر ثورى، موسىٰ بن عبيده ربذى او هلال بن خباب رحمهم الله شامل دى.[7]

**د ژوند حالات او د ائمه اقوال**: حسن بن محمد ابن الحنفيه رحمه الله د بنوهاشم د ښه خوئى، هوښيار پوهه اوعقلمندو خلقونه وو.[8]

يحيى ابن معين رحمه الله فرمائى چه حسن رحمه الله د تابعين مدينه اومحدثين اهل مدينه نه وو.[9] هغوى ته په صورت سيرت اوكرداركښې په خپل رور ابوهاشم عبدالله باندې اوچتوالي حاصل وو.[10]اسلم

---

[1] صحيح بخارى كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر.

[2] البداية والنهاية: ۱۵۱/۹ تهذيب تاريخ دمشق الكبير المعروف بتاريخ ابن عساكر: ۲۴۸/٤ تاريخ الإسلام:۱۳۲/۳التاريخ الكبير:۳۰۵/۲ سيرأعلام النبلاء: ۱۳۰/٤طبقات ابن سعد: ۳۲۸/۵كتاب الثقات: ۱۳۲/٤ تهذيب الكمال: ۳۱۶/۶ تهذب التهذيب: ۳۲۰/۲خلاصه الخزرجى ص:۸۱الجرح والتعديل: ۳۹/۳تقريب التهذيب ص: ۱۶٤الكاشف: ۳۲۹/۱.

[3] تهذيب الكمال: ۳۱۷/۶ تهذيب التهذيب :۳۲۰ /۲ طبقات ابن سعد: ۳۲۸/۵.

[4] تهذيب الكمال: ۳۱۸/۶تاريخ الإسلام: ۱۳۳/۳طبقات ابن سعد: ۳۲۸/۵.

[5] فتح البارى: ٤۸۵/۲إرشاد السارى: ٤۹٤/۱ الكنز المتوارى: ۱۹۵/۳.

[6] تهذيب الكمال: ۳۱۷/۶تهذيب التهذيب: ۳۲۰/۲ تهذيب الأسماء واللغات: ۱۶۰/۱ تاريخ ابن عساكر: ۲۴۸/٤.

[7] تهذيب الكمال: ۳۱۷/۶تهذيب التهذيب: ۳۲۰/۲ تهذيب الأسماء واللغات: ۱۶۰/۱ تاريخ ابن عساكر: ۲۴۸/٤ تاريخ الإسلام: ۱۳۲/۳ كتاب الثقات: ۱۲۲/٤خلاصه الخزرجى ص: ۸۱

[8] طبقات ابن سعد:۳۲۸/۵تاريخ ابن عساكر: ۲۴۹/٤البداية والنهاية: ۱۵۱/۹.

[9] تاريخ ابن عساكر:۲۴۹/٤.

[10] طبقات ابن سعد:۳۲۸/۵ تهذيب الكمال: ۳۱۷/۶تهذيب التهذيب: ۳۲۰/۲.

وائي چه په خلقوكښې دَهغوى شمير معتمد ترين شخصيات كښې كيدلو.(١) حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائي چه په خلقوكښې اختلافي مسائل فقه اوتفسير په علم كښې هغوى ته يو لوړ مقام حاصل وو.(٢) حضرت حسن بن محمد رحمه الله خپل شاته هيڅ اولاد نه وو پريخودې.(٣)

**حلم او بردبارى:** هغوى به فرمائيل چه دَ ټولو نه بهترين څادر دَ حلم اوبردبارئى دې. په الله تعالى باندې قسم دا ستاسو دَپاره دَ يمنى څادر نه بهترې. كه چرې په تاسوكښې حلم اوبردبارى نه وى نو په تكلف سره حليم اوبردبار جوړشه.(٤)

**دَالله تعالى محبت:** دَالله تعالى دَ محبت په حواله سره به حضرت حسن بن محمد رحمه الله فرمائيل چه دَ چا چا سره محبت وى هغه دَ هغه نافرمانى نه كوى بيا هغوى دا اشعار اولوستل:

تعصي الإله وأنت تُظهر حبَّه     عارٌ عليك إذا فعلت شنيعُ
لوكان حبّك صادقاً لأطعته     إن المحب لمن أحب مطيعُ(٥)

① ته دَ خپل معبود نافرمانى كوې او هغه سره دَمحبت اظهاركوې. (يعنى دَهغه دَمحبت دعويدار ئې) كه چرې ته داسې كوې نودا دَ شرم سبب او دَ نفرت قابل خبره ده.

② كه چرې ستا محبت ربښتونې وې نوتابه دَهغه فرمانبردارى (اطاعت) كولو ځكه چه محب دَ خپل محبوب فرمانبردار او تابعدار وى.

نور فرمائي:

ما ضرّ من كانت الفردوس منزله     ما كان في العيش من بؤس وإقتار
تراه يمشي حزيناً جائعاً شعثاً     إلى المساجد يسعى بين أطمار(٦)

① په ژوند كښې موجود بدحالي اودَ رزق تنگى هغه سرى ته هيڅ ضرر اونقصان نه شى رسولې دَ چا ځائې چه جنت الفردوس وى.

② ته به هغه ته گورې اې مخاطب چه خفه اوږې پريشان حال په زړو خيرنو كپړو كښې اودَ نادارئې اوغريبئې په حالت كښې دَ جماتونو طرف ته ځي. مسعر وائي چه حسن بن محمد دَ حضورپاك ﷺ دَ ارشاد «ليس منّا» تفسير «ليس مثلنا» سره كولو.(٧)

علامه ذهبى رحمه الله فرمائي چه حسن رحمه الله دَ علماء اهل بيت نه وو دَهغوى دَ فضيلت باره كښې دَعمرو بن دينار دا قول كافى دې: «مارأيت أحداً أعلم بما اختلف فيه الناس من الحسن بن محمد، ما كان زهريكم إلا غلاماً من غلمانه» (٨) يعنى ما دَخلقو اختلافي مسائلو كښې دَ حسن بن محمد رحمه الله نه لوئى څوك عالم نه دې ليدلې. ستاسو زهرى رحمه الله خودَهغوى په خدمت كښې اوسيدونكو ځوانانونه يو وو.

---

(١) تاريخ ابن عساكر: ٢٤٩/٤ تهذيب الكمال: ٣١٩/٦.
(٢) البداية والنهاية: ١٥١/٩.
(٣) طبقات ابن سعد: ٣٢٨/٥ تهذيب الكمال: ٣١٨/٦.
(٤) تاريخ ابن عساكر: ٢٤٩/٤ تهذيب الكمال: ٣٢٠/٦.
(٥) تاريخ عساكر: ٢٤٩/٤ تهذيب الكمال: ٣٢٠/٦.
(٦) تهذيب الكمال: ٣٢١/٦ تاريخ ابن عساكر: ٢٤٩/٤.
(٧) تاريخ الإسلام: ١٣٣/٣ تهذيب الكمال: ٣١٩/٦.
(٨) سير أعلام النبلاء: ١٣٠/٤ تهذيب التهذيب: ٣٢٠/٢ تاريخ الإسلام: ١٣٣/٣-١٣٢.

**دحضرات شيخين دفاع اومدح:** امام دارقطني رحمه الله دَ حضرت حسن بن محمد رحمه الله نه نقل کړې دی چه هغوی اهل کوفه مخاطب کولو سره اوفرمائيل «يا أهل الكوفة! اتقوا الله ولا تقولوا في أبي بكر وعمر ما ليسا له بأهل، إن أبا بكر كان مع رسول الله (صلى الله عليه وسلم) في الغار ثاني اثنين وإن عمر أعز الله به الدين» [1]

يعنى اې اهل كوفه! تاسو دَ الله تعالى نه اوويرېږئ او دَ حضرت ابوبكر اوحضرت عمر رضي الله عنهما باره کښې داسې خبره مه کوئ چه دَ هغوی شان سره نه ښائي، بيشکه ابوبکر رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دَ غار ثور دَ دوو نه يو وو او بيشکه حضرت عمر رضي الله عنه په ذريعه الله تعالى دين اسلام ته عزت او لوړمقام ورکړو.

ابن حبان رحمه الله وائي چه حسن بن محمد رحمه الله به فرمائيل «من علم أبا بكر وعمر فقد علم السنة» [2] يعنى کوم سړی چه ابوبکر اوعمر (رضي الله عنهما) دَ اتباع نه مخ وارولو نوهغه دَ سنت نه مخ وارولو.

**دَ روافض باره کښې دَحضرت حسن رحمه الله ارشاد:** محمدبن طلحه يامي رحمه الله وائي چه حسن بن محمد رحمه الله فرمائيلي: «منهم شيعة متمنية ينقمون المعصية على أهلها ويعملون بها، اتخذوا أهل البيت من العرب إماماً، وقلدوهم دينهم، يوالون على حبهم، ويعادون على بغضهم، جفاة للقرآن أتباع للكهان، يرجون الدولة في بعث يكون قبل قيام الساعة، حرفوا كتاب الله وارتشوا في الحكم وسعوا في الأرض فساداً» [3]

يعنى دَخلقو نه (دَ شيعه ګانو) اميدونه کونکې يوه ډله ده چه په ګناهګارانو باندې دَهغوی دَ ګناه په وجه کدح کوی يعنی عيب لګوی او پخپله دَهغې ارتکاب کوی. په عربو کښې ئې اهل بيت خپل امام اوګرځولو او په دين کښې دَهغوی دَ تابعدارئ دعويدار دی. اهل بيتو سره دَ محبت په وجه خلقو سره محبت او هغوی سره دَ بغض دَ وجې نه خلقو سره دَ بغض اظهار کوی. (داخلق) دَ قرآن دښمنان دی دَ کاهنانو (جادوګرو) تابعدار دی. دَ قيامت دَ راتلونه وړاندې دَ حکومت دَ قيام خواهش مند دی. هغوی په کتاب الله کښې تحريف اوکړو په فيصلو کښې رشوت واخستو او په زمکه کښې فساد خورکړو.

**دائمه توثيقى اقوال:** امام احمد رحمه الله فرمائي «مدني، تابعي، ثقة» [4] حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل «ثقة فقيه» [5] امام نووی رحمه الله تهذيب الأسماء واللغات کښې فرمائي: «اتفقوا على توثيقه» [6] يعنى ائمه دَهغوی په توثيق باندې اتفاق کړې دې.

**دَ ارجاء قول اودَهغې حقيقت:** دَحسن بن محمد رحمه الله دَ ارجاء طرف ته نسبت کړې شوې دې بلکه مصعب زبيري، مغيره بن مقسم، عثمان بن ابراهيم حاطبی، ابن سعد، ايوب سختيانی، امام عجلی

---

[1] ) تاريخ ابن عساكر: ٢٤٠/٤ تهذيب الكمال: ٣١٩/٦.
[2] ) كتاب الثقات: ١٢٢/٤ خلاصة الخزرجي، ص: ٨١ تهذيب الكمال: ٣١٩/٦ کښې دَ السُّنَّة په ځائې السَّنَة راغلې دې دا تصحيف دې.
[3] ) تاريخ الإسلام: ١٣٤/٣.
[4] ) تاريخ ابن عساكر: ٢٤٩/٤ تاريخ الإسلام: ١٣٤/٣.
[5] ) تقريب التهذيب ص: ١٦٤.
[6] ) تهذيب الأسماء واللغات: ١٦٠/١.

رحمهم الله وغیره ونیلی دی «أول من تکلم في الارجاء الحسن بن محمد بن الحنفية»[1] یعنی دَ ټولو نه اول دَ ارجاء باره کښې خبره کونکې حسن بن محمد بن الحنفیه دې.

عثمان بن ابراهیم بن حاطب وائی چه زه په هغه ورځ (په کومه ورځ چه حسن بن محمد بن حنفیه دَ ارجاء باره کښې خبره اوکړه) خپل تره سره دَهغه په حلقه کښې موجود ووم په هغه مجلس کښې جُحْدَب هم وو.([2]) اوهغه سره څه نور خلق هم وو. هغه خلقو دَحضرت علی حضرت عثمان حضرت طلحه او حضرت زبیر رضی الله عنهم باره کښې خبرې شروع کړې. دَهغوی خبرې زیاتې شوې اوحسن بن محمد رحمه الله خاموش ناست وو. بیا حسن بن محمد رحمه الله خبرې شروع کړې وئی فرمائیل: «قد سمعت مقالتکم ولم أرشیئاً أمثل من أن یرجأعلي وعثمان وطلحة والزبیر فلا یتولوا ولا یتبرأ منهم» ([3])یعنی ما ستاسو خبرې اترې واورېدې چه دَدې نه زیات هیڅ څیز نه وینم چه دَ علی عثمان طلحه اوزبیر رضی الله عنهم معامله مؤخر کړې شی. نه دې هغوی سره دَ موالات (دوستئی) اظهار اوکړې شی اونه دَ براءت.

دَ هغوی پلار محمدبن الحنفیه ته چه کله دَدې قول پته اولګیدله نوهغه دَ حسن بنه رټنه اوکړه اووئی فرمائیل ولې ته به دَ خپل نیکه حضرت علی رضی الله عنه سره هم دَمحبت اظهار نه کوې؟([4]) هم دَدې ارجاء باره کښې هغوی څه رساله هم لیکلې وه. ([5])

**دَ حسن بن محمد رحمه الله طرف ته دَ منسوب شوې ارجاء مطلب:** علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه دَ کوم ارجاء قول حسن بن محمد کړې دې دَهغې مطلب دادې چه دَحضرت عثمان رضی الله عنه اوحضرت علی رضی الله عنه معامله دې الله تعالی ته حواله کړې شی هغه چه څه غواړی دَدوی باره کښې فیصله اوکړی. ([6])

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله وضاحت:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «المراد بالإرجاء الذي تکلم الحسن بن محمد فیه غیر الإرجاء الذي یعیبه أهل السنة المتعلق بالإیمان» ([7])

یعنی دَ حسن بن محمد رحمه الله دَ ارجاء باره کښې دَ قول نه مراد هغه ارجاء نه ده دَ کوم تعلق چه دَ ایمان سره دې اوکوم چه اهل سنت معیوب ګڼړی.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله تحقیق:** په دې سلسله کښې حافظ ابن حجر رحمه الله دَ نور تحقیق کولو سره فرمائی چه ما دَ حسن بن محمد رحمه الله کتاب لوستلې په هغې کښې دَ تقوی دَ وصیت اودَ وعظ باره کښې یو اُوږد کلام وو. دَ هغې په آخره کښې لیکلې شوې وو چه مونږ دَحضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما سره دَ دوستئی اظهار کوو. اودَ هغوی دواړو باره کښې کوشش کوو (چه څوک دَهغوی باره کښې غلطه خبره اونه کړی) ځکه چه دَامت دَدې دواړو باره کښې څه جنګ جګړه نه ده شوې او امت ته

---

[1]) تهذیب التهذیب: ۳۲۰/۲ تهذیب الکمال:۳۱۸/۶طبقات ابن سعد:۳۲۸/۵ البدایة والنهایة:۱۵۱/۹تاریخ ابن عساکر:۲۴۹/۴تاریخ الإسلام: ۱۳۳/۳.

[2]) ابن عساکر: ۲۴۹/۴تاریخ الإسلام: ۱۳۳/۳کښې جحدب اوجندب نقل دی.

[3]) تهذیب الکمال: ۳۲۱/۶تاریخ الإسلام:۱۳۳/۳تاریخ ابن عساکر: ۲۴۹/۴.

[4]) بدایة والنهایة: ۱۵۱/۹تاریخ الإسلام: ۱۳۳/۳تاریخ ابن عساکر: ۲۴۹/۴.

[5]) ریخ الإسلام: ۱۳۳/۳تاریخ ابن عساکر:۲۵۰/۴ تهذیب الکمال: ۳۲۲/۶.

[6]) ریخ الإسلام: ۱۳۳/۳.

[7]) ذیب التهذیب: ۳۲۱/۲.

دَهغوی په معامله کښې هیڅ شك نشته. البته دَهغوی نه پس کوم خلق چه په فتنه کښې اخته کړې شو دَهغوی معامله مؤخرکوو اودَ هغوی معامله دَ الله تعالی په حواله کوو.(۱)

حافظ صاحب فرمائی چه دَ حسن بن محمد رحمه الله دَ دغه مذکوره کلام مطلب دا دې چه هغه دَ مسلمانانو دَدې دواړو جماعتونو باره کښې دَ خطاء او صواب آخری فیصله نه کوی دَ چا په مینځ کښې چه دَ فتنه په زمانه کښې جګړه اوشوه. بلکه هغوی دَ دوی معامله دَ الله تعالی په حواله کوله دې نه معلومه شوه چه دَهغوی مراد دَ ارجاء نه هغه نه دې دَ کوم تعلق چه دَایمان سره دې لهذا دَدې قول په وجه هغوی ته څه عیب اوخامی نه کیږی.(۲)

**دَ مذکوره ارجاء نه رجوع:** دې نه علاوه دَحسن بن محمد رحمه الله نه دَ ارجاء دَدې قول (دَ کوم وضاحت چه وړاندې اوکړې شو) نه رجوع هم ثابته ده. چنانچه عطاء بن سائب دَ زاذان اومیسره رحمهما الله نه نقل کړی دی چه هغوی دواړو دحضرت حسن په خدمت کښې حاضر شو اودې دواړو هغه په ارجاء باندې دَهغه په لیکلې شوی کتاب باندې ملامت کړو نوحضرت حسن بن محمد رحمه الله اوفرمائیل ((لوددت أنی مت ولم أکتبه))(۳) افسوس چه زه مړشوې وې خو چه دا مې نه وې لیکلې.

دَ سابقه تصریحاتو نه یوخودهغوی طرف ته منسوب دَ ارجاء دَ قول حقیقت معلوم شو اودَهغې نه دَ هغوی رجوع هم ثابته شوه. لهذا دَ ارجاء دَ قول دَ وجې نه په هغوی باندې عیب لګول صحیح نه دی.

**وفات:** دَهغوی دَ وفات په کال کښې اختلاف دې. ابویعقوب اسحاق بن ابراهیم بن عبدالرحمن هروی او ابوعبید القاسم بن سلام وغیره رحمهم الله نه ۹۵هجری نقل دې.(۴)

خلیفه بن خیاط او محمدبن عمرو اقدی وائی چه دَحضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله په دور خلافت کښې انتقال شوې.(۵)خلیفه بن خیاط طبقات کښې فرمائیلی چه ۹۹ یا ۱۰۰هجری کښې انتقال شوې. اودَ خلیفه بن خیاط نه په تاریخ کښې ۱۰۱هجری قول هم نقل دې.(۶)هم دا علامه مزی دَ ابن عساکر نه هم نقل کړې دې.(۷)

**په اقوالوکښې تطبیق:** په طبقات کښې ذکر شوې ۹۹یا ۱۰۰هجری اودَعمر بن عبدالعزیز رحمه الله دَ دور خلافت والاقول کښې هیڅ تعارض نشته دې ځکه چه ۹۹او ۱۰۰هجری هم دَ عمر بن عبدالعزیز رحمه الله دور خلافت دې. اودَ ۱۰۱ هجری والا قول مزی اوابن عساکر دواړو وهم دې دَ یویل نه نقل کونکی راروان دی.(۸)

## شرح حدیث

(۱) ذیب التهذیب: ۳۲۱/۲تاریخ الإسلام:۱۳۳/۳.

(۲) ذیب التهذیب: ۳۲۱/۲.

(۳) ریخ الإسلام: ۱۳۳/۳ تاریخ ابن عساکر: ۲۵۰/۴تهذیب الکمال: ۳۲۲/۶.

(۴) تاریخ الإسلام: ۱۳۴/۳طبقات ابن سعد: ۳۲۸/۵ تهذیب الکمال: ۳۲۲/۶الکاشف: ۳۳۰/۱خلاصة الخزرجی ص: ۸۱

(۵) تاریخ الإسلام: ۱۳۴/۳طبقات ابن سعد: ۳۲۸/۵ البدایة والنهایة: ۱۵۱/۹.

(۶) سیر أعلام النبلاء: ۱۳۰/۴تهذیب التهذیب: ۳۲۱/۲-۳۲۰تاریخ ابن عساکر: ۲۵۰/۴ تهذیب الکمال: ۳۲۲/۶تهذیب الأسماء واللغات: ۱۶۰/۱ تقریب ا لتهذیب ص: ۱۶۴.

(۷) تاریخ ابن عساکر: ۲۵۰/۴تهذیب الکمال: ۳۲۲/۶.

(۸) تعلیقات تهذیب الکمال: ۳۲۳/۶-۳۲۲.

**قوله: قال: قال لي جابر: وأتاني ابن عمك:** ابوجعفر رحمه الله وائي چه ماته جابر رضي الله عنه اوفرمائيل ماله ستاد تره خوئي راغلو. حضرت جابر رضي الله عنه چه دا كوم ابوجعفر رحمه الله ته اوفرمائيل ((أتاني ابن عمك)) نودا ئي دَمجاز او تسامح په توګه فرمائيلي دي. ځكه چه دَحضرت جابر رضي الله عنه مراد ((ابن عمك)) نه حسن بن محمد بن حنفيه دې چه په حقيقت كښې دَ هغه دَ تره خوئي نه دې بلكه دَهغوي پلار زين العابدين علي بن حسين دَ تره خوئي وو. دَ دواړو دَ نسب سلسله داسې ده : ابوجعفر الباقر محمدبن علي بن حسين بن ابي طالب اوحسن بن محمدبن (الحنفيه) علي بن ابي طالب، الغرض ابن عمك وئيل دَ مجاز اوتسامح په توګه دي. [1]

**يعرّض بالحسن بن محمدبن الحنفية:** دَهغوي ارشاد دَ حسن بن محمد بن حنفيه طرف ته وو. ((يعرّض بالحسن)) دا الفاظ دَ راوي حديث حضرت ابوجعفر المعروف باقر رحمه الله دي اودَ يعرّض فاعل حضرت جابر رضي الله عنه دې.[2] دَ ((يعرّض بالحسن)) دا جمله ((قال لي جابر)) نه حال جوړېږي. [3]يعني ابو جعفر رحمه الله وائي چه ماته حضرت جابر رضي الله عنه اوفرمائيل په داسې حال كښې چه دَهغه اَرشاره محمدبن حنفيه طرف ته وه.

**دَ تعريض لغوي معنى:** په لغت كښې تعريض خلاف التصريح يعني مبهم خبرې ته وائي. [4]

**دَتعريض اصطلاحي معنى اوتعريف:** علامه جرجاني رحمه الله دَ تعريض تعريف په دې الفاظوكښې كړې دې: ((التعريض في الكلام ما يفهم به السامع مراده من غير تصريح)) [5]يعني تعريض في الكلام دادې چه اوريدونكي بغيردَ تصريح دَ متكلم مراد باندې پوهه شي. علامه زمخشري رحمه الله ليكلي دي ((التعريض: أن تذكر شيئاً تدل به على شيء لم تذكره)) [6] يعني تعريض دادې چه متكلم يو څيز ذكر كړي چه په داسې شي باندې دلالت اوكړي دَ كوم ذكر چه هغه نه وي كړې.

شراح حديث علامه كرماني، علامه عيني، علامه قسطلاني اوعلامه انصاري رحمهم الله دَ تعريض اصطلاحي تعريف په دې الفاظوسره كړې دې: ((عبارة عن كناية تكون مسوقة لأجل موصوف غير مذكور)) [7]يعني په اصطلاح كښې تعريض داسې كنايه نه عبارت دې كوم چه دَ يوموصوف غيرمذكور دَپاره راوړلې شوې وي.

---

[1] شرح الكرماني:١١٨/٣فتح الباري:٤٨٥/٢ عمدة القاري:٣٠٠/٣ إرشادالساري: ٤٩٤/١تحفة الباري : ٢٢٢/١الكوثر الجاري:٤١٣/١.

[2] لامع مع الكنز المتواري:١٩٥/٣.

[3] عمدة القاري:٣٠٠/٣.

[4] النهاية لابن الأثير:١٨٦/٢ الصحاح للجوهري: ص:٦٩٢لسان العرب: ١٤٩/٩ شرح الكرماني: ١١٨/٣عمدة القاري:٣٠٠/٣.

[5] كتاب التعريفات ص:٤٥.

[6] تفسير الكشاف: ٣١١/١عمدة القاري:٣٠٠/٣.

[7] عمدة القاري:٣٠٠/٣إرشادالساري:٤٩٤/١تحفة الباري: ٢٢٢/١.

صاحب کشاف اصطلاحات الفنون کښې فرمائي چه تعریض دَ تصریح په وزن باندې دې. دَ اهل بیان په نیز تعریض وائی لفظ په معنی موضوع لَه کښې استعمالول دَ غیر موضوع لَه طرف ته اشاره کولوسره.([1])

**دَتعریض قسمونه:** علامه سبکی رحمه الله فرمائی دَ تعریض دوه قسمونه دی.

**رومبې قسم:** ((قسم یراد به معناه الحقیقي ویشار به إلی المعنی الآخر المقصود)) یوقسم دادې چه دَ لفظ نه دَ هغې حقیقی معنی مراد واخستې شی اودَې په ذریعه یوبلې معنی مقصودې طرف ته اشاره هم اوکړې شی لکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَمَالِيَ لَآ أَعۡبُدُ ٱلَّذِي فَطَرَنِي﴾ ([2])ماسره کوم یوعذر دې چه زه دَهغه عبادت اونه کړم چاچه زه پیداکړې یم. په دې سره دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چه اې زما دَ قوم خلقو تاسو سره کوم یو عذر دې چه تاسو دَهغه عبادت نه کوئی چاچه تاسو پیداکړی یئی دَدې دلیل دَدې وراندینئی جمله ﴿وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ﴾ ([3])ده.

**دویم قسم:** ((قسم لایراد، بل یضرب مثلاً للمعنی الذي هومقصود التعریض))([4]) دویم قسم هغه دې په کوم کښې چه حقیقی معنی مراد نه اخستلې کیږی بلکه دَ تعریض نه چه کومه معنی مقصودوی دَهغې دَپاره مثال بیانولې شی لکه دَحضرت ابراهیم علیه السلام قول ﴿بَلۡ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمۡ هَٰذَا﴾ ([5])وئی فرمائیل چه نه بلکه دَدوی دې مشر کړی دی. دلته دَ ابراهیم علیه السلام مقصود حقیقی معنی نه ده بلکه دَتعریض سره معنی مقصود (عاجز اله نه شی جوړیدې) دَپاره دا قول په توګه دَ مثال پیش کړې دې لکه څنګه چه دَدوی مشر عاجز دې هم هغه شان دَ دغه نور هم.

**دَعلامه سیوطی رحمه الله قول:** علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه دَ تعریض یوصورت دا هم دې چه ((أن یخاطب واحد ویراد غیره)) یومخاطب کولوسره دویم مراد واخستې شی.([6])

**دَ تعریض دَ تسمیه وجه:** تعریض ته تعریض څکه وائی چه په دې کښې کلام یوطرف ته مائل کولې شی او په دې سره اشاره بل طرف ته کولې شی لکه چه ((نظر إلیه بعرض وجهه)) هغه وخت وئیلې شی چه کله دَ کتونکی مخ یوطرف ته وی او ګوری بل طرف ته.([7])

**په حدیث کښې کوم یوتعریض مرادې:** په حدیث کښې دَتعریض دویم قسم مراد دې په کوم کښې چه حقیقی معنی مراد نه شی اخستې نودلته هم دَ حضرت جابر رضي الله عنه دَ ارشاد ((ابن عمك)) نه حقیقی معنی مراد نه ده بلکه مجازی اوتسامح مراد دې. کمامر.

**قوله:: قال: کیف الغسل من الجنابة؟:** هغوی (حسن بن محمد بن حنفیه) تپوس اوکړو چه دَ جنابت غسل څنګه کول پکاردی؟ دَ سابقه باب دویم حدیث کښې هم دَ غسل باره کښې سوال وو

---

[1]) موسوعة کشاف اصطلاحات الفنون والعلوم: ۴۹۲/۱.س

[2]) سورت یسین: ۲۲.

[3]) سورت یسین: ۲۲ اوتاسو له هم دَهغه طرف ته واپس تلل دی.

[4]) کشاف اصطلاحات الفنون والعلوم/۴۸۲ الإتقان في علوم القرآن: ۹۶/۲.

[5]) سورت الانبیاء:۶۳

[6]) الإتقان النوع الرابع والخمسون فی کنایاته وتعریضه: ۹۶/۲.

[7]) الإتقان للسیوطی:۹۶/۲.

اودلته هم دي. آيا دا دواړه هم يوه واقعه ده يا جدا جدا واقعات دي؟ په دواړو کښې سوال دَ غسل دکيفيت باره کښې وو که دکميت باره کښې؟ په دې باره کښې دَ حديث شراح کښې اختلاف دې.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله دواړه روايات جدا جدا واقعات ګرځولې دي اوفرمائيلې دي چه په رومبې روايت کښې سوال دَ کميت ماء باره کښې وو او په دې روايت کښې دَ غسل دکيفيت باره کښې دې. حافظ صاحب ددې وضاحت داسې کړې دې چه په حديث باب کښې دَ حضرت جابر رضي الله عنه ارشاد «أتاني» نه معلوميږي چه دلته حسن بن محمد بن حنفيه سوال دَ ابوجعفر رحمه الله په غيرموجودګئ کښې وو اودا سوال په حديث سابق کښې دَ ابوجعفر رحمه الله دَ سوال نه علاوه دې ځکه چه هلته سوال په غسل کښې دَ اوبو کميت (مقدار) باره کښې وو لکه چه دَ حضرت جابر رضي الله عنه په جواب کښې «يكفيك صاع» نه مشعر دې او دلته په حديث باب کښې سوال دَ کيفيت غسل باره کښې دې کوم چه دَ سائل الفاظ «كيف الغسل» نه ظاهر دي. په دواړو روايتونو کښې حضرت جابر رضي الله عنه سره جګړه کونکې حسن بن محمدبن حنفيه دې لهذا هغه دَ حضرت جابر رضي الله عنه جواب کميت (يوصاع) باره کښې دا اووئيل چه «مايكفيني» اودَ دغه نه کافي کيدو علت او وجه ئې اونه خودله. اودَ کيفيت سره متعلق سوال په جواب «ثلاثة أكف» باره کښې اووئيل چه «إني كثيرالشعر» يعنې زما دَپاره درې لپې کافي دي ماته دَ دريو نه دَ زياتو ضرورت نه پيښيږي. دَ زيات ضرورت پيښيدو علت ئې دَ ويښتو زياتوالې اوخودلو. نو دَدې په جواب کښې حضرت جابر دَ تنبيه په توګه اوفرمائيل چه دَ رسول الله ويښته تانه زيات ګڼړ او پاک وو دَهغوې دَپاره به درې لپې کافي کيدل.[1]

**دَعلامه عيني رحمه الله رائې:** علامه عيني رحمه الله دَ حافظ رحمه الله داخبره رد کړې ده چه دَ باب سابق روايت اوحديث باب دوه جدا جدا واقعات دي او په رومبي روايت کښې سوال دَ کميت باره کښې اودويم کښې دَ کيفيت باره کښې وو. هغه فرمائي چه حافظ رحمه الله ته په حديث باب کښې مصرح لفظ «كيف» سره اشتباه شوې ده حالانکه دواړه روايتونه هم يوه واقعه ده او په دواړو کښې سوال دَ غسل جنابت دَ کيفيت سره متعلق دې. البته په حديث باب کښې دَ لفظ «كيف» صراحت دې او باب سابق په روايت کښې دا دَ اختصار دَ وجې نه حذف کړې شوې دې. مګر مقصود په دې کښې هم کيفيت معلومول وو اولفظ «كيف» په حالت باندې دلالت کوي.[2] علامه عيني رحمه الله نور فرمائي چه په دواړو روايتونو کښې دَ سوال جواب کميت (مقدار) بنائي ځکه چه دَ سابق باب روايت کښې دَ سوال په جواب کښې

«يكفيك صاع» اوحديث باب کښې دَ سوال په جواب کښې «ثلاثة أكف» اوفرمائيل اودا دواړه الفاظ په کميت ماء باندې دلالت کوي.[3]

**دَ علامه عيني رحمه الله په توجيه باندې اشکال:** دَعلامه عيني رحمه الله په ذکرشوې پورتنئ توجيه باندې دا اعتراض کيدې شي چه تاسو ځنګه وئيلې شئ چه په دواړو روايتونو کښې سوال دَ حالت غسل باره

---

[1]) فتح الباري:۲/۴۸۶-۴۸۵.

[2]) عمدة القاري:۳/۳۰۱.

[3]) عمدة القاري:۳/۳۰۱.

كښې دي او جواب دواړو څايونوكښې دَ كميت باره كښې دې. (نودغه شان خو به په سوال اوجواب كښې مطابقت هم رانه شي).

**دَ اشكال جواب:** علامه عيني رحمه الله دَدې اعتراض دا جواب وركړې دې چه حالت هم كيفيت ته وائي دَ غسل يوحقيقت دې او يوحالت. دَ غسل حقيقت دادې چه په ټول بدن باندې اوبه اوبهيولې شي او حالت دادې چه په غسل كښې يوصاع يا درې لپې اوبه استعمال كړې شي. په رواياتوكښې سوال دَ حقيقت غسل باره كښې نه دې بلكه دَ غسل دَ حالت باره كښې وو په دې وجه په دواړو ځايونوباندې ((كم)) په ذريعه جواب وو. باقي پاتې شوه خبره دَ مطابقت نوكم اوكيف سره دَدې چه دواړه جدا جدا شئيونه دي مگر په عرض كيدو كښې دواړه متحد دي. په دې توگه چه دَ دواړو شمير په مقولات تسعه كښې كيږي كوم چه دَ اعراض دَ قبيل نه دې. دَ كوم مقابل چه حقيقت (جوهر) وي خودلته نه دَحقيقت متعلق سوال دې اونه جواب. ځكه چه دَ رسول الله ﷺ بعثت دَ حقائق دَ بيانولودپاره نه وو شوې بلكه دَ احكامو دَ بيان دپاره شوې وو اواحكام دَ حقيقت دَ عوارضو نه دي. كه هغه دَ كيف دَ قبيل نه وي اوكه دكم. نو په دې حيثيت سره (چه دَ كم اوكيف دواړو تعلق دَ عوارض سره دې) په سوال اوجواب كښې مطابقت كيږي.([1])

**دَ شيخ الحديث مولانازكريا رحمه الله رائې:** حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا كاندهلوي نورالله مرقده دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې خبرې ترديدكوي چه دا دواړه دوه واقعې دي هغه فرمائي چه زما په نيز دَ دوو واقعو هيڅ وجه ښكاره نه ده ځكه چه هم هغه حسن بن محمد بن ا لحنفيه دې اوهم هغه حضرت جابر رضي الله عنه لهذا صرف دومره خبره ده چه هلته مقدرا بيانول وو هغه ئې بيان كړو اودلته كيفيت مقصود وو هغه ئې ذكركړو.([2])

**قوله:: فقلت: كان النبي ﷺ يأخذ ثلاثة أكف:** ما اووئيل نبي كريم ﷺ به درې لپې اوبه اخستلې. دكريمه په روايت كښې ثلاثة أكف تاء سره اودَ باقي حضراتو روايت ثلاث أكف بغير دَ تاء مروي دې.([3])

أكف جمع ده دَ كف. كف دَ لاس (يعني دَ گوتو سره دَ لاس دننه حصه (تلې) ته وائي). ([4])دَ اهل لغت په نيز كف مؤنث دې وئيلى شي ((هذه كف واحدة)) ([5])

**يواشكال:** دلته په دې باندې اشكال كيدې شي چه دَ عدد اومعدود دَ قاعدې مطابق دَ دريو نه واخله تر نهو پورې كه چرې تميز مذكر وي نوعدد به مؤنث راوړلې شي اوكه چرې تميز مؤنث وي نوعدد به مذكر راوړلې شي. ([6])لهذا دَ دې قاعدې په رڼا كښې كله چه تميز (أكف) مؤنث دې نوعدد (ثلاث) بغيرتاء راوړل پكاروو. خو په روايت كښې ثلاثة تاء سره دې.

---

[1] عمدة القاري:۳۰۱/۳.

[2] تقرير بخاري:۸۱/۲ الكنز المتواري:۱۹۶/۳ الأبواب والتراجم ص: ۶۰.

[3] فتح الباري:۴۸۶/۲عمدة القاري:۳۰۱/۳تحفة الباري: ۲۲۲/۱إرشاد الساري:۴۹۴/۱ التوشيح: ۲۴۴/۱.

[4] لسان العرب:۱۲۴/۱۲القاموس الوحيد: ۱۴۱۵/۲.

[5] لسان العرب:۱۲۴/۱۲الصحاح للجوهري ص: ۹۱۷.

[6] شرح الأشموني:۳۱۴/۳.

**دَ اشکال جواب:** دَدې يوجواب خودادې چه ثلاثة تاء سره دَ کريمه روايت دې دَباقي حضراتو په روايت کښې ثلاث بغيردَ تاء دې لهذا دا اعتراض وارد کيدې نه شي.

**دَ علامه کرماني جواب:** باقي پاتې شوه خبره دَ کريمه په روايت کښې ثلاثة تاء سره نوعلامه کرماني رحمه الله دَ دې دوه جوابونه ورکړي دي: ① دلته دَ کف نه قدر کف يا کوم څه چه په دې کښې خاني کيدې شي يعنى اوبه مراد دې اوهغه مذکر دې. ② يا دکف نه مراد عضو يعنى اندام دې هغه هم مذکر دې نو اوس دَ ثلاثة عدد مؤنث راوړل صحيح کيږي.[1]

**دَ علامه عيني رحمه الله رائې:** علامه عيني رحمه الله دَ علامه کرماني رحمه الله اولنئى رائې محل نظر او دويمه صحيح گرځولې ده. علامه عيني رحمه الله فرماني چه بهتر دا ده چه داسې اووئيلې شي چه دَ کف استعمال مذکر او مؤنث دواړه شان سره کيږي. لهذا په دې اعتبارسره عدد تاء سره او بغيردَ تاء هم راوړل صحيح دي. (هم دغه وجه ده چه په روايت کښې دواړه شان وارد دي).[2]

**دَ ثلاثة اکف مطلب:** ثلاثة أکف مطلب دا شو چه حضورپاك به دَ دريو څلونه هريوځل په دواړو لاسونوسره لپه ډکولو سره اوبه اچولې. ځکه چه لفظ کف جنس دې دَ يو او دوو دواړو احتمال لري. خوهم دَدې باب رومبى حديث کښې «أشاربيديه» دې په کوم کښې چه دَ دواړو لاسونو قيد ذکر دې. لهذا ثلاثة أکف مطلق په دغه مقيد باندې محمول کولې شي.[3]

دَ اسحاق بن راهويه روايت کښې ذکر شوي «وبسط يديه» نه هم دَدې تائيد کيږي کوم چه حسن بن صالح جعفر بن محمد نه هغه دَ خپل پلار نه نقل کړې دې.[4] دَدې تفصيلي بحث هم دَدې باب حديث سابق الفاظ ثلاثاً لاندې تيرشوې دې.

**قوله: : ويفيضها على رأسه:** دَ کشميهني اواصيلي په روايت کښې فيفيضها واؤ په خاني فاء سره دې اودَ على رأسه الفاظ دَ ابوذر په روايت کښې ساقط شوي دي او په يوه نسخه کښې على دَحرف جر نه بغير صرف رأسه نصب سره مروي دې.[5]

**قوله: : ثم يفيض على سائر جسده:** بيا به رسول الله ﷺ په خپل باقي (پوره) بدن باندې اوبه بهيولې. دلته دَ يفيض مفعول الماء محذوف دې. په دې باندې دا اشکال کيدې شي چه ماقبل ثلاثة أکف باندې دَ عطف دَ وجې نه دلته هم ثلاثة أکف مفعول محذوف ولې نه شي منلې کيدې؟

---

[1] شرح الكرماني: ١١٩/٣قال ابن منظور: فأما قول الأعشى: أرى رجلاً منهم أسفاً كأنما يضمّ إلى كشحيه كفاً مخضباً، فإنه أراد الساعد فذكر وقيل: إنما أراد العضو. (لسان العرب: ١٢٤/١٢).

[2] عمدة القاري:٣٠١/٣فتح الباري:٢٢٢/١إرشاد الساري:٤٩٤/١.

[3] شرح الكرماني: ١١٩/٣ فتح الباري: ٤٨٦/٢عمدة القاري٣٠١/٣إرشادالساري:٤٩٤/١ تحفة الباري: ٢٢٢/١.

[4] فتح الباري:٤٨٦/٢عمدة القاري:٣٠١/٣إرشاد الساري:٤٩٤/١.

[5] إرشادالساري:٤٩٤/١تحفة الباري:٢٢٢/١عمدة القاري: ٣٠١/٣.

شراح حديث دَدې جواب دا ورکړې دې چه په عام توګه عادتًا درې لپې اوبه دَ باقی تول بدن دپاره ناکافی دی په دې وجه دَ يفيض مفعول الماء محذوف راويستلې شی.[1]

**قوله: فقال لي الحسن: إني رجل كثير الشعر:** په دې باندې حسن ماته اوونيل زه دَ ډيرو ويښتو والا سړې يم. دَ حسن نه مراد حسن بن محمد بن الحنفيه دې.[2] «إني رجل كثير الشعر» مطلب دا شو چه زما ويښته ډير زيات دی زما دپاره درې لپې اوبه ناکافی دی.[3]

**قوله: فقلت: كان النبي ﷺ أكثر منك شعراً:** (حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه) ما په جواب کښې اوونيل دَ نبی کريم ﷺ ويښته تانه زيات وو. يعنی دَ حضورپاک ويښته مبارك ستاد ويښتونه زيات وو او هغوی ﷺ ته به دومره مقدار کافی کيدلې لهذا چه کوم مقدار دَحضورپاك دپاره کافی کيدلو په هغې باندې زياتوالې غلو اوتکلف دې اودَ لوئی خوښولو خبره ده. ممکن ده چه دَ شيطان دَ وسوسې اچولوسره دا سې شوې وی نو دَهغې طرف ته دَ خيال کولو ضرورت نشته.[4]

**دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه په ترجمه کښې په سر باندې دَ دريو لپو اوبو بهيولو ذکر دې او په حديث کښې «كان النبي صلى الله عليه وسلم يأخذ ثلاثة أكف ويفيضها على رأسه» کښې درې لپې اوبه په سرباندې دَ بهيولو صراحت دې. په کوم سره چه بغيردَ څه اخفاء نه ترجمه ثابتيږی.

**دَ حديث نه مستنبط شوی أمور:** دَدې حديث نه دا لاندينی امور مستنبط کيږی:

① په سرباندې درې لپې اوبو اچولو باندې اکتفاء کول پکاردی سره دَدې چه ويښته هر څومره زيات وی.[5]

② په باقی بدن باندې دَ اوبو بهيولو نه وړاندې په سرباندې درې لپې اوبه اچول مستحب دی.[6]

③ په دينی امورو کښې دَ علماء نه په سوال کولو باندې ترغيب ورکړې شوې دې.[7]

④ که چرې دَ مسئلې علم وی نو دَهغې جواب ورکول ضروری دی.[8]

⑤ دَدې خبرې طرف ته اشاره ده چه دَنبی کريم ﷺ عادت دَ دريو لپو اوبو استعمالولو وو.[9]

---

[1]) شرح الكرماني: ١/١١٩تحفة الباري: ١/٢٢٢عمدة القاري: ٣/٣٠١.
[2]) إرشادالساري: ١/٤٩٤.
[3]) شرح الكرماني: ٣/١١٩عمدة القاري: ٣/٣٠١.
[4]) فتح الباري: ٢/٤٨٦عمدة القاري: ٣/٣٠١إرشادالساري: ١/٤٩٤.
[5]) عمدة القاري: ٣/٣٠١شرح ابن بطال: ١/٣٨٤.
[6]) شرح الكرماني: ٣/١١٩عمدة القاري: ٣/٣٠١ شرح ابن بطال: ١/٣٨٤.
[7]) عمدة القاري: ٣/٣٠١.
[8]) عمدة القاري: ٣/٣٠١.
[9]) عمدة القاري: ٣/٣٠١.

# ۵-باب: اَلْغُسْلُ مَرَّةً وَاحِدَةً

## هم یوځل لامبل

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه عینی رحمه الله او شیخ الاسلام علامه زکریا انصاری رحمه الله په نیز دامام بخاری رحمه الله ترجمه نه مقصود په غسل کښې دَ بدن یو ځل وینځلو حکم بیانول دی.(۱)

**دعلامه عثمانی رحمه الله رائې:** علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه باب سابق کښې دَ کوم غسل ذکر اوشو هغه درجه کمال او استیعاب دې. که چرې دَ وخت او اوبو کمې وی نوصرف یو ځل اوبه اچول هم کافی کیدې شی اودَ فرض دادا کولودپاره هم دغه کافی دی.(۲)

**دعلامه کشمیری رحمه الله او حضرت شاه ولی الله رحمه الله رائې:** علامه شاه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دې باب کښې امام بخاری رحمه الله په غسل کښې د بدن یوځل وینځلو ذکرکړې دې لکه چه ترجمه دَ بیان دَ جواز دپاره ده. ((وهوجائزعندناأيضاً)) اودا زمونږ دَ احنافو په نیز هم جائز دی.(۳)هم دغه خبره شاه ولی الله رحمه الله هم فرمائیلې ده چه ((هوجائزثابت))(۴)

**دَ شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه اقرب او ظاهر هم دادی چه مصنف ابن ابی شیبه رحمه الله په اکثرو روایاتوکښې تثلیث فی الغسل وارد شوې دې نو امام بخاری رحمه الله په دې خبره باندې تنبیه فرمائی چه تثلیث واجب نه دې بلکه څنګه چه په اودس کښې درجه دَ فرض مرة مرة (یعنی یوځل وینځل) دی دغه شان په غسل کښې هم فرض یوځل وینځل دی او په دې باندې اقتصار جائزدې.(۵)(باقی پاتې شوه خبره دَ تثلیث والارو ایاتو نوهغه په استیعاب باندې محمول دی).

**دَ امام ابوداؤد رحمه الله دَ یوروایت طرف ته اشاره:** بعض حضرات فرمائی چه امام ابوداؤد رحمه الله دَ عبدالله بن عمر رضي الله عنه روایت نقل کړې دې چه په شروع کښې مونځونه پنځوس او دَ جنابت غسل اووه ځل فرض شوې وو. رسول الله صلی الله علیه وسلم الله تعالی ته دَتخفیف درخواست کولو تردې چه مونځونه پنځه پاتې شو او غسل د جنابت یو ځل پاتې شو.(۶)

---

(۱) عمدة القاری:۳/۳۰۱تحفة الباری: ۱/۲۲۲.

(۲) فضل الباری:۲/۴۳۱.

(۳) انوار الباری:۹/۱۹۷فیض الباری:۱/۴۵۵.

(۴) شرح تراجم أبواب البخاری ص:۱۸.

(۵) الکنز المتواری: ۳/۱۹۶تقریر بخاری: ۲/۸۱

(۶) الحدیث أخرجه أبوداؤد فی سننه قال: حدثنا قتیبة بن سعید: حدثنا أیوب بن جابر عن عبدالله بن عُصْم، عن عبدالله بن عمر قال: "کانت الصلاة خمسین والغسل من الجنابة سبع مرار وغسل البول من الثوب سبع مرار، فلم یزل رسول الله صلی الله علیه وسلم یسأل حتی جعلت الصلاة خمساً والغسل من الجنابة مرة وغسل البول من الثوب مرة" (کتاب الطهارة، باب فی الغسل من الجنابة، رقم الحدیث ۲۴۷).

ممکن ده چه دامام بخاري رحمه الله دې حدیث طرف ته اشاره مقصودوی چه د اووه ځل حکم منسوخ دې. دا د اسلام په شروع کښې حکم وو. اوس يوځل غسل کول هم کافي دی.[1] چونکه دا حديث على شرط البخاری نه وو په دې وجه امام بخاري رحمه الله په بخاري شريف کښې دا ذکرنه کړو.

## الحديث الأول

۲۵۷-حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَاحِدِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَتْ مَيْمُونَةُ: «وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاءً لِلْغُسْلِ، فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا، ثُمَّ أَفْرَغَ عَلَى شِمَالِهِ، فَغَسَلَ مَذَاكِيرَهُ، ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ بِالأَرْضِ، ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ أَفَاضَ عَلَى جَسَدِهِ، ثُمَّ تَحَوَّلَ مِنْ مَكَانِهِ فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ» [حديث باب: ر: ۲۴۶] [2]

**ترجمه**: موږ ته موسیٰ (بن اسماعیل) بیان اوکړو اووئیل موږ ته عبدالواحد (بن زیاد) هغه دا عمش نه، هغه د سالم بن ابی الجعد نه، هغه د کریب نه هغه د ابن عباس رضي الله عنهما نه هغه اووئیل چه ام المؤمنین حضرت میمونه رضي الله عنها اوفرمائیل چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د غسل دپاره اوبه کیخودلې نوحضورپاك (اول) خپل لاسونه دوه ځل یا درې ځل اووینځل بیا حضورپاك په خپل ګس لاس باندې اوبه واچولې اوخپل شرمګاه ئی اووینځلو بیائی خپل (ګس) لاس په زمکه راښکلو بیائی غرغرې اوکړې او پوزه کښې اوبه واچولې اوخپل مخ او دواړه لاسونه ئی اووینځل، بیائی خپل (باقی) ټول بدن باندې اوبه اوبهیولې، بیا حضورپاك خپل ځائی (چرته چه ئی غسل کولو) نه اخوا شو اوخپلې دواړه خپې ئی اووینځلې.

---

[1] تقرير بخاري:۸۱/۲

[2] الحديث أخرجه البخاری فی صحيحه أيضًا فی كتاب الغسل، باب الوضوء قبل الغسل، رقم الحديث: ۲۴۹، وأخرجه أيضًا فی الكتاب نفسه، فی باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة، رقم: ۲۵۹ بنحوه، وفيه أيضاً، باب مسح اليد بالتراب لتكون أنقى، رقم: ۲۶۰، وفيه أيضاً باب تفريق الوضوء والغسل، رقم: ۲۶۵، بنحوه مختصراً، وفيه أيضاً، باب من أفرغ بيمينه على شماله فى الغسل رقم: ۲۶۶، بنحوه، وفيه أيضاً باب من توضأ فى الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد غسل مواضع الوضوء منه مرةً أخرى رقم: ۲۷۴بنحوه، وفيه أيضاً باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة رقم: ۲۷۶، وفيه أيضاً فى باب التستر فى الغسل عند الناس رقم: ۲۸۱، مختصراً نحوه وفيه أيضاً، باب الغسل بالصاع ونحوه رقم: ۲۵۳ وأخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض باب تستر المغتسل بثوب ونحوه رقم: ۷۶۴مختصراً، وفيه أيضاً باب صفة غسل الجنابة رقم: ۷۲۲ وأخرجه أبوداؤد فى سننه مطولاً فى كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة رقم: ۲۴۵ وأخرجه الترمذى فى جامعه فى كتاب الطهارة باب ماجاء فى الغسل من الجنابة بنحوه مختصراً، وقال هذا حديث حسن صحيح رقم: ۱۰۳ وأخرجه النسائى فى سننه فى كتاب الطهارة باب غسل الرجلين فى غير المكان الذى يغتسل فيه رقم: ۲۵۳ وأيضاً فى كتاب الغسل والتيمم باب إزالة الجنب الأذى عنه قبل إفاضة الماء عليه بنحوه، مختصراً رقم:۴۱۸ وأيضاً فى الكتاب نفسه، باب مسح اليد بالأرض بعد غسل الفرج: ۴۱۹ وفيه أيضاً باب الاستتار عندالغسل، مختصراً رقم: ۴۰۶ وفيه أيضاً باب الغسل مرة واحدة رقم: ۴۲۸ وأخرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة وسننها، باب المنديل بعد الوضوء وبعدالغسل مختصراً رقم: ۴۶۷ انظر جامع الأصول رقم: ۵۳۲۱ وتحفة الأشراف رقم: ۱۸۰۶۴.

## تراجم رجال

**موسیٰ:** دا ابوسلمه موسیٰ بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دي. دَدوی حالات بدء الوحی، باب کیف کان بدء الوحي إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم څلورم حدیث په ذیل کښې [1] او کتاب العلم باب من أجاب الفتیا بإشارة الید والرأس رومبی حدیث په ذیل کښې بیان کړې شوی دی. [2]

**عبدالواحد:** دا عبدالواحدبن زیاد عبدی بصری رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الإیمان باب الجهاد من الإیمان رومبی حدیث لاتدې تیرشوی دی. [3]

**الاعمش:** دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسد کوفی رحمه الله دي. اعمش دَدوی لقب دي. دَدوی احوال کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم دَ رومبی حدیث لاتدې تیر شوی دی. [4]

**سالم بن ابي الجعد:** دا سالم بن ابی الجعد رافع اشجعی دي. [5] دَدوی حالات کتاب الوضوء باب التسمیة علی کل حال وعند الوقاع لاتدې تیرشوی دی.

**کُریب:** دا کریب بن ابی مسلم قرشی رحمه الله دي دَدوی احوال کتاب الوضوء باب التخفیف في الوضوء لاتدې تیر شوی دی.

**ابن عباس رضي الله عنهما:** دادَ حضورپاک دَتره څوئی عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف دي. دَدوی حالات بدء الوحی باب کیف کان بدء الوحي إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم څلورم حدیث په ذیل کښې [6] او کتاب الإیمان باب کفران العشیر وکفر دون کفر [7] لاتدې تیرشوی دی.

**میمونة رضي الله عنها:** دادَ رسول الله ﷺ زوجه مطهره ام المؤمنین حضرت میمونه بنت الحارث رضي الله عنها ده. دَدوی حالات کتاب العلم باب السمر في العلم دویم حدیث لاتدې تیر شوی دی. [8]

**شرح حدیث:** **وضعت للنبي صلی الله علیه وسلم ماء للغسل فغسل یدیه:** حضرت میمونه رضي الله عنها اوفرمائیل چه ما دَ نبی کریم ﷺ دَ غسل دَپاره اوبه کیخودې نواول حضورپاک خپل دواړه لاسونه اووینځل.

**قوله: : یدیه:** یدیه تثنیه سره، دکشمیهنی روایت دي خودَ حموی اومستملی وغیره روایت یده مفرد وارد شوې دي. [9]

**قوله: : مرتین أوثلاثا:** (حضورپاک خپل دواړه لاسونه) دوه یا درې ځل اووینځل.

---

[1] کشف الباری:۱/۴۳۴-۴۳۳.
[2] کشف الباری:۳/۴۷۹-۴۷۷.
[3] کشف الباری:۲/۳۰۳-۳۰۱.
[4] کشف الباری:۲/۲۵۳-۲۵۱.
[5] تهذیب التهذیب: ۳/۴۳۲.
[6] کشف الباری: ۱/۴۳۷-۴۳۵.
[7] کشف الباری: ۲/۲۰۵.
[8] کشف الباری:۲/۴۲۲-۴۲۰.
[9] فتح الباری:۲/۴۸۶ عمدة القاری: ۳/۲۰۲ تحفة الباری: ۱/۲۲۲إرشادالساری:۱/۴۹۵.

**مرتین او ثلاثاً کښې شک دَ چادَ طرف نه دې:** دوه ځل یا درې ځل ئې اووينځل، په دې کښې شک دې داشك دَ چا دَ طرف نه دې. دَحضرت میمونه رضی الله عنها دَ طرف نه یا دَ اعمش رحمه الله دَ طرف نه؟

علامه کرمانی رحمه الله دَ شك نسبت دَحضرت میمونه رضی الله عنها طرف ته کړې دې هغه فرمائی «شك من میمونة» (۱)

شیخ الاسلام علامه زکریا انصاری رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله دَ شك نسبت حضرت میمونه رضی الله عنها اوحضرت اعمش رحمه الله دواړو طرف ته کړې دی. هغوی فرمائی «الشك من الأعمش أومن ميمونة» (۲) یعنی دَ اعمش رحمه الله طرف ته دې یادحضرت میمونه رضی الله عنها طرف ته دواړه احتماله کیدې شی.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله په دې خبره باندې جزم کړې دې چه دلته شك دَاعمش دَ طرف نه دې لکه څنګه چه عن قريب ابوعوانه دَ اعمش نه په روايت کښې راځی. علامه کرمانی رحمه الله شاید دَ ابوعوانه دَاعمش والاروایت هیرکړې دې یا دَهغې طرف ته دَ دوی توجه نه ده تلې په دې وجه هغوی دَ شك نسبت دَ حضرت میمونه رضی الله عنها طرف ته کړې دې. (۳)

**دَعلامه عینی رحمه الله رائې:** علامه عینی رحمه الله خو په دومره خبره کښې دَ حافظ صاحب رحمه الله تائید کړې دې چه شك دَاعمش دَ طرف نه دې. البته هغه فرمائی چه دَ ابوعوانه دَاعمش نه روایت کوم چه «باب من أفرغ بيمينه على شماله فى الغسل» کښې ذکر دې دَهغې الفاظ «فغسلهما مرة أومرتين» نه معلومیږی چه شك په یو ځل یا دوو ځلو وینځلوکښې دې خو په حدیث کښې «مرتين أوثلاثاً» نه معلومیږی چه شك په دوو یا درې ځل وینځلوکښې دې.نولکه چه حافظ صاحب رحمه الله دَ ابوعوانه دَ روایت نه مطلقًا شك دَ اعمش دَ طرف نه کیدل ثابت کړی دی خو علامه عینی رحمه الله دَ اعمش دَ طرف نه شك خودلو نه علاوه په دواړو روایتونو کښې موضع شك هم تعیین کړې دې. (۴)

**قوله:: ثم أفرغ على شماله:** بیا حضورپاك په خپل ګس لاس باندې اوبه واچولې. **شمال** دَ شین کسره سره دَ **یمین** ضد اونقیض (ګس) ته وائی. **أشمل، شمل** او **شمائل** دَدې جمع راځی. (۵) دلته دَ شمال نه مراد ګس لاس دې. شمال دَ شین فتحه سره دَ جنوب ضد دې. (۶)

**قوله:: فغسل مذاكيره:** بیائی خپل شرمګاهونه اووينځل. مذاکیر جمع دَ ذکر ده اندام مخصوصه ته وائی. اودا جمع خلاف قیاس ده. لکه چه دَدې جمع په ذریعه سره اهل عرب ذکر په معنی دَ اندام مخصوص اود هغه ذکر په مینځ کښې فرق کوی کوم ذکر (سړی) چه انثی په مقابله کښې راځی. (۷) چنانچه **ذکر** په معنی **فحل** جمع **ذكور، ذكران** او **ذكارة** وغیره (دَ **حجارة** په وزن راځی) دې. (۱)

---

۱) شرح الکرمانی:۳/۱۱۹.

۲) تحفة الباری: ۱/۲۲۲إرشاد الساری:۱/۴۹۵.

۳) فتح الباری:۲/۱۵۲.

۴) عمدة القاری:۳/۲۰۲.

۵) لسان العرب:۷/۱۹۹ الصحاح ص: ۵۶۳شرح الکرمانی: ۳/۱۱۹.

۶) شرح الکرمانی:۳/۱۱۹ القاموس الوحید:۱/۸۹۰

۷) لسان العرب: ۵/۵۰فتح الباری:۲/۴۸۶ عمدة القاری: ۳/۲۰۲.

بعض وئیلی دی چه دَ مذاکیر واحد مذکار دی. (۲) امام اخفش وائی لکه چه ابن التین دَهغوی نه نقل کړی دی چه مذاکیر جمع ده دَ کوم چه هیڅ واحد نشته دی لکه چه دَ ابابیل وغیره څه واحد نشته دی. (۳)

**اعتراض**: که چرته څوك دا اووائی چه دَ ابابیل واحد خو أبول راځی لکه چه دَ عجاجیل واحد عجول راځی نو؟

**جواب**: علامه عینی رحمه الله فرمائی دَدې جواب دادې چه مذاکیر هم دَ مذکار جمع ده البته اهل لسان دَدې استعمال ترك کړې دې. (۴) علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه د مذاکیر مفرد مذکار استعمال په اهل عربو کښې داسې متروك دې لکه چه شریعت منسوخه متروك دې. (۵)

**دَمذاکیر جمع راوړلوغرض**: مذاکیر جمع دَ ذکر په معنی دَ اندام مخصوصه خو یو وی نوبیا دا جمع ولې راوړلې شو؟ شراح حدیث دَدې دا جواب ورکړې دې لکه چه حافظ صاحب دَ ابن خروف نه نقل کړی دی چه په انسانی بدن کښې سره دَدې چه ذکر هم یو وی مګر دائی مذاکیر جمع دَدې دپاره راوړې دې چه په دې سره خصیتین وغیره وینځل هم بیانول وو نولکه چه ذکر اوخصیتین وغیره مجموع هر جزدَ وینځلو په حکم کښې په منزلهٔ دَ ذکر اوګرځولې شو او دې ته ئی دَ ذکر نوم ورکړلو. (۶)

**دَ علامه کورانی رحمه الله رائې**: علامه کورانی رحمه الله فرمائی چه دَمذاکیر هیڅ مفرد نه وی لکه چه امام اخفش رحمه الله وائی یادَدې مفرد ذکر په معنی دَ اندام مخصوصه اومنلې شی (لکه څنګه چه اهل لغت وائی)، بهرحال کوم تقدیر هم چه واخستې شی خو په انسانی بدن کښې ذکر صرف هم یو اندام ته وائی. دلته په حدیث کښې مذاکیر ذکرکولو سره خصیتین وغیره دَ وینځلو حکم بیانولو دَ وجې نه جمع راوړلې شوې دې دا دَ تغلیب په توګه دې. (۷)

**قوله: ثم مسح یده بالأرض**: بیا رسول الله ﷺ خپل لاس په زمکه باندې اومږلو. په یده کښې ید مفرد دې. (۸) مراد ترې نه ګس لاس دې. دَ دغه مږلو مقصد دَ نجاست اثرات که چرې په لاس باندې وی نوهغه ختمول اولاس ښه پاکول دی. لکه چه امام بخاری رحمه الله وړاندې ((باب مسح الید بالتراب لتکون أنقی)) په عنوان سره باب قائم کړې دې.

**قوله: ثم أفاض علی جسده**: بیا حضورپاك ﷺ په خپل (باقی) بدن باندې اوبه اوبهیولې.

---

(۱) لسان العرب: ۴۹/۵ التوضیح: ۵۶۲/۴.
(۲) فتح الباری: ۴۸۶/۲.
(۳) لسان العرب: ۵۰/۵ التوضیح: ۵۶۲/۴ شرح الکرمانی: ۱۱۹/۳.
(۴) عمدة القاری: ۳۰۲/۳.
(۵) شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳.
(۶) فتح الباری: ۴۸۶/۲ شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳ عمدة القاری: ۳۰۲/۳.
(۷) الکوثر الجاری: ۴۱۴/۱-۴۱۳.
(۸) إرشاد الساری: ۴۹۵/۱.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث ترجمة الباب سره دَ مناسبت په سلسله کښې شراح حدیث مختلف توجیهات بیان کړی دی:

**دَعلامه ابن بطال رحمه الله توجیه:** ابن بطال رحمه الله دَ حدیث ذکرشوی پورتنی الفاظ «ثم أفاض علی جسده» موضوع ترجمه ګرځولې ده چه په دې کښې حضرت میمونه رضي الله عنها په مطلق توګه باندې دَ اوبو بهیولو ذکر کړې دې دا ئې څه عدد سره مقید کړې نه دې نو دَ کم نه په کم عدد یعنی یو باندې محمول کولې شی. چنانچه هغوی فرمائی «موضع الترجمة من الحدیث فی قوله: "ثم أفاض علی جسده" ولم یذکر مرة ولا مرتین، فیحمل علی أقل مایسمی غسلاً وهو مرة واحدة» (۱)یعنی دَترجمه ثبوت دَ حدیث الفاظ «ثم أفاض علی جسده» سره کیږی ځکه چه راوی دَ یو یا دوو ځل ذکر نه دې کړې، یعنی «ثم أفاض» ئې یو عدد سره مقید کړې نه دې نو دا کم نه کم چه کوم مقدار ته دَغسل نوم ورکولې شی په هغې باندې محمول کړی شي اوهغه یو ځل دی.علامه کرمانی رحمه الله (۲)علامه قسطلانی رحمه الله (۳)او ابن ملقن رحمه الله دَ ابن بطال رحمه الله پورتنې ذکرشوې قول مناسبت ترجمه نقل کړې ده. (۴)حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن بطال رحمه الله دغه پورته ذکر شوې قول نقل کولونه پس لیکلی دی چه اقل عدد هم یو ځل دې هم په دې به محمول کولې شی ځکه چه اصل هم دغه دې چه په دې دې زیاتوالې نه وی سره دَدې چه تکرار مراد اخستل دَ اصل خلاف دی. (۵)

**دَعلامه ابو الحسن سندی رحمه الله رائې:** علامه ابوالحسن نور الدین محمدبن عبدالهادی السندی رحمه الله فرمائی چه دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې توګه دې چه دَ حدیث سیاق په دې خبره باندې دلالت کوی چه دَحضرت میمونه رضي الله عنها مقصود دَحضورپاك دَغسل کیفیت په مکمل توګه بیانول دی. چنانچه «ثم أفاض» کښې متعدد واري حضورپاك اوبه بهیولې وې نوحضرت میمونه رضي الله عنها دَ بیان مقصود دَ تکمیل په خاطر به دا ضرور ذکر فرمائیل لکه چه دَ لاس دَ وینځلو دَ شمیر ذکر ئې فرمائیلې دې. نو په یوداسې مقام باندې دَ ابو بهیولو دَ شمیر ذکر نه کول(دلته دَ لاس دَ وینځلو دَ شمیرذکر دې) ددې خبرې دلیل دې چه دَ اوبو بهیولو تعداد هم یو ځل دې. (۶)

**دَ ابن بطال وغیره بیان کړې شوی تطبیق باندې نقد:** دَدې نه پس علامه سندی رحمه الله دَعلامه ابن بطال رحمه الله وغیره بیان کړې شوی تطبیق باندې نقد کړې دې چه دَامام بخاری رحمه الله ترجمه خوداده چه دَ فرض دَ ادا کولودپاره یوځل اوبه بهیول کافي دی. خو حضرت میمونه رضي الله عنها دَ یو واقعه حکایت کوی دَ کوم نه چه دا نه معلومیږی چه ددې څه کیفیت وو. آیا حضورپاك هم یوځل اوبه بهیولې وې یا ددې نه زیات؟ دا نه معلومیږی لهذا دې وینا کولوسره چه افاضه ماء یو عدد سره مقید نه دې اواقل عدد هم یو دې او اصل دادې چه په دې باندې زیاتوالې اونه شی. دَ دغه عدم ذکر عدد نه په عدم واقعه باندې استدلال نه شی کیدلې. (۷)

---

(۱) شرح ابن بطال: ۳۸۵/۱.

(۲) شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳.

(۳) إرشادالساری: ۴۹۵/۱.

(۴) التوضیح: ۵۶۲/۴

(۵) فتح الباری: ۴۸۶/۲.

(۶) صحیح البخاری: بحاشیة السندی: ۵۷/۱

(۷) صحیح البخاری بحاشیة السندی: ۵۷/۱

**دَعلامه انور شاه کشمیری رحمه الله رائې:** حضرت علامه انور شاه کشمیری رحمه الله «ثم أفاض على جسده» الفاظ موضع ترجمه ګرځولې ده. البته هغوی فرمائی چه ماته دَمراجعت طرق نه پس په دې خبره کښې تردد اوشو چه آیا واقعی نبی کریم صلی الله علیه وسلم په یوځل باندې اکتفا هم کړې وه که نه؟ زما خیال دې چه حضورپاك به په دې واقعه کښې هم دَ عادت مطابق هم درې ځل بدن مبارك وينځلې وی. كه چرې په دې واقعه کښې هم تثليث مراد وی نو بیا به ترجمه صرف دَ مسئله دَ بیان دپاره وی. (١)

**دَعلامه کورانی رحمه الله علامه عثمانی رحمه الله او شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** علامه کورانی رحمه الله (٢) علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله (٣) اوشیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله (٤) دَ رائې حاصل دا دې چه موضع ترجمه «ثم أفاض على جسده» ده، حضرت میمونه رضی الله عنها دَ لاسونو په وینځلوکښې دوه او درې عدد ذکرکړې دې لیکن دې نه علاوه په ټول بدن باندې دَ اوبو بهیولودتعداد ذکر نه دې کړې. که چرې دلته دَعدد ذکروې نوخامخا به ئی نقل کړې وی لکه چه دَ لاسونو په وینځلوکښې ئی دَ عدد تذکره کړې ده. نولکه په دې مقام باندې دَ تعداد نه بیانول او سکوت اختیارول دَدې خبرې دلیل دې چه تکرار ئی واقعتًا نه دې کړې. دَ تکرار په موقع سکوت اختیارول دلیل اوحجت جوړیدې شی.

**دَ علامه عینی رحمه الله وغیره رائې:** علامه عینی رحمه الله (٥) علامه قسطلانی رحمه الله (٦) او علامه زکریا انصاری رحمه الله (٧) فرمائی چه دَ حدیث الفاظ «ثم أفاض» قلیل (یوځل) اوکثیر دواړو ته شامل دی. لهذا دَ قلیل په لحاظ سره دَترجمه مطابقت ښکاره دې او په دې سره ترجمه ثابتیږی.

**فائده:** علامه کرمانی علامه قسطلانی اوعلامه زکریا انصاری رحمهم الله دَ امام نووی رحمه الله نه نقل کړی دی چه دَ جنابت غسل کونکی له پکاردی چه هغه دَ استنجا نه پس دوباره محل دَ استنجا دَ جنابت دَغسل په نسبت باندې اووینځی که چرې هغه داسې اونه کړی نوممکن ده چه دَ غسل دوران کښې دَ هغې وینځل وریادنه شی نودَبعض بدن نه وینځلو دَ وجې نه به دَ هغه غسل نه کیږی. اوکه دَ غسل نه پس یاد شی نو شرمګاه له په لاس اوړلوسره به دَهغه اودس مات شی یا بیا دَ مس فرج نه دَ بچ کیدو دپاره به په لاس باندې کپړه وغیره تاوولو تکلف کول وی. (٨)

**تنبیه:** لیکن دلته دا یاد ساتنې چه دا ټول تفصیل دَ امام شافعی رحمه الله په نیز دې. دَ احنافو په نیز خو په غسل جنابت کښې صرف یوځل په شروع کښې نیت کافی دې هراندام وینځلو په وخت دَ دوباره نیت کولو څه ضرورت اوحاجت نشته دې. (٩) اودغه شان دَاستنجاء نه پس دَ شرمګاه دَ وینځلو حاجت هم

---

(١) فیض الباری:١/٤٥٥.

(٢) الکوثر الجاری: ١/٤١٤.

(٣) فضل الباری:٢/٤٣٢.

(٤) الکنزالمتواری: ٣/١٩٦.

(٥) عمدة القاری: ٣/٣٠٢.

(٦) إرشادالساری: ١/٤٩٥.

(٧) تحفة الباری: ١/٢٢٢.

(٨) شرح الکرمانی: ٣/١٢٠ إرشادالساری: ١/٤٩٥ تحفة الباری:١/٢٢٣.

(٩) الکوثرالجاری:١/٤١٤.

نشته دې یا که چرته شرمگاه وینځل ئې هیر کړې وی نو دوران غسل یا دَغسل نه پس چه کله یاد شی نو وینځلې شی. په مس فرج سره دَ احنافو په نیز اودس نه ماتیږی کما مرفی أبواب الوضوء.

**دَ حدیث نه مستنبط شوې امور:** دَحدیث باب نه شراح حدیث دا لاندینی امور مستنبط کړی دی:

① دَ جنابت دَغسل نه وړاندې دَ لاسونو درې ځل وینځل مستحب دی. [1]

② دَ جنابت دَغسل نه وړاندې په گس لاس باندې استنجاء کول او گس لاس په زمکه باندې مږل. [2]

③ مضمضه او استنشقا یعنی غرغرې اوپوزه کښې اوبه اچول. [3]

④ دَ جنابت دَغسل نه وړاندې اودس کول البته په حدیث باب کښې دَ سردَ مسح ذکر نشته دې. [4]

⑤ ((ثم أفاض علی جسده)) نه معلومیږی چه دلك په غسل کښې سنت دې واجب نه دې. [5]

## ۶- باب: مَنْ بَدَأَ بِالْحِلَابِ أَوِالطِّيبِ عِنْدَ الْغُسْلِ

## حلاب (دَ پیئو لوښی) یا خوشبو سره غسل شروع کول

**دَترجمة الباب مقصد:** دَ امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب په معرکة الآرا او مهمات تراجم کښې شمیرکولې شی. قدیم او حدیث ائمه شراح حدیث په نیز دَدې ترجمه مطابقت حدیث الباب سره مشکل گنړلې شوې دې. شراح حدیث اومشائخ دَدې مشکل حل کولو کوشش کړې دې. دَهغوی رائې په دې باره کښې مختلف دی. دَ دې ترجمه مقصد بیانولو کښې دَ ائمه شراح حدیث درې فریق جوړشوی دی. یوفریق خودَ امام بخاری رحمه الله تغلیط کوی، دویم فریق دَ امام بخاری رحمه الله دَترجمه دَ وجې نه روایت دَ غیرمشهور معنې طرف ته راگرځوی او دریم فریق روایت په خپل ځائی کیخودو سره دَ ترجمه داسې مناسب تاویل کول غواړی چه په هغې سره په روایت او ترجمه کښې مطابقت اوشي. [6]

**دَ فریق اول رائې:** اول فریق چاچه دَامام بخاری رحمه الله تغلیط کړې دې اودَهغوی طرف ته ئې دَ وهم نسبت کړې دې دَ دغه جماعت او فریق پیش امام اسماعیلی رحمه الله دې.

**دَامام اسماعیلی رحمه الله رائې:** چنانچه امام اسماعیلی رحمه الله په خپل مستخرج کښې فرمائی ((رحم الله أبا عبدالله - يعني البخاري - من ذا الذي يسلم من الغلط، سبق إلى قلبه أن الحلاب طيب، وأي معنى للطيب عند الاغتسال قبل الغسل، وإنما الحلاب إناء وهو ما يحلب فيه، يسمى حلاباً و محلباً، قال: وفي تأمل طرق هذا الحديث بيان ذلك)) [7]

**ترجمه:** الله تعالی دې په ابوعبدالله یعنی امام بخاری رحمه الله باندې رحم اوکړی، څوك دَغلطئی نه محفوظ پاتې کیدې شی، دَهغه په زړه کښې دا خیال ورکوز شو چه حلاب خوشبو ده، حالاتکه دَغسل په وخت دَ غسل نه وړاندې دَ خوشبوئی څه معنی ده؟ کوم سړې چه دَ روایت په طرق باندې غور

---

[1] شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳ تحفة الباری: ۲۲۳/۱.

[2] شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳ تحفة الباری: ۲۲۳/۱.

[3] شرح الکرمانی: ۱۲۰/۳ تحفة الباری: ۲۲۳/۱.

[4] التوضیح لابن الملقن: ۵۶۳/۴.

[5] التوضیح لابن الملقن: ۵۶۳/۴.

[6] فتح الباری: ۴۸۷/۲ لامع الدراری: ۲۱۰/۲-۲۰۹.

[7] فتح الباری: ۴۸۷/۲ عمدة القاری: ۳۰۳/۳ لامع الدراری مع تعلیقات الشیخ زکریا: ۲۱۰/۲.

اوفكركوى هغه ته به معلومه شى چه حلاب هغه لوښي (ظرف) دې په كوم كښې چه پيئى لشلې شى هغې ته حلاب اومحلب هم وئيلى شى.

**دَ روايت دَ مختلف طرق وضاحت:** امام اسماعيلى رحمه الله دَ طرق حديث طرف ته چه كومه اشاره فرمائى دَهغې وضاحت داسې دې چه دا روايت پخپله امام اسماعيلى رحمه الله په طريق دَ مكى بن ابراهيم حنظله نه **نحوالحلاب** په ځائى دَ ((**كان يغتسل بقدح**)) الفاظ سره نقل كړې دې اوهم په دې روايت كښې ((**كان يغسل يديه ثم يغسل وجهه ثم يقول بيده ثلاث غرف**)) اضافه هم نقل كړې ده.([1])

امام جوزقى په طريق حمدان السلمى ابوعاصم سره ((**اغتسل فأتى بحلاب فغسل شق رأسه الأيمن**)) الفاظ نقل كړى دى. ([2])په دې دواړو روايتونوكښې "**اغتسل**" او "**يغتسل**" په دې خبره باندې دلالت كوى چه دَحلاب نه مراد دَ اوبو لوښې دې نه چه خوشبوئى يا دَ خوشبوئى لوښې. ([3])

امام اسماعيلى رحمه الله په طريق دَ بندار ابوعاصم رحمه الله دا الفاظ نقل كړى دى: ((**كان إذا أن يغتسل من الجنابة، دعابشى، دون الحلاب، فأخذ بكفه، فبدأبالشق الأيمن، ثم الأيسر، ثم أخذ بكفيه ماء، فأفرغ على رأسه**)) ([4])

كه چرې په دې روايت كښې دَ ماء الفاظ نه وى نودا تطيب قبل الغسل باندې محمولې كولې كيدې شو ليكن دَ ماء الفاظ دَ حلاب اوبوپه لوښى باندې دلالت كوى.([5])دَ ابن خزيمه رحمه الله او ابن حبان رحمه الله په روايت كښې دى ((**كان يغتسل من حلاب**))([6])خو ابوعوانه رحمه الله په خپل مسند كښې په طريق دَ يزيد بن سنان ابوعاصم نه نقل كړى دى: ((**كان يغتسل من حلاب، فيأخذ غرفة بكفيه، فيجعلها على شقه الأيمن، ثم الأيسر كذلك**))([7])په دې روايتونوكښې "**يغتسل**" او "**غرفة**" هم په دې خبره باندې دلالت كوى چه حلاب دَ اوبو يو لوښې دې.([8])دَ ابن حبان رحمه الله او بيهقى رحمه الله په روايت كښې ((**ثم يصب على شق رأسه الأيمن**)) الفاظ راغلى دى.([9])دَ خوشبو دَپاره په عربى كښې دَ "صب" تعريف نه استعماليږى دَ صب لفظ دَ اوبو په بهيولوباندې وئيلې شى. ددې نه معلومه شوه چه دَ حلاب نه مراد دَ اوبو لوښې دې نه چه دَ

---

[1]) فتح البارى: ٤٨٨/٢عمدة القارى: ٣٠٣/٣لامع الدرارى مع تعليقات الشيخ زكريا: ٢١٠/٢.

[2]) فتح البارى: ٤٨٨/٢.

[3]) فتح البارى: ٤٨٨/٢.

[4]) فتح البارى: ٤٨٨/٢عمدة القارى: ٣٠٣/٣الكنزالمتوارى:١٩٧/٣.

[5]) فتح البارى: ٤٨٨/٢.

[6]) أخرجه ابن خزيمة فى صحيحه كتاب الوضوء باب استحباب بدء المغتسل بإفاضة الماء على الميا من قبل المياسر: ١٢٢/١رقم الحديث: ٢٤٥وأخرجه ابن حبان فى صحيحه ولفظه: يغتسل فى حلاب، وهو صريح فيما نحن بصدده، كتاب الطهارة باب الغسل، ذكر وصف الغرفات الثلاث التى وصفناه للمغتسل من الجنابة: ٧٦٩/٣رقم: ١١٩٧.

[7]) أخرجه أبو عوانة فى مسنده، كتاب الطهارة باب صفة الأوانى التى كان يغتسل منها رسول الله صلى الله عليه وسلم من الجنابة..... ٢٣٨/١ رقم الحديث: ٨٥٣

[8]) فتح البارى: ٤٨٩/٢عمدة القارى: ٣٠٣/٣الكنزالمتوارى: ١٩٧/٣.

[9]) أخرجه ابن حبان فى صحيحه كتاب الطهارة باب الغسل ذكر وصف الغرفات الثلاث التى وصفناه للمغتسل من الجنابة: ٦٩/٣رقم الحديث: ١١٩٧ والبيهقى فى السنن الكبرى، كتاب الطهارة باب استحباب البداية فيه بالشق الأيمن: ٢٨٤/١رقم: ٨٧٢.

خوشبوئی.(۱) په دې ټولو طرق روایت باندې یونظر اوغور اوفکر کولوسره دا معلومیږی چه حلاب د اوبوپو لوښي دې. امام بیهقی رحمه الله په السنن الکبری کښې د امام بخاری رحمه الله والا روایت د محمدبن عبدالله رحمه الله نه د روایت کولونه پس په واسطه د ابوعمرالادیب امام ابوبکر اسماعیلی نقل کړی دی: «الحلاب: الإناء وهو ما يحلب فيه، يسمى حلاباً»(۲) یعنی حلاب هغه لوښي دې په کوم کښې چه پیئ لوشلې شی هغې ته حلاب وائی.

**د امام خطابی رحمه الله رائې:** امام خطابی رحمه الله هم د امام بخاری رحمه الله طرف ته د وهم نسبت کړې دې هغه فرمائی: «الحلاب: إناء يسع قدر حلبة ناقة وهو المحلب، بكسر الميم»(۳) یعنی حلاب هغه لوښي دې په کوم کښې چه د اوښې یوځل پیئ لوشلو مقدار راځائی شی د میم کسره سره دې ته محلب وائی.

نور فرمائی: «وقد تأوله البخاري على استعمال الطيب في الطهور، وأحسبه توهم أنه أريد به المحلب الذي يستعمل في غسل الأيدي، وليس الحلاب من الطيب في شيء، وإنما هو ما فسرت لك» (۴) یعنی امام بخاری رحمه الله حلاب د طهارت حاصلولو په وخت د طیب (خوشبو) استعمال باندې محمول کړی دی. زما خیال دې چه هغه ته وهم شوې دې چه د دې نه هغه محلب مراددې کوم چه د لاسونو د وینځلو دپاره استعمالولې شی حالانکه د حلاب خوشبوئی سره هیڅ تعلق نشته حلاب خو لوښي دې لکه څنګه چه مونږ د هغې وضاحت کړې دې.

**د حلاب په لوښی (ظرف) کیدو باندې د ابوفاید د شعرنه استشهاد:** اهل عرب حلاب لوښی (ظرف) د پاره استعمالوی. چنانچه امام خطابی رحمه الله د حلاب په ظرف کیدو باندې د مشهور شاعر ابوفاید اسماعیل بن یسار نسائی د دې شعر نه استشهاد پیش کړې دې:

صاح! هل رأيت أو سمعت براع ... رد في الضرع ما قري في "الحلاب" (۵)

**ترجمه:** اې آواز کونکیه! تاچرته داسې ګډبه لیدلې دې یادې د هغه باره کښې اوریدلی دی چه هغه حلاب یعنی لوښی کښې جمع شوی پیئ د اوښې غولانځې یعنی تینو کښې واپس کړې وی.

**د ابن جوزی رحمه الله رائې:** ابن جوزی رحمه الله هم د امام بخاری رحمه الله تغلیط کړې دې هغه فرمائی: «وقد غلط جماعة في تفسيره، منهم البخاري، فإنه ظن الحلاب شيئاً من الطيب........ وكأنه توهم أن الحلاب هو المحلب الذي يستعمل في غسل الأيدي» (۶) یعنی د حلاب معنی بیانولو کښې د ائمه د یوجماعت نه غلطی شوې ده. د هغوی نه امام بخاری رحمه الله هم دې. هغوی ګنړلې چه حلاب یوه خوشبوئی ده........ لکه چه هغوی ته دا وهم شوې دې چه د حلاب نه هغه محلب (خوشبوئی) مراد ده چه د لاسونو د وینځلو دپاره استعمالولې شی. (ابن جوزی رحمه الله هم حلاب د ظرف یعنی د پیئولوشوونکی لوښې ګرځولې دې). (۷)

---

(۱) فتح الباری: ۴۸۹/۲ عمدة القاری: ۳۰۳/۳.

(۲) السنن الکبری: ۲۸۴/۱.

(۳) غریب الحدیث: ۱۶۲/۱ أعلام الحدیث: ۳۰۲/۱.

(۴) شرح الکرمانی: ۱۲۱/۳ فتح الباری: ۴۸۷/۲ الکنز المتواری: ۱۹۷/۳.

(۵) أعلام الحدیث: ۳۰۲/۱ فتح الباری: ۴۸۷/۲.

(۶) کشف المشکل من حدیث الصحیحین لابن الجوزی: ۲۶۰/۴ الکنز المتواری: ۱۹۷/۳ عمدة القاری: ۳۰۳/۳.

(۷) کشف المشکل من حدیث الصحیحین لابن الجوزی: ۲۶۰/۴ التوضیح لابن الملقن: ۵۶۶/۴: ۱۹۷/۳ غریب الحدیث: ۲۳۳/۱.

**دَ ابن قُرقُل رحمه الله رائې:** ابن قرقل رحمه الله المطالع علی الصحیح کښې دَ امام خطابی رحمه الله اتباع کولو سره حلاب په معنی دَ الطیب غیر معروف ګرځولې دې. هغه فرمائی: «الحلاب إناء وهو المحلب، وترجم البخاري علیه باب.... الطیب عند الغسل، یدل علی أنه ضرب من الطیب، وهذا لایعرف» (١) یعنی حلاب لوښې دې اوهغه محلب ته وائی. امام بخاری رحمه الله په دې باندې باب الطیب عندالغسل په عنوان سره باب قائم کړې دې چه په دې خبره باندې دلالت کوی چه حلاب دَ خوشبوئې یوقسم دې حالانکه دا غیرمعروف دې.

**دَ ابن بطال رحمه الله رائې:** علامه ابوالحسن ابن بطال رحمه الله دَ حلاب باره کښې دَعلامه خطابی رحمه الله قول نقل کولونه پس فرمائی چه زما ګمان دې چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې حلاب دَ خوشبوئې یوقسم شمیرکړې دې. که چرې داسې شوې وی نوامام بخاری رحمه الله ته وهم شوې دې حالانکه حلاب خوهغه لوښې دې په کوم کښې چه به دَ نبی کریم ﷺ خوشبوئی کیخودلې شوه کوم چه به حضورپاك دَ غسل په وخت استعمالوله.(٢)

**دَ امام حمیدی رحمه الله رائې:** صاحب الجمع بین الصحیحین امام حمیدی رحمه الله فرمائی چه امام مسلم رحمه الله حدیث باب حدیث فرق او حدیث قدرالصاع سره یو ځائې جمع کړې دې لکه چه هغه ددې نه لوښې مراد اخستې دې. اوامام بخاری رحمه الله دَدې حدیث دَپاره «باب من بدأ بالحلاب أو الطیب» ترجمه قائم کړې ده او صرف هم دغه حدیث ئې ذکر کړې دې. په دې وجه کیدې شی چه دَ چا داګمان وی چه امام بخاری رحمه الله ددې نه خوشبوئی مراد اخستې ده.(٣)حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام حمیدی رحمه الله دا یواحتمال اوګرځولو چه امام بخاری رحمه الله دَ حلاب نه خوشبوئی مراد اخستې وی یعنی ددې خبرې هم احتمال دې چه دَ حلاب نه امام بخاری رحمه الله مراد خوشبوئې نه علاوه څه بل څه څیز وی لیکن هغوی ددې صراحت نه دې کړې چه هغه څه څیزدې.(٤) امام قرطبی رحمه الله هم دَ حلاب نه خوشبوئی مراد اخستل وهم ګرځولې دې.(٥)

**دَامام نووی رحمه الله رائې:** علامه نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې لیکلی دی چه حلاب دَ حاء کسره اوتخفیف دَ لام سره دَ پینولشلو لوښی ته وائی. هم دې ته محلب (په کسره دَ میم) وئیلې شی. هم دغه مشهور صحیح او معروف دې په روایت کښې. (٦)

**دَ علامه ابوالحسن سندی رحمه الله قول:** علامه ابوالحسن سندی رحمه الله فرمائی چه دَ امام بخاری رحمه الله دَ ظاهری صنیع نه دا معلومیږی چه هغه دَ حلاب نه دَ خوشبوئی یوقسم مراد اخستې دې. نور فرمائی چه صحیح خبره داده چه حلاب دَ غسل دَ اوبو یولوښې دې. شراح حدیث دَ امام بخاری رحمه الله کلام په دې خبره باندې دَ منطبق کولو ډیر کوشش اوکړو لیکن څه چه هغوی اولیکل هغه ټول تکلف دې. ځکه چه دَ امام بخاری رحمه الله کلام پخپله ددې نه انکاری دې.(٧)

---

(١) التوضیح لابن الملقن: ٥۶۶/٤.
(٢) شرح ابن بطال: ٣٨٥/١شرح الکرمانی: ١٢١/٣.
(٣) تفسیر غریب ما فی الصحیحین للحمیدی: ٢٤٣/١فتح الباری:٤٨٧/٢الکنز المتواری: ١٩٨/٣.
(٤) فتح الباری: ٤٨٧/٢.
(٥) فتح الباری: ٤٨٨/٢الکنزالمتواری: ١٩٨/٣.
(٦) المنهاج للنووی: ٢٢٣/٣.
(٧) حاشیة السندی علی صحیح البخاری:٥٧/١.

**دَ فريق ثاني موقف:** دَ دويم جماعت پيش رو علامه ازهري رحمه الله دي هغه وائي چه خلقو ته دَ روايت دَ لفظ په پوهيدلو كښې وهم شوې دې. هغه دا دَ حاء په كسره اوتخفيف دَ لام سره (حلاب) دَ پيئو لشلو لوښې گنړلې دې. حالانكه دا لفظ دَ جيم ضمه اوتشديد دَ لام سره جُلّاب وو چه په اصل كښې دَ فارسي ژبې لفظ دې دَ گلاب اوبه (عرق گلاب عطرگلاب) ته ونيلى شي روستو په عربي ژبه كښې استعماليدلو.(۱)

دَعلامه ازهري رحمه الله نه هم دا خبره امام خطابي رحمه الله او ابوعبيد هروي رحمه الله هم نقل كړې ده ليكن هغوى په دې باندې دَ ازهري رحمه الله تائيدنه دى كړې.(۲)

**دَ قاضي عياض رحمه الله قول:** قاضي عياض رحمه الله فرمائي چه بعض حضراتو دَ صحيحين نه علاوه دَ الجلاب لفظ نقل كړې دې دَ كوم نه چه دَ ازهري رحمه الله دَذكركړې شوى قول طرف ته اشاره كيږي.(۳)

**دَعلامه ازهري رحمه الله په قول باندې دَ محقق علماء رَد:** محققين علماؤ كښې ابوعبيد هروي، امام قرطبي اوعلامه نووي رحمهم الله دَ علامه ازهري رحمه الله دَ قول ترديدكړې دې او دائې تصحيف گرځولې دې. محققين علماؤ دَ علامه ازهري رحمه الله دَ قول روايت اومعنى دواړو لحاظوسره ترديدكړې دې چنانچه دَ شراح يوجماعت فرمائي چه په مشهور اومعروف روايت كښې هم لفظ حلاب حاء مهمله اوتخفيف دَ لام سره راغلې دې.(۴)

**دَعلامه ابن اثير رحمه الله په علامه ازهري رحمه الله باندې نقد:** علامه ابن اثير رحمه الله په لحاظ دَ معنى ازهري رحمه الله باندې نقد كړې دې هغه فرمائي چه ممكن ده امام بخاري رحمه الله جلاب مراد اخستل وى او هم دَدې په مناسبت سره ئې ترجمه قائم كړې وى ليكن بخاري شريف كښې جلاب دَ جيم په ځائې حلاب حاء مهمله سره نقل دې اوداخبره زياته مناسب ده ځكه چه دَ غسل كونكى دَ پاره دَ خوشبو استعمال دَ غسل كولونه پس زيات مناسب دى په نسبت دَ اول نه. ځكه چه غسل كونكې خوشبوئى لګولوسره غسل كوى نوپه اوبوسره به هغه خوشبوئى اووينځلې شى اوختمه به شى.(۵)

**دَ علامه قرطبي رحمه الله تحقيق:** علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چه حلاب په كسره دَحاء مهمله سره صحيح دې اودا جلاب په ضمه دَ جيم اوتشديد دَ لام گنړل وهم دې.(۶)هغوى نور فرمائي چه جلاب دَ جيم ضمه اوتشديد دَ لام سره په فارسئى ژبه كښې دَ مشروب نوم دې نه چه ماء الورد (عرق گلاب). دَ گلاب اوبوته فارسي كښې دَجيم ضمه او لام تخفيف سره جُلّاب وائي جلاب په اصل كښې گلاب وو گل گلاب ته او آب اوبو ته وائي اوفارسي كښې قاعده ده چه مضاف اليه په مضاف باندې اوصفت په موصوف باندې مقدم ساتلې شى. چنانچه هم دغه لفظ كله عربي ژبې ته راغلو نوگاف په جيم سره بدل كړې شوجلاب ورته اووئيلې شو.(۷)

---

(۱)التوضيح لابن الملقن: ۵۶۶/۴فتح الباري: ۴۸۷/۲عمدة القاري:۳۰۳/۳ المنهاج: ۲۲۳/۳شرح الكرماني : ۱۲۱/۳النهاية لابن الأثير :۴۱۲/۱.

(۲) التوضيح لابن الملقن: ۵۶۶/۴كشف المشكل لابن الجوزي: ۲۶۰/۴.

(۳) مشارق الأنوار على صحاح الآثار: ۱۹۴/۱فتح الباري: ۴۸۷/۲الكنزالمتواري:۱۹۸/۳.

(۴) فتح الباري: ۴۸۷/۲المنهاج: ۲۲۳/۳عمدة القاري:۳۰۳/۳.

(۵) النهاية لابن الأثير: ۴۱۲/۱فتح الباري: ۴۸۷/۲.

(۶) فتح الباري: ۴۸۸/۲ الكنزالمتواري: ۱۹۸/۳.

(۷) عمدة القاري: ۳۰۳/۳شرح أبي داؤد للعيني:۵۳۹/۱.

**دَ دريم فريق موقف:** دَدې فريق پيش رو محب طبري دې هغه فرمائي چه امام بخاري رحمه الله په ترجمة الباب كښې معروف خوشبوئي مراد نه ده اخستې بلكه تطيب يعنى كه په بدن باندې خيرې وغيره وى نوهغه ختمول ئې مراد اخستې دى. اودَ حلاب نه ئې دَ غسل لوښې مراد اخستې دې چه دغسل دپاره دَ اول نه په هغې كښې اوبه كيخودې شي. علامه طبري رحمه الله نور ليكى چه دَترجمة الباب الفاظ أو لطيب كښې أو نه واؤ مراد دې بعض رواياتو نه هم دغه ثابت دى لكه چه امام حميدي رحمه الله ذكر كړى دى. دَ امام طبري رحمه الله دَ قول حاصل دادې چه امام بخاري رحمه الله په دې ترجمه سره داخودل غواړى چه اول په لوښى كښې دَ غسل دپاره اوبه كيخودې شى بيا دَغسل نه وړاندې بدن دَ نجاست وغيره نه پاكولوسره تطيب حاصل كړې شى. په حديث باب كښې په سرباندې دَ اوبو بهيولو نه دَ شروع ذكر دې څكه چه دَ سر ويښته زيات خيرن وى په نسبت دَ باقى بدن.([1])

**دَ بعض حضراتو رائې:** بعض حضرات وائي چه امام بخاري رحمه الله په دې ترجمه سره دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه او حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دَ يوروايت طرف ته اشاره كوى چه حضورپاك په غسل جنابت كښې خطمى سره په سر وينځلو اكتفاكوله او په سرباندې به ئې اوبه نه بهيولې.([2])

نولكه چه امام بخاري رحمه الله دا فرمائي چه حديث باب په دې خبره باندې دلالت كوى چه حضورپاك به په غسل جنابت كښې اوبه استعمالولې اودَحديث باب نه دا نه ثابتيږى چه حضورپاك دَ غسل جنابت نه وړاندې دَ بدن دَ صفا كولو دَپاره دَ سدر وغيره په شان څه څيز نه استعمالولو. دَ اكثرو رواياتونه هم دَدې تائيد كيږى. ترجمة الباب كښې أوالطيب كښې لفظ أو په دې خبره باندې دلالت كوى چه طيب دَ حلاب يوقسم دې لهذا دا به په غيرحلاب باندې محمول كولې شى. معترضينو ته څكه اشكال شوې چه هغوى طيب دَ حلاب دَ جنس نه گنړلې دې خودَ حلاب نه دلته لوښې نه بلكه اوبه مراد دى نولكه چه داسې ده حال وئيلو سره ئې مجازاً اسم المحل مراد اخستې دې.([3])

شيخ الحديث حضرت مولانا زكريا كاندهلوى رحمه الله فرمائي چه دَ بعض حضراتو دَ دې توجيه مطلب دا شو چه امام بخاري رحمه الله په دې سره دَ خطمى والا رواياتو باندې رد كولوسره په اوبوسره شروع كول ثابت كړى دى نو لكه چه امام بخاري رحمه الله په ترجمه كښې دوه څيزونه حلاب (اوبه) او په طيب سره دَ شروع كولو ذكر كړې وو اودَ روايت نه دَ يويعنې اوبوسره دَ شروع كولو ذكر ثابت كړې دې. هم دغه اصول په تراجم كښې يوكم څلويښتم اصل دې.([4])

---

[1]) فتح البارى: ۴۸۸/۲عمدة القارى:۳۰۳/۳ الكنزالمتوارى:۱۹۸/۳.

[2]) الحديث أخرجه أبوداؤد فى سننه، عن عائشة – رضى الله عنها – كتاب الطهارة، باب فى الجنب يغسل رأسه بالخطمى رقم: ۲۵۶انظر جامع الأصول النوع الأول فى كيفية الغسل: ۳۰۳/۷رقم: ۵۳۴۴ وأخرجه عنها البيهقى فى السنن الكبرى، كتاب الطهارة باب غسل الجنب رأسه: ۲۸۱/۱رقم:۸۶۴ وأخرجه البيهقى أيضاً فى المعجم الكبير عن ابن مسعود – رضى الله عنه – :۲۵۴/۹ رقم:۹۲۵۷وأخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه عن ابن مسعود – رضى الله عنه – كتاب الطهارة باب فى الرجل يغسل رأسه بالخطمى ثم يغسل جسده رقم: ۷۷۶، ۷۷۹، ۷۸۱، ۷۸۲.

[3]) فتح البارى: ۴۸۸/۲.

[4]) الكنزالمتوارى:۱۹۸/۳الأبواب والتراجم ص: ۶۰ قال شيخ الحديث رحمه الله: [الأصل] التاسع والثلثون: ما قالوا فى النوع المذكور يعنى إذا ذكر جزئين فى الترجمة ولم يذكر الحديث إلا لواحد منهما أن الإمام البخارى يشير بذلك إلى أن أحد الجزئين ثابت والثانى لا يثبت، فكأن البخارى رد عليه بالترجمة وأنكره، جزم بذلك الكرمانى

**قاضی عیاض رحمه الله ارشاد:** قاضی عیاض رحمه الله اوفرمائیل چه حلاب اومحلب دَ میم کسره سره هغه لوښی ته وائی په کوم کښې چه دَ اوښې دَ پیئو په اندازه څه څیز راځائی شی. په ترجمه کښې دَ حلاب نه دغیر طیب مراد کیدو دلیل دَ طیب دَ أو په ذریعه په حلاب باندې عطف کیدل دی. دَدې عطف په ذریعه امام بخاری رحمه الله پخپله حلاب دَ طیب یوقسم گرځولې دې. دې سره دَامام اسماعیلی رحمه الله دَ قول هم تردید کیږی چه دَ امام بخاری رحمه الله نه غلطی شوې ده. هغه حلاب خوشبوئی گنړلې ده. کله چه امام بخاری رحمه الله دَ دواړو په یوبل باندې عطف کړی دې نو بیا هغه ولې حلاب خوشبوئی اوگنړله؟ (۱)

**دَعلامه عینی رحمه الله ، ابن بطال رحمه الله او کرمانی رحمه الله توجیه:** علامه عینی علامه ابن بطال اوعلامه کرمانی رحمهم الله دَ توجیه خلاصه داده چه داسې ویناکول صحیح نه دی چه امام بخاری رحمه الله دَ حلاب نه دَ خوشبوئی څه قسم مراد اخستې دی. دَ أو الطیب الفاظ پخپله دَدې تردید کوی. علامه عینی رحمه الله لیکلی دی چه دَحلاب نه دَ اوبو ساتلو لوښې مراد دې. خو علامه ابن بطال رحمه الله او علامه کرمانی رحمه الله دَ حلاب نه هغه لوښې مراد اخستې دې په کوم کښې چه خوشبوئی وی. (۲)

**یواعتراض:** معترض وائی که چرې دَ حلاب نه لوښې مراد واخستې شی نوبیا به ترجمة الباب کښې دوه څیزونه لوښې او طیب ذکر وی لیکن په حدیث کښې صرف حلاب یعنی دَ لوښی ذکر دې دَ طیب څه ذکر نشته دې نولکه چه دَترجمة الباب یو جز ثابت شو او بل نه؟ (۳)

**دَ اعتراض جواب:** علامه کرمانی رحمه الله اوعینی رحمه الله دَدې دا جواب ورکړې دې چه امام بخاری رحمه الله دَ دوو څیزونو نه دَ یو دَپاره ترجمة الباب قائم کړې دې په داسې توګه چه دَ حلاب او طیب په مینځ کښې لفظ دَ أو راوړلې دې نه چه لفظ دَ واؤ او دَ دواړو نه یو یعنی حلاب ئې ثابت کړې دې. ځکه چه دَ امام بخاری رحمه الله عادت دې چه هغه اکثر په ترجمه کښې څه څیز ذکر کوی مګر دَ څه وجې نه دَهغې متعلق څه حدیث نه ذکر کوی. البته دَ اوبو په لوښې او خوشبوئی کښې خپل مینځ کښې مناسبت دادې چه دَ دواړو وقوع دَ غسل په شروع کښې کیږی. (۴)

علامه انصاری رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله او شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله هم دَ علامه عینی رحمه الله اتباع کښې هم دغه توجیه اختیار کړې ده. (۵)

دَ علامه کرمانی رحمه الله دَ توجیه مطلب دا شو چه کله دَ ظرف طیب دَ طلب نه شروع کول هم صحیح دی اوکله دَ نفس طیب دَ طلب کولو نه هم شروع کول صحیح دی. خودَ حدیث الباب نه دَ ترجمه رومبې جز ثابتیږی دویم نه ثابتیږی. دَ ابن بطال رحمه الله دَ قول نه دَدې تائید کیږی ځکه چه په حدیث کښې دَ غسل په وخت دَ حضورپاک په اتباع کښې دَ خوشبوئی دَ استعمالولو ترغیب موجود دې. (۶)

---

فی باب غسل المنی وفرکه. (الأبواب والتراجم، الفصل الثالث فی بیان التراجم، عدم الذکر لأحد جزئی الترجمة إشارة إلی عدم الثبوت، ص: ۱۲).

(۱) فتح الباری: ۴۸۷/۲عمدة القاری: ۳۰۳/۳.

(۲) عمدة القاری: ۳۰۳/۳شرح ابن بطال: ۳۸۵/۱شرح الکرمانی: ۱۲۱/۳.

(۳) شرح الکرمانی: ۱۲۱/۳عمدة القاری: ۳۰۴/۳-۳۰۳.

(۴) شرح الکرمانی: ۱۲۱/۳عمدة القاری: ۳۰۴/۳-۳۰۳.

(۵) إرشاد الساری: ۴۹۶/۱الکنزامتواری: ۲۰۰/۳-۱۹۹تحفة الباری: ۲۲۳/۱.

(۶) شرح الکرمانی: ۱۲۱/۳الکنزالمتواری: ۱۹۸/۳شرح ابن بطال: ۳۸۶/۱-۳۸۵.

علامه عيني رحمه الله دَ علامه کرماني رحمه الله دا توجيه نقل کولونه پس ليکلي دی چه دَامام اسماعيلي مکي بن ابراهيم حنظله په طريق سره په دې روايت کښې بحلاب په ځائې کان يغتسل بقدح الفاظ سره ددې ترديد کيږي. (۱)

**دَعلامه کرماني رحمه الله په توجيه باندې دَ حافظ صاحب رحمه الله رد:** دَعلامه کرماني رحمه الله رائې نقل کولونه پس حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلي دی په حديث کښې ذکر شوې فأخذ بکفه الفاظو سره لکه چه دې حضراتو ګڼړلي دی چه حضورپاک ﷺ دَ لوښې نه په خپلو لاسونو کښې خوشبوئې اخستې ده او ښي اوګس طرف ته ئې لګولې ده لکه چه په حديث کښې دَ حضورپاک دَغسل بيان نه دې بلکه دَخوشبوئې لګولو تذکره ده. حافظ صاحب رحمه الله فرمائي چه دَامام بخاري رحمه الله دَ روايت الباب ظاهر ته په کتلوسره دا يوه ښه توجيه ده ليکن څوك چه دَ روايت په نورو طرق باندې تامل کوی هغه دې توجيه ته ترجيح نه شی ورکولې ځکه چه دَ محدث اسماعيلي رحمه الله وغيره دَ روايت نه واضح کيږی چه صفت مذکوره دَ غسل دې دَ خوشبو لګولو نه دې. دَ محدث اسماعيلي دَ مکي بن ابراهيم والا طريق الفاظ دَعلامه عيني رحمه الله دَ قول په ذيل کښې اوس پورته تير شو چه هغوی دَ حلاب په ځائې کان يغتسل بقدح نقل کړی دی(۲)خو امام جوزقي دَ حمدان سلمي عن ابی عاصم په طريق سره «اغتسل فأتي بحلاب فغسل شق رأسه الأيمن» الفاظ نقل کړی دی.(۳)پس په دې طريق کښې موجود "اغتسل" او "غسل" دَ الفاظونه معلوميږی چه هغه دَ اوبولوښې وو دَ خوشبوئې لوښې نه وو. دغه شان دَ محدث اسماعيلي رحمه الله يو بل روايت چه په طريق دَ بندار عن ابی عاصم الفاظ دادی: «كان إذا أراد أن يغتسل من الجنابة، دعا بشيء دون الحلاب، فأخذ بكفه، فبدأ بالشق الأيمن، ثم الأيسر، ثم أخذ بكفيه ماء، فأفرغ على رأسه» (۴)که چرې په دې روايت کښې دَماء الفاظ نه وې نوممکن وه چه دا به تطيب قبل الغسل باندې محمول کولې شو ليکن دَ ماء دَ الفاظونه معلوميږی چه داسې کول صحيح نه دی، دغه شان امام ابوعوانه رحمه الله په خپل صحيح کښې دَ يزيد بن سنان عن ابی عاصم په طريق سره روايت نقل کړې دې چه: «كان يغتسل من حلاب، فيأخذ غرفة بكفيه فيجعلها على شقه الأيمن، ثم الأيسر» (۵)

په دې روايت کښې هم يغتسل او غرفة الفاظ دَ اوبو په لوښې کيدو باندې دلالت کوی. دَ ابن حبان رحمه الله او بيهقي په روايت کښې «لم يصب على شق رأسه الأيمن» الفاظ دی. (۶)خوشبوئې لګولو ته صب يعنی بهيولوسره نه شی تعبير کولې. حاصل دا شو چه دا ټول روايت مذکوره کښې دَ حلاب نه دَ خوشبوئې لوښې مراد کيدلو توجيه مستبعد جوړوی.(۷)

---

(۱) عمدة القاري:۳/۳۰٤.

(۲) فتح الباري: ۴۸۸/۲عمدة القاري: ۳۰۳/۳الکنزالمتواري: ۱۹۹/۳.

(۳) فتح الباري: ۴۸۸/۲.

(۴) فتح الباري: ۴۸۸/۲عمدة القاري: ۳۰۳/۳الکنزالمتواري: ۱۹۷/۳.

(۵) مسند أبي عوانة كتاب الطهارة باب صفة الأواني التي كان يغتسل منها رسول الله ﷺ من الجنابة: ۲٤۸/۱رقم ۸۵٤

(۶) صحيح ابن حبان كتاب الطهارة باب الغسل ذكر وصف الغرفات الثلاث التي وصفناه من الجنابة: ۶۹/۳رقم ۱۱۹۷السنن الكبرى كتاب الطهارة باب استحباب البداية فيه بالشق الأيمن: ۲۸٤/۱ رقم: ۸۷۲.

(۷) فتح الباري:۴۸۹/۲-۴۸۸.

**دَامام ابونعيم رحمه الله رائې:** امام ابونعيم اصفهانى رحمه الله په "المسند المستخرج على صحيح الإمام مسلم" كښې دا روايت نقل كولونه پس ليكلي دى: «الحلاب الذي يحلب فيه اللبن، أي بذلك القدح كان يغتسل» [1] يعنى حلاب دَ پيئولوشلو لوښى ته وئيلى شى حضورپاك به په دې قسم لوښى كښې اوبه اخستلې غسل به ئې كولو.

**دَ ابن رجب حنبلى رحمه الله قول:** ابن رجب حنبلى رحمه الله دَ حلاب نه لوښې مراد اخستې دې هغه فرمائى چه حضورپاك به دَ داسې لوښې په يومُد اوبوسره غسل كولو په كوم كښې چه دَ څاروو پيئى لوشلې شى هم دغه معنى نحو الصاع دَ روايت دې. دَدې تائيد دَ دې حديث دَ دغه بعض طرق نه كيږى. چه كله قاسم دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه پوښتنه اوكړه چه دَ جنابت په غسل كښې څومره اوبه كافى كيږى؟ دَ قاسم سوال دَ غسل دَ اوبو دَ مقدار باره كښې وو نه چه دَغسل په وخت دَ طيب دَ استعمال متعلق. [2]

دَ حلاب نه مراد دَ لوښى كيدو نور تائيد دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَدې روايت نه هم كيږى چه حضورپاك ته يو حلاب يعنى لوښې پيش كړې شو په كوم كښې چه پيئى وونو حضورپاك دهغې نه اوڅكل. [3]

ابن رجب الحنبلي رحمه الله دَ جلاب والا توجيه تصحيف او په حديث باندې نه پوهيدونكو غلطى ګرځولې ده او نور ئې فرمائيلي دى كوموخلقو چه حلاب حاء سره دَ خوشبوئى لوښې مراد اخستې دې دَهغې څه اصل نشته دې. [4]

امام ابوبكر عبدالعزيز بن جعفر الفقيه كتاب الشافي كښې په طريق دَ ابوعاصم الضحاك بن مخلد حنظله نه هغوى دَ قاسم نه هغوى دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل كړى دى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په اندازه دَ حلاب يولرښى سره غسل كولو. دَ حديث راوى وائى چه ابوعاصم په خپل لاس سره اشاره كولو سره مقدار اوخودلو اوهغه دَ يوې كوزې په اندازه وو په كوم كښې چه اته رطل اوبه راتلې شوې. [5]

**فائده:** علامه عثمانى رحمه الله فرمائى چه اته رطل والا روايت نه دَ صاع دَ مقدار په سلسله كښې دَ احنافو دَ مذهب باره كښې اشاره ملاويږى. [6]

**دَعلامه ادريس كاندهلوى رحمه الله رائې:** علامه ادريس كاندهلوى رحمه الله دَ شراح ذكركړې شوى مختلف توجيهات نقل كولونه پس فرمائى چه په دې باب كښې تول معنى جوړيدې شى دَحديث باب زيات مناسب رومبې معنى معلوميږى چه دَحلاب نه دَ لوښى معنى مراد واخستې شى اومطلب دادې چه حضورپاك دَپاره به كله دَ اوبولوښې راغوښتې شو اوبغيردَ څه خوشبوئى لګولونه به ئې په بدن باندې اوبه بهيولې اوغسل به ئې كولو اودادَ حضورپاك اكثر عادت وو اوكله كله به ئې دَ غسل نه وړاندې خوشبو طلب كوله اودَ غسل نه اول به ئې دا استعمالوله اوبيابه ئې غسل كولو. [7]

---

[1] كتاب الطهارة باب فى الاغتسال من الجنابة: ۳۶۹/۱رقم الحديث: ۷۱۶.

[2] فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۵٤/۱.

[3] فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۵٤/۱.

[4] فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۵۵/۱.

[5] فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱۵۵/۱فتح الملهم:۱٤۹/۳.

[6] فتح الملهم:۱٤۹/۳.

[7] الأبواب والتراجم لمولانا إدريس الكاندهلوى ص:۲۶۲.

**دَ علامه عثمانى رحمه الله توجيه:** علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى چه زه داګنړم په دې باب كښې يوه بله اشاره هم كيدې شى هغه دا چه راتلونكې يوباب من تطيب ثم اغتسل راروان دې يعنى دَ غسل نه وړاندې خوشبو لګول، اوس چه دې خائى كښې دَحلاب نه هم هغه لوښى مراد واخستې شى. لكه چه امام بخارى رحمه الله دا وينا كول غواړى چه اول حلاب يعنى دَ اوبو لوښې واخلى (يعنى غسل اوكړى) دې نه پس خوشبوئى استعمال كړى لكه چه وړاندې باب راوړى. دَدواړو ذكرئى اوكړو چه خلق اكثر دَ لوښود كمى دَ وجې نه هم په دې سره غسل كوى.(١)

**دَحضرت شاه ولى الله رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولى الله رحمه الله شرح ابواب تراجم بخارى كښې ليكلى دى: ((له معنيان، (الأول): الحلاب بمعنى المحلوب فى المذور، أي المخرج من عصارة وكان العرب يستعملون الطيب قبل ذلك ومىل المؤلف إلى هذا المعنى بقرينة انضمام قوله: أوالطيب، إليه، (والثانى): أن يكون الحلاب بمعنى الآنية التى يحلب فيها لبن الإبل، وحديث الباب أخرجه البعض بهذا المعنى أيضاً، فيكون معى قوله: دعا بشيء نحو الحلاب، أي: أن يقرب إليه ذلك الأناء المملوء من الماء ليغتسل منه، وقال بعضهم: الجلاب بالجيم بمعنى ماء الورد، والعرب يستعملون الطيب وماء الورد قبل الاغتسال ويبقى منه أثره فى أبدانهم بعد الاغتسال أيضاً، وهو أيضاً محتمل الكتاب))(٢)

يعنى دَ حلاب دوه معنې دى: اول دا چه حلاب هغه پيئو اومحلوب ته وائى كوم چه دَ تخمونو نه ويستلې شى اودَعربوخلق دَ تخمونو نه ويستلې شوې محلوب دَ غسل نه وړاندې دَ خوشبوئى په توګه په خپل بدن باندې مږلو. دَامام بخارى رحمه الله خيال هم دې معنې طرف ته معلوميږى ځكه چه هغوى حلاب طيب سره ملاؤ ذكر كړې دې. او دويمه معنى دَ لوښى ده يعنى دَ حلاب نه هغه لوښې مراد دې په كوم كښې چه به خلقو دَ اوښې پيئى لشل، بعض حضراتو دَحديث باب په دې معنى كښې هم تخريج كړې دې دې وخت كښې به دَ دعابشيء نحوالحلاب معنى دا شى چه دَ حلاب په شان دَ اوبو نه ډك شوې لوښې رانيزدې كړى دې دَپاره چه دَهغې نه غسل اوكړى. خو بعض حضراتو جلاب په جيم په معنى ماء الورد عرق ګلاب مراد اخستې دې. عرب حضراتو به دَ غسل نه وړاندې خوشبوئى او عرق ګلاب استعمالول اودَې اثربه دَهغوى په بدنونو باندې دَ غسل نه پس هم باقى پاتې كيدو. دَدې معنى هم په كتاب كښې احتمال شته.

شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله دَ حضرت شاه ولى الله رحمه الله قول نقل كولونه پس ليكى چه حاصل دادې چه دَ شيخ المشائخ په نيز ترجمه اوحديث يعنى دَ حلاب نه عصارة البذور تخمونو نه نچوړشوې محلوب مراد دې سره دَدې چه هغوى نور هم احتمالات ذكر كړى دى.(٣)

**دَ شيخ الهند رحمه الله توجيه:** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه حلاب نه مراد هم لوښې دې اوقاعده ده چه په لوښى كښې دَ پيئو بوئى او غوړوالې راځى نوامام بخارى رحمه الله دا وئيل غواړى كه دَغسل په اوبوكښې دا قسم څه بوئى او اثر راشى نو په غسل كولوكښې څه بديئت نشته دې. په كوم لوښى كښې چه دَ غوړوالى اثرات پاتې كيږى كه په هغې كښې اوبه راډكې كړې شى او غسل اوكړى نو په غسل او وينڅو كښې نرمى راځى اودَ خيرى وغيره دَ ختميدو دَ وجې نه دَ بدن تنقيه صفائى كيږى.(٤)

---

١) فضل البارى: ٢/ ٤٣٣.

٢) شرح تراجم أبواب البخارى: ص: ١٨الأبواب والتراجم ص: ٦٠.

٣) الكنز المتوارى: ٣/ ٢٠٠الأبواب والتراجيم ص: ٦٠

٤) فضل البارى: ٢/ ٤٣٣.

**دعلامه كشميرى رحمه الله رائې:** علامه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائي چه حلاب د معروف لوښي نوم دې بعض خلقو داد جلاب تصحيف ګرځولې دې اوبعض خلق د دې نه حبُ المحلب مراد اخلي نودا زياتې اود حد نه تجاوز دې. په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا روايت په مختلف مواضع كښې ذكركړې دې. په هرځائې كښې د تصحيف يا مصنف تغليط كول ډيره لرې خبره ده. د حلاب لفظ په حديث كښې په صراحت سره راغلې دې. شراح د حلاب اوطيب په مينځ كښې جمع مشكل ګنړلې ده. خود امام بخارى رحمه الله مقصد خودا معلوميږى چه غسل حلاب يعنى د پينو لښلو په لوښي سره هم كيدې شي. اوكه د پينو لښلو والا په لوښي كښې اوبه واخستې شي نو په هغې كښې د پينو رنګ او بوئي هم راتلې شي كه په اوبو كښې د دغه څيزونو ظهور وى نوبياهم څه حرج نشته دې. څكه چه كه په اوبو كښې بل څه پاك څيز ملاوشي نوهغه هم پاك پاتې كيږى. دا د نور صراحت سره په راتلونكى **باب من تطيب ثم اغتسل وبقى أثر الطيب** كښې ښائى. په أوالطيب سره دلته دې خبرې طرف ته اشاره اوكړې شوه كه دغسل نه وړاندې خوشبوئي اولګوله اود غسل نه پس هم دهغې اثرباقى پاتې شو نوهغه صحيح دى. په دې باب كښې خوشبوئي او په وړاندې باب كښې په خوشبوئي كښې فرق دادې چه په راتلونكى باب كښې د خوشبوئي تعلق د غسل سره نه دې بلكه هلته دخوشبوئي استعمال د تازګنى د حاصلولو دپاره دې چه د محرك كيدو د وجې نه د جماع په معامله كښې فائده مند دې. د غسل نه وړاندې د خوشبوئي استعمال په بعض ښاريوكښې عام دې. خلق اول خوشبوئي لګوى بيا غسل كوى ولې زمونږ په ښاريوكښې د غسل نه پس خوشبوئي لګولې شى.(١)

حضرت شاه صاحب رحمه الله نور ليكى چه دلته امام بخارى رحمه الله د حلاب مسئله مستقلاً بيانول غوارى په دې وجه دهغې دپاره ئې حديث هم ذكر كړې دې. اود طيب مسئله ئې تبعاً ذكر كړې ده په دې وجه ئې د دې دپاره د حديث ذكر كول ضرورى اونه ګنړل. چونكه د اثر د باقى پاتې كيدو په لحاظ سره د دواړو حكم هم يو دې په دې وجه په ترجمه كښې د دواړو په يوځائې ذ كر كولوكښې هيڅ مضائقه نشته دې.(٢)حضرت شيخ الهند مولانا زكريا رحمه الله دحضرت كشميرى رحمه الله توجيه نقل كولونه پس ليكلې دى حسنٌ جداً (بهترين توجيه) ده مګر د بدأ لفظ په ترجمه او حديث كښې مشكل ښكارى څكه چه د مذكوره توجيه سره څه خصوصي حيثيت نه معلوميږى.(٣)

دحضرت شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله د اشكال په جواب كښې دا وئيلې شى چه پخپله په ترجمه اوحديث كښې هم بدأ لفظ سره حقيقى هدايت مقصودنه دې بلكه صرف قبليت ئې په داسې درجه كښې اوخودلو چه د دغه شئ طاهر مخالط بماء الغسل اثرات باقى پاتې د غسل په صحت باندې هيڅ اثر نه پريوځى.(٤)

**د حضرت ګنګوهى رحمه الله توجيه:** حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائي چه باب من بدأ بالحلاب أوالطيب مقصد دادې چه د خوشبوئي استعمال ضرورى نه دې سره د دې چه د حضورپاك نه قبل الغسل د دې استعمال ثابت دې اوهغه داسې چه د خوشبوئي اثر د غسل په ذريعه سره د بدن باقى پاتې اطرافو ته

---

(١) فيض البارى:١/٤٥٥.
(٢) فيض البارى:١/٤٥٦-٤٥٥.
(٣) الكنزالمتوارى: ٣/٢٠٠.
(٤) حاشيه أنوار البارى:٩/١٩٩.

خور شى. نور فرمائى چه دَدې ترجمه حاصل دادې چه په دې باب كښې ابتداء بالحلاب جواز بيانولې شى سره دَدې چه دَدې نه وړاندې خوشبوئى نه وى لګولې شوې اودا بيانولې شى چه ابتداء بالطيب اوعدم ابتداء بالطيب دواړه جائز دى. كله چه په حديث باب كښې دَحضورپاك ابتداء بالحلب كول خودلې شوى دى نودَ خوشبوئى دَ ترك جواز معلوم شو او ابتداء بالطيب واجب نه دى سره دَدې چه دَ روايت باب نه علاوه دَ نورو رواياتو په رڼا كښې جائز دى. (١)

**دَ مولانامحمدحسن رحمه الله مكى توجيه:** شيخ الحديث حضرت مولانا زكريا رحمه الله ليكلى دى چه دَ مولانا محمدحسن مكى رحمه الله په تقرير كښې دى چه حضورپاك به كله دَ غسل كولو اراده فرمانيله نو سرمبارك به ئې په داسې خطمى سره وينځلو چه دَ طيب نه علاوه په يوڅيز يعنى اوبوسره به مخلوط وو بيا به ئې دَدې نه پس په غسل مبارك كښې دوباره سرمبارك نه وينځلو. بلكه په دې باندې به ئې اكتفاء كوله اوكله به رسول الله ﷺ بغيردَ خطمى نه غسل كولو نو سرمبارك به ئې باقى بدن سره وينځلو. نودَ امام بخارى رحمه الله مقصد او غرض په دې باب كښې دَدې دوو ذكر شوو غسلونونه يوبيانول دى چنانچه په ترجمه كښې بدأ بالحلاب سره دَغسل دويم قسم طرف او أو الطيب سره دَ رومبى قسم دَ غسل طرف ته اشاره ده. (٢)

**دَ مولانامكى رحمه الله دويمه توجيه:** دَمولانا محمدحسن مكى رحمه الله په يوبل تقريركښې دا توجيه بيان كړې شوې ده چه ابتداء بالطيب چونكه په خلقوكښې معروف اومحقق ده په دې وجه دَدې دپاره حديث رانوړلې شو او په كوم كښې چه خفا وه يعنى ابتداء بالحلاب نودائى ثابته كړه چه ابتداء بالحلاب هم جائز ده لازم نه ده اودَ ابتداء بالحلاب معنى دا ده چه حضورپاك به دَ دې غسل شروع دَ استنجاء نه نه كوله (بلكه دَ اول نه به ئې استنجاء وه). (٣)

**دَحافظ صاحب رحمه الله خوښه كړې شوې توجيه:** حافظ ابن حجر رحمه الله ((أحسن الأجوبة عندي)) ګرځولو سره دَ بعض علماؤ نه يوه توجيه نقل كړې ده ، حافظ صاحب رحمه الله ليكلى دى: "مادَ بعض حضرات علماؤ دَ كومو نومونه چه دې وخت كښې ياد نه دى دا توجيه اوريدلې چه په ترجمة الباب كښې دَ طيب نه حديث عائشه رضي الله عنها طرف ته اشاره كول مقصود دى چه (أنها كانت تطيب النبى صلى الله عليه وسلم عند الإحرام) (٤)يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها به دَ احرام په وخت كښې نبى عليه السلام ته خوشبوئى لګوله، غسل چونكه دَ سنن احرام نه دې په دې وجه لكه چه خوشبوئى دَ غسل په وخت ثابته شوه، نوامام بخارى رحمه الله دلته دَدې خبرې طرف ته اشاره اوكړه چه دَ نبى كريم ﷺ عادت مستمره دَ غسل په وخت دَ خوشبوئى لګولو نه وو". (٥)

**دَحافظ صاحب رحمه الله دَ نقل كړې شوې توجيه تائيد او تقويت:** حافظ صاحب رحمه الله دَدې توجيه دَ نقل كولونه پس ليكلى دى چه دَدې توجيه تائيداوتقويت دَدې خبرې نه هم كيږى چه دَ اووه ابواب نه پس

---

(١) لامع الدرارى مع الكنزالمتوارى:٣/٢٠١-١٩٧.

(٢) الكنزالمتوارى:٣/٢٠١.

(٣) الكنزالمتوارى:٣/٢٠١.

(٤) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الغسل، باب إذا جامع ثم عاد، ومن دار على نسائه فى غسل واحد، رقم: ٢٦٧وفى باب من تطيب ثم اغتسل وبقى أثر الطيب، رقم: ٢٧٠.

(٥) فتح البارى:٢/٤٨٩الكنزالمتوارى: ٣/١٩٩الأبواب والتراجم ص: ٦٠

امام بخاري رحمه الله باب من تطيب ثم اغتسل وبقي أثر الطيب قائم كولوسره دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت ذكركړو چه «أنا طيبتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم، ثم طاف في نسائه، ثم أصبح محرمًا».(۱) يعني ما رسول الله صلى الله عليه وسلم له خوشبوئي اولګوله بيا هغوى په خپلو ازواج مطهرات كښې اوګرځيدو (صحبت ئې اوكړو او غسل ئې اوكړو) بيائې احرام اوتړلو. دې نه پس په يوروايت كښې دى «كأني أنظر إلى وبيص الطيب في فرقه صلى الله عليه وسلم وهو محرم» (۲) لكه چه ما به دَ حضورپاك په سر مبارك كښې دَ خوشبويړق ليدلو اوهغوى به دَ احرام په حالت كښې وو. دَدې باب نه دَ وړاندې په يوروايت كښې امام بخاري رحمه الله نقل كړى دى «ثم يصبح محرماً ينضخ طيباً» (۳) بيا به نبى كريم صلى الله عليه وسلم داسې احرام تړلو چه په هغوى باندې به دَ خوشبوئي اثرباقي پاتې وو. نو «ثم طاف على نسائه» سره دَ خوشبوئي لګولو نه پس غسل كول مستنبط كيږي. ځكه چه دَ حديث دا الفاظ دَ جماع نه كنايه دى او په دې سره غسل لازم كيږي. دَدې نه معلومه شوه چه حضورپاك دَ خوشبوئي لګولونه پس غسل كړې اودَ غسل نه پس هم دَ خوشبوئي اثر باقي پاتې وو، ځكه چه حضورپاك به خوشبوئي خوښوله او په كثرت سره به ئې استعمالوله. (۴)

**دَ حافظ صاحب رحمه الله په نيز دَترجمه مطلب:** حافظ صاحب رحمه الله نور ليكي چه دَدې تفصيل نه پس په ترجمة الباب كښې «من بدأ بالحلاب» سره دَ غسل دَ اوبو لوښې مراددې كوم چه حضورپاك دَ غسل په غرض سره راغوښتې وو او «من بدأ بالطيب» مطلب دادې چه حضورپاك دَ غسل اراده كولو وخت كښې دَخوشبوئي استعمال فرمائيلې. نو ترجمه دغه دواړو امورو ته شامل ده. بيا په حديث باب سره دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم بداءت غسل باندې هميشه والې ثابت شو اودَ غسل نه پس دَ خوشبوئي استعمال دَ حضورپاك عادت معروفه وواودَ غسل نه وړاندې دَ خوشبوئي استعمال دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دَ روايت نه معلوم شوى دى. (۵)

**دَحافظ صاحب رحمه الله په امام اسماعيلي رحمه الله او ابن الاثير رحمه الله باندې نقد:** حافظ صاحب رحمه الله اوفرمائيل چه دَدې توجيه نه معلومه شوه چه دَامام اسماعيلي رحمه الله دا وينا قابل اعتراض ده چه دَغسل نه وړاندې خوشبوئي لګول بې معنې دى. دغه شان دَ ابن الاثير رحمه الله خبره هم دَ نيولوقابل ده چه دَخوشبوئي استعمال دَغسل نه وړاندې په نسبت دَ روستو كښې زيات موزون اومناسب دى. بل دَدې دواړو حضراتو نه علاوه دَ نورو علماؤ اقوال هم قابل دَ مواخذې دى. مونږ دَهغې دَ وضوح او ظهور په رڼا كښې هغې سره څه تعارض اونه كړو. (۶)

---

(۱) رقم الحديث: ۲۷۰.

(۲) الحديث أخرجه البخاري في كتاب الغسل باب من تطيبُ ثم اغتسل وبقى أثر الطيب رقم: ۲۷۱والحديث يتكرر في البخاري، انظر رقم: ۱۵۳۸، ۵۹۱۸، ۵۹۲۳.

(۳) الحديث أخرجه البخاري في كتاب الغسل باب أذا جامع ثم عاد، ومن دار على نسائه في غسل واحد، رقم: ۲۶۷.

(۴) فتح الباري: ۴۸۹/۲.

(۵) فتح الباري: ۴۸۹/۲.

(۶) فتح الباري: ۴۸۹/۲.

**دَعلامه كورانى رحمه الله توجيه:** علامه احمدبن اسماعيل كورانى حنفى رحمه الله «والحسن ما يجاب به عن البخاري» نه ليكلى دى چه په ترجمه كښې دَ حلاب نه لوښې مراد دې اوطيب په حلاب باندې امام بخارى رحمه الله دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت دَ خوشبوئى لګولو نه پس حضورپاك دَخپلو ازواج دوره اوكړه طرف ته دَ اشاره كولو دَپاره عطف كړې دې. لهذا كه چرې دَ حلاب نه پس دَ "أو" لفظ وى نومطلب به داشى چه امام بخارى رحمه الله داخبره ښائى چه دَ غسل شروع دَ اوبو او خوشبوئى دواړو نه كيدې شى. په دې باره كښې حديث وارد شوې دې اوكه چرې دَ حلاب نه پس دَ "أو" په ځائې "واؤ" اومنلې شى نوچونكه واؤ دَ ترتيب دَپاره نه دې بلكه دَ مطلق جمع دَپاره راځى په دې وجه دَاوبو اوخوشبوئى نه چه په كوم سره هم شروع اوكړې شى صحيح ده. او په روايت كښې «فأخذ بكفه» الفاظ دَ اوبو اخستلو په اراده كښې صريح دى نوداګمان څنګه كيدې شى چه امام بخارى رحمه الله ته وهم شوې دې اوهغوى دَ حلاب نه خوشبوئى مراد اخستې ده.(١)

**دَ شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله ذكركړې شوې يوه توجيه:** حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائيلى دى چه يوڅو ترجمې داسې دى چه تراوسه پورې حل شوى نه دى. هم دَ هغې نه يو باب دا هم دې دَ كوم دَ ثابت كولو دَپاره چه دَ امام بخارى رحمه الله مداحينو پوره زور لګولې دې اوكوم خلق چه اعتراض كونكى دى دَهغوى اعتراض دې چه ګوره امام بخارى رحمه الله ته عربى هم نه ورځى دَ حلاب معنى ئى طيب ګنړلو سره په باب كښې دَ طيب لفظ زيات كړې ليكن دا دواړه فريق په افراط اوتفريط كښې اخته دى. دَدې نه بهتر داده چه اعتدال اوساتلې شى او توجيه اوكړې شى. چنانچه بعض خلقو توجيه كړې ده چه په سرې كښې فى حد ذاته خوشبوئى وى مګر دَ خولې او خيرى دَ وجې نه بدبوئى پيداكيږى. نوكله چه سرې مړلو سره لامبيږى نودَ خيرى او خولې بدبوئى به ختمه شى اوذاتى خوشبوئى به پيداشى. اوس به دَ دلك نه پس حلاب سره غسل كوى نو حلاب اوطيب به دواړه مومى. يوه توجيه داده چه بعض رواياتو كښې دى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به دَ خطمى په ذريعه سره غسل كولو نو په دې كښې طيب وى نودَدې روايت طرف ته اشاره ده.(٢)

**دَ بحث خلاصه:** دَدې بحث خلاصه داده چه دَدې باب اوترجمه په سلسله كښې خونه دَامام بخارى رحمه الله تغليط صحيح دې اونه حلاب جلاب ګرځولو تصحيف كول البته كه مناسب توجيه اختياركړې شى. دَ شراح حديث تقريباً ټول توجيهات نقل كړې شوى دى. خو په دې كښې دوه توجيهات مناسب اواقرب معلوميږى يوه خوهغه كومه چه علامه عينى رحمه الله او اكثر شراح ذكركړې ده چه امام بخارى رحمه الله په ترجمه كښې دوه څيزونه ذكر كړى دى او روايت ئى دَ يو باره كښې راوړې دې. دَ باقى دويم څيز متعلق امام بخارى رحمه الله نفى كړې ده يا نه؟ شراح حديث يعنى علامه عينى رحمه الله اوكرمانى رحمه الله وغيره سره دَدې چه دَ نفى لفظ نه دې ذكركړې ليكن نتيجه هم دَ نفى راوځى. او دويمه توجيه هغه ده چه حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره ذكر كړې ده چه په ترجمه كښې دويم جز ذكر كولوسره دَ هغه بعض رواياتو طرف ته اشاره كړې شوې ده دَ كوم نه چه هغه ثابتيږى. والله اعلم بالصواب.

---

(١) الكوثر الجارى: ٤١٥/١.

(٢) حاشية تقرير بخارى: ٨٣/٢

## الحديث الأول

۲۵۸-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ حَنْظَلَةَ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ [ص: ٦١]: كَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم «إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، دَعَا بِشَيْءٍ نَحْوَ الْحِلَابِ، فَأَخَذَ بِكَفِّهِ، فَبَدَأَ بِشِقِّ رَأْسِهِ الْأَيْمَنِ، ثُمَّ الْأَيْسَرِ، فَقَالَ بِهِمَا عَلَى وَسَطِ رَأْسِهِ» [حديث باب ۲۵۵] (۱)

**ترجمه**: مونږ ته محمدبن مثنى بيان اوكړو وئى ويل چه اوونيل مونږ ته ابوعاصم هغه دَ حنظله بن ابى سفيان نه هغوى دَ قاسم بن محمد نه اوهغوى دَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه نقل كړل هغه فرمائى چه كله به نبى كريم ﷺ دَ غسل كولو اراده كوله نودَ حلاب په شان يوڅيز (لوښي) به ئى راغوښتلو بيابه ئى په خپلو دواړو لاسونو باندې (دَ اوبو) لپې نه اخستل اودَ سر دَ ښى طرف نه به ئى شروع كوله بيا به ئى (لپه واخستو) په ګس طرف به ئى اچولو، بيا (لپه اخستوسره) دَ خپل سر (مينځمې حصه) باندې بهيولې.

## تراجم رجال

**محمدبن المثنى**: (۲) دا مشهور محدث حافظ محمدبن المثنى بن عبيد بن قيس بن دينار عنبرى بصرى دې. دَ زَمِن په لقب سره مشهوردې اصل شهرت دَ دوى په نوم اوكنيت سره دې. (۳)

**شيوخ حديث**: دَ دوى په شيوخ او اساتذه حديث كښې ابواسحاق ابراهيم بن اسحاق طالقانى، احمدبن سعيد دارمى، ازهر بن سعد السمان، اسحاق بن يوسف الازرق، اسماعيل بن عليه، بشر بن عمر زهرانى، حجاج بن منهال، حسين بن حسن بصرى، حفص بن غياث، ابوالنعمان عجلى، حماد بن سهل، روح بن عباده، سفيان بن عيينه، ابوعاصم ضحاك بن مخلد، عبدالله بن حمران، عبدالاعلى بن عبدالاعلى، عبدالرحمن بن مهدى، عثمان بن عثمان غطفانى، عثمان بن عمر بن فارس، عفان بن مسلم، كثير بن هشام، محمدبن جعفر غندر، محمدبن جهضم، محمدبن عبدالله انصارى، محمدبن عرعره، معاذ بن معاذ، معاذ ابن هشام مكى بن ابراهيم، وكيع بن الجراح، يحيى بن حماد شيبانى، يحيى بن سعيد القطان، يزيد بن هارون، يونس بن بكير، ابوبكر الحنفى، ابوداؤد طيالسى، ابوعامر العقدى، ابومعاويه الضرير او ابوالوليد طيالسى وغيره محدثين عظام رحمهم الله شامل دى. (۴)

---

(۱) الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة رقم: ۷۲۵وأبوداؤد فى سننه كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة رقم: ۲۴۰ والنسائى فى سننه كتاب الغسل والتيمم باب استبراء البشرة فى الغسل من الجنابة رقم: ۴۲۴ انظر جامع الأصول، النوع الأول فى كيفية الغسل: ۷/۲۸۴-۲۸۲ تحت رقم: ۵۳۱۹ راجع تحفة الأشراف: ۱۲/۲۶۵رقم: ۱۷۴۴۷.

(۲) ددوى مختصر حالات كشف البارى كتاب الإيمان باب حلاوة الإيمان: ۲/۲۵ كښې تيرشوى دى.

(۳) تهذيب الكمال: ۲۶/۳۵۹رقم الترجمة: ۵۵۷۹تقريب التهذيب: ۲/۱۲۹ رقم: ۶۲۸۳، تهذيب التهذيب: ۹/۴۲۵رقم : ۶۹۶ميزان الاعتدال: ۴/۲۴رقم: ۸۱۱۵ سيرأعلام النبلاء: ۱۲/۱۲۳رقم: ۴۲، إكمال ابن ماكولا: ۱۰/۳۲۷رقم: ۴۲۷۷ تذكرة الحفاظ: ۲/۵۱۲رقم: ۵۲۷كتاب الثقات لابن حبان: ۹/۱۱۱الجرح والتعديل :۸/۱۰۹ رقم: ۴۰۹/۱۳۷۱۶ الكاشف: ۲/۲۱۴رقم: ۵۱۳۴تاريخ بغداد: ۴/۵۱رقم: ۱۶۸۷.

(۴) اوګورئى تهذيب الكمال: ۲۶/۳۶۲-۳۵۹تهذيب التهذيب: ۹/۴۲۶-۴۲۵سيرأعلام النبلاء: ۱۲/۱۲۳.

**تلامذه:** دَدوی تلامذه او روایت کونکوکښې اصحاب اصول سته امام بخاري، مسلم، ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، ابویعلی احمدبن علی موصلي، بقي بن مخلد اندلسي، جعفر بن محمدفریابي، حسین بن اسماعیل محاملي، ابوعروبه حراني، زکریا بن یحیی ساجي، زکریا بن یحیی السجزي، ابو زرعه، ابوحاتم، محمدبن یحیی ذیلي، ابن ابی الدنیا، ابوالحسین سمناني، عبدالرحمن بن یوسف بن خراش، قاسم بن زکریا المطرز، محمدبن اسحاق خزیمه، محمد بن صالح النرسي، محمدبن هارون رویاني، یحیی بن محمدبن صاعد او ابوبکر بن ابی داؤد وغیره رحمهم الله شامل دي. [1]

**جلالت شان اودَ ائمه توثیقي اقوال:** محمدبن مثنی رحمه الله اومشهور محدث بُندار هم په یو کال یعنی ۱۶۷هجري کښې پیداشوی.[2] دَ محمد بن مثنی شمیر دَ محدثینو په طبقه عاشره کښې دې.[3]

ابن معین رحمه الله فرمائیلي ثقة.[4]

ابوسعید هروي رحمه الله وائي چه ما دَ امام ذهلي نه دَهغوی باره کښې تپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل حجة.[5] علامه ذهبي رحمه الله فرمائي ثقة ورع.[6] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ثقة ثبت.[7] ابوحاتم رحمه الله فرمائي صالح الحديث صدوق.[8] مسلمه بن قاسم رحمه الله فرمائي ثقة مشهور من الحفاظ.[9]

ابوعروبه رحمه الله وائي چه ما په بصره کښې ابوموسیٰ اویحییٰ بن حکیم نه زیات څوك په حدیث کښې اثبت (پوخ) نه دي لیدلي.[10] عبدالرحمن بن یوسف بن خراش رحمه الله فرمائي **کان من الأثبات**.[11] یعنی محمدبن مثنی د حدیث په پخو راویانو کښې وو. ابن حبان په کتاب الثقات کښې دَ هغوی تذکره کړې ده اوفرمائیلي دي چه دې صاحب کتاب وو او دَ خپل کتاب نه په کتلوسره به ئې احادیث بیانول.[12]

ابن شاهین هم په کتاب الثقات کښې تذکره کړې ده.[13]

خطیب بغدادي رحمه الله په خپل تاریخ کښې لیکلي دي «**کان ثقة ثبتاً، احتج سائر الأئمة بحديثه**».[14] خطیب رحمه الله نور فرمائي «**کان صدوقاً ورعاً عاقلاً فاضلاً**».[1] یعنی ابوموسیٰ صدوق پرهیزګار عاقل او فاضل وو.

---

[1] تهذیب الکمال: ۳٦۲/۲٦تهذیب التهذیب: ٤۲٦/۹سیر أعلام النبلاء: ۱۲٤/۱۲.

[2] کتاب الثقات لابن حبان: ۱۱۱/۹تاریخ بغداد: ٥۱/٤تهذیب الکمال: ۳٦٤/۲٦.

[3] تقریب التهذیب: ۱۲۹/۲الثقات لابن حبان: ۱۱۱/۹.

[4] الجرح والتعدیل: ۱۱۰/۸تهذیب الکمال: ۳٦۲/۲٦تهذیب التهذیب: ٤۲٦/۹میزان الاعتدال: ۲٤/٤.

[5] تهذیب التهذیب: ٤۲٦/۹سیر أعلام النبلاء: ۱۲٤/۱۲تهذیب الکمال: ۳٦۲/۲٦تاریخ بغداد: ٥۲/٤.

[6] الکاشف: ۲۱٤/۲.

[7] تقریب التهذیب: ۱۲۹/۲.

[8] الجرح والتعدیل: ۱۱۰/۸تهذیب الکمال: ۳٦۳/۲٦تهذیب التهذیب: ٤۲٦/۹.

[9] إکمال تهذیب الکمال لابن ماکولا: ۳۳۰/۱.

[10] تاریخ بغداد: ٥۳/٤تهذیب الکمال: ۳٦۳/۲٦تذکرة الحفاظ: ٥۱۲/۲سیر أعلام النبلاء: ۱۲٤/۱۲.

[11] تاریخ بغداد: ٥۳/٤تهذیب الکمال: ۳٦٤/۲٦-۳٦۳میزان الاعتدال: ۲٤/٤تهذیب التهذیب: ٤۲۷/۹.

[12] کتاب الثقات: ۱۱۱/۹.

[13] إکمال ابن ماکولا: ۳۳۰/۱۰تهذیب التهذیب: ٤۲۷/۹.

[14] تاریخ بغدادي: ٥۱/٤تهذیب الکمال: ۳٦٤/۲٦.

وو. عبدالرحمن سلمى رحمه الله وائي چه ما دَ امام دارقطني رحمه الله نه دَ محمدبن مثنى باره كښې تپوس اوكړو نوهغوى اوفرمائيل «أحد المحدثين الثقات» [2] يعنى دَ ثقه محدثينونه دې. نور فرمائي چه په بندار باندې ابوموسىٰ ته تقديم حاصل دې ځکه چه هغه زيات تجربه کار اودَ پخو اسانيدو والا دې. [3] ابن ماكولا وغيره صاحب الزهرة نه نقل کړى دى چه امام بخارى رحمه الله دَ محمدبن مثنىٰ نه يوسل درې احاديث او امام مسلم رحمه الله ۷۷۲ احاديث روايت کړى دى. [4]

**وفات:** مشهور محدث بُندار اومحمد بن مثنىٰ هم په يوكال کښې وفات شوى دى. بعض حضراتو دَ ابوموسىٰ دَ وفات كال ۲۵۰ او ۲۵۱ هجرى نقل کړې دې. [5] ليکن دا صحيح نه دې. ابونصر كلابازى وائي چه محمدبن مثنىٰ دَ بندار دَ انتقال نه څلورمياشتې پس وفات شوې. [6] علامه مزى رحمه الله ليکلى دى چه محمدبن مثنىٰ دَ بندار دَ انتقال نه پس لس کم سل ورځې ژوندې وو بيا وفات شو. راجح خبره داده چه محمدبن مثنىٰ په بصره کښې ذى قعده ۲۵۲ هجرى کښې وفات شوې هم دغه قول دَ ابن حبان رحمه الله ابراهيم بن محمد کندى، ابوالقاسم علامه ذهبى اوحافظ ابن حجر رحمهم الله نه نقل دې. [7]

**ابوعاصم:** دا امام ابوعاصم النبيل ضحاك بن مخلد بن ضحاك بن مسلم شيبانى بصرى رحمه الله دې. دَدوى تفصيلى احوال **كتاب العلم باب ماجاء فى العلم وقوله تعالى: ﴿ وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا ﴾** کښې تيرشوى دى. [8]

حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله ليکلى دى چه امام ابوعاصم دَ امام بخارى رحمه الله په کبار شيوخ کښې دې او امام بخارى رحمه الله په خپل صحيح کښې دَ هغوى نه په کثرت سره روايت کوى. البته حديث باب په سند کښې يوه واسطه (دَمحمدبن مثنىٰ) خپل اودَ هغه په مينځ کښې راوړلې دې. [9]

**حنظلة** [10] دادَ مکې مکرمې مشهور محدث حنظله بن ابى سفيان بن عبدالرحمن بن صفوان بن اميه بن خلف بن وهب بن حذافه ابن جمحى مكى قرشى رحمه الله دې. [11] دا دَ عمرو بن ابى سفيان او

---

[1] تاريخ بغدادى: ٥٢/٤ تهذيب الكمال: ٣٦٤/٢٦.

[2] إكمال ابن ماكولا: ٣٢٩/١٠ تهذيب التهذيب: ٤٢٧/٩.

[3] إكمال ابن ماكولا: ٣٢٩/١٠ تهذيب التهذيب: ٤٢٧/٩.

[4] إكمال ابن ماكولا: ٣٣٠/١٠ تهذيب التهذيب: ٤٢٧/٩.

[5] تهذيب الكمال: ٣٦٥/٢٦ تهذيب التهذيب: ٤٢٧/٩.

[6] تهذيب الكمال: ٣٦٥/٢٦.

[7] كتاب الثقات: ١١١/٩ تهذيب الكمال: ٣٦٥/٢٦ تاريخ بغداد: ٥٣/٤ سير أعلام النبلاء: ١٢٥/١٢ تذكرة الحفاظ: ٥١٢/٢ الكاشف: ٢١٤/٢ تهذيب التهذيب: ٤٢٧/٩ الكامل لابن اثير: ١٨٨/٦.

[8] كشف البارى: ١٥٤/٣-١٥٢.

[9] فتح البارى: ٤٨٩/٢ عمدة القارى: ٣٠٤/٣.

[10] ددوى مختصر حالات كشف البارى: ٦٢٦/١ كتاب الإيمان وقول النبى ﷺ "بنى الإسلام على خمس" لاندې تير شوى دى.

[11] الطبقات الكبرىٰ لابن سعد: ٤٩٣/٥ تهذيب الكمال: ٤٤٤/٧-٤٤٣ رقم الترجمة: ١٥٦ تهذيب التهذيب: ٦١/٣-٦٠ رقم: ١١٠ سير أعلام النبلاء: ٣٣٦/٦ رقم: ١٣٩ تذكرة الحفاظ: ١٧٦/١ رقم: ١٧٤ التاريخ الكبير: ٤٤/٣ رقم: ١٧٠ الجرح والتعديل: ٢٦٠/٣ رقم: ١٠٧١ ميزان الاعتدال: ٦٢٠/١ رقم: ٢٢٧٠ الكاشف: ٣٥٨/١ رقم: ١٢٧٦ مقدمة الفتح: ٥٦٣/١.

عبدالرحمن بن ابی سفیان رور دي.(¹)دَدوی دَ مور نوم اونسب حفصه بنت عمرو بن ابی عقرب دي. (²)
**اساتذه حدیث**: حنظله بن ابی سفیان رحمه الله چه دَ کومو ائمه کبار اومحدثین عظام نه دَحدیث علم حاصل کړي دي په هغوی کښې سالم بن عبدالله بن عمر، سعید بن میناء، طاؤس بن کیسان، عبدالله بن عروة بن الزبیر، عبدالرحمن بن سابط جمحی، عبدالعزیز بن عبدالله عمری، عروة بن محمد سعدی، عطاء بن ابی رباح، عکرمه بن خالد مخزومي، عون بن عبدالله بن عتبه بن مسعود، قاسم بن محمد بن ابی بکر صدیق، مجاهدبن جَبر، ، نافع مولی ابن عمر اودَ هغه دوه رونړه عبدالرحمن بن ابی سفیان او عمرو بن ابی سفیان رحمهم الله شامل دی. (³)
**تلامذه**: دَهغوی نه حدیث نقل کونکوکښې اسحاق بن سلیمان رازی، جعفر بن عون عمری، حماد بن عیسیٰ جهنی، حماد بن مسعدہ، سعیدبن خثیم هلالی، سفیان ثوری، ابوعاصم النبیل، عبدالله بن الحارث مخزومي، عبدالله بن داؤد واسطی، عبدالله بن مبارك، عبدالله بن نمیر، عبدالله بن وهب، عبیدالله بن موسیٰ، عنبه بن عبدالواحد قرشی، مخلد بن یزید حرانی، مکی بن ابراهیم بلخی، وکیع بن الجراح، الولید بن عقبه شیبانی، الولیدبن مسلم اویحییٰ بن سعید القطان رحمهم الله شامل دی. (⁴)

**دَ ائمه جرح وتعدیل توثیقی کلمات**: امام ابوداؤد ابوزرعه نسائی یحیی بن سعید رحمهم الله فرمائی ثقة.(⁵) علامه ذهبی رحمه الله سیرأعلام النبلاء کښې فرمائی «**كان من أئمة الحديث بمكة**»(⁶) یعنی حنظله رحمه الله دَ مکې دَ ائمه حدیث نه وو.
**دَ ابن عدی رحمه الله جرح**: ابن عدی رحمه الله الکامل في الضعفاء کښې دَ دوی تذکره کړې ده اودَ ائمه نه نی دَهغوی توثیق هم نقل کړې دې. البته دَهغوی یو روایت نقل کولوسره هغه نې منکرکړې دې اووائی چه دَدې حدیث متن غیرمحفوظ دې. البته دائی هم ونیلی دی چه دا روایت دَ حنظله نه نقل نه دې بلکه ابوقتاده عبدالله بن واقد حرانی ته وهم شوې دې هغوی دَ دې نسبت حنظله ته کړې دی ځکه چه حنظله په عام توګه مستقیم اوصالح احادیث نقل کوی اوکله چه هغه دَیوثقه نه روایت کوی نومستقیم الحدیث وی. (⁷)
**دَعلامه ذهبی رحمه الله په ابن عدی باندې نقد**: علامه ذهبی رحمه الله دَ ابن عدی په ضعفاء کښې تذکره کولو باندې مذمت کړې او په میزان الاعتدال کښې فرمائی «**ذكره ابن عدي ولا لما كنت أذكره**» یعنی ابن

---

¹) تهذیب الکمال: ٤٤٤/٧.
²) الطبقات الکبری: ٤٩٣/٥.
³) تهذیب الکمال: ٤٤٤/٧ تهذیب التهذیب: ٦١/٣-٦٠.
⁴) تهذیب الکمال: ٤٤٥/٧-٤٤٤ سیر أعلام النبلاء: ٣٣٧/٦ تهذیب التهذیب: ٦١/٣.
⁵) تهذیب الکمال: ٦١/٣ الجرح والتعدیل: ٢٦٠/٣.
⁶) سیرأعلام النبلاء: ٣٣٧/٦.
⁷) الکامل فی الضعفاء: ٤٢١/٢-٤٢٠ رقم ١٦٨/٥٣٧.

عدی ضعفاء کښې ذکر کړې دې که چرې هغه داسې نه وې کړې نوما به هم دَهغه تذکره نه کوله (ځکه چه هغه ثقه دی).([1])

سیرأعلام النبلاء کښې علامه ذهبی رحمه الله په ابن عدی باندې تنقید کولوسره لیکي چه ابن عدی په الکامل کښې دَهغوی تذکره کولوسره خپل ځان په پریشانتې کښې اچولې دې. هغه دَ دوی هیڅ عیب نه دې بیان کړې په اصل کښې دَهغه دا بې ځایه سختی ده.([2])

**دَ ابن عدی ذکرکړې شوې حدیث:** ابن عدی دَ خپل شیخ احمد بن عبدالله بن سابور په سندسره حنظله بن ابی سفیان عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی «**اغسلو قتلاکم**» دا حدیث نقل کولو نه پس ابن عدی وئیلی چه مونږ داحدیث دَ خپل شیخ ابن سابور نه علاوه دَ بل چانه نه دې لیکلې.([3])

**دَ حدیث صحیح محمل:** علامه ذهبی رحمه الله سیرأعلام النبلاء کښې دَدې روایت نقل کولونه پس لیکلی دی چه «**ورواته ثقات**» یعنی دَدې راویان ثقه دی (که چرې متن صحیح اومنلې شی نوبیا) به دا په مقتول باندې محمول وی کوم چه دَ جنګ دَ میدان نه علاوه اووژلې شی. دې نه علاوه علامه ذهبی رحمه الله نور لیکلی دی کیدې شی (دَمتن) دا غلطی دَ ابن عدی دَ شیخ یا شیخ الشیخ دَ طرف نه وی ځکه چه ثقه راوی هم کله دَ وهم ښکار کیږی.([4])

محشی سیرأعلام النبلاء په ابن عدی باندې دَ علامه ذهبی په راګیرولو باندې لیکلی دی چه مؤلف (علامه ذهبی) باندې دَ (ابن عدی) دا رانیول دَ احادیثو متون او په هغې باندې دَ نقد په حواله سره دَهغه دَ سعت اطلاع او بصیرت نافذه واضح کوی. اودَ علامه ذهبی دَ داسې راګیرولو ډیرزیات مثالونه په تراجم کښې خواره دې اوډیرزیات محدثین دَدې نه غافل دی. حالانکه ټول صحابه کرام رضي الله عنهم خاص کر حضرت عائشه رضي الله عنها متون حدیث باندې به د نقد اهتمام کولو. که چرې هغه متن د حدیث قرآن کریم یا حس سلیم یادَهغوی دَعقلی دلائلو خلاف ومبائن وی چه اسلام اودَهغې اصول اوکلیات کښې راګیرشوی وی. هغه متون احادیث دَ کوم دَ اسانید رجال سره دَدې چه ثقه اوعادل دی په هغوی باندې دَنقد او ګرفت په حواله سره دَ امام زرکشی تالیف مستدرکات عائشة رضي الله عنها یوه بهترینه نمونه ده. (تعلیقات سیرأعلام النبلاء: ۳۳۸/۲). علامه ذهبی رحمه الله په تذکرة الحفاظ کښې دَهغوی تذکره **الحافظ الثبت** او الکاشف کښې **من الاثبات** په الفاظوسره کړې ده.([5])

عبدالله بن احمدبن حنبل رحمه الله دَخپل پلار نه نقل کړی دی هغوی فرمائی چه کله به امام وکیع رحمه الله دَ حنظله رحمه الله حدیث نقل کولو نو «**حدثنا حنظلة بن أبي سفيان**» نه پس به ئې فرمائیل «**كان ثقة ثقة**».([6])

یحیٰی بن معین رحمه الله فرمائی: **حنظلة بن أبي سفيان ثقة**.([1]) امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی: **ثقة ثقة**.([2]) ابن ابی مریم رحمه الله دَ ابن معین رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی **ثقة حجة**.([3]) یعقوب بن شیبه رحمه الله فرمائی

---

[1]) میزان الاعتدال: ۶۲۰/۱ رقم: ۲۳۷۰.

[2]) سیرأعلام النبلاء: ۳۳۷/۶.

[3]) الکامل: ٤۲۱/۲.

[4]) سیرأعلام النبلاء: ۳۳۸/۶-۳۳۷

[5]) تذکرة الحفاظ: ۱۷۶/۱ الکاشف: ۳۵۸/۱.

[6]) الجرح والتعدیل: ۲۶۰/۳ تهذیب الکمال: ٤٤۵/۷.

كان ثقة. (۴)ابن سعد رحمه الله فرمائى كان ثقة.(۵) ابن حبان رحمه الله ثقات كښې تذكره كړې ده.(۶) حافظ ابن حجر رحمه الله هم دَهغوى توثيق كړې دې. (۷)امام ترمذى رحمه الله فرمائى ((ثقة وثقه يحيى بن سعيد القطان))(۸) علامه ذهبى رحمه الله فرمائى ((حنظلة إذا ثقة بإجماع))(۹) حنظله رحمه الله په اجماع سره ثقه دې.

**وفات**: امام احمدبن حنبل رحمه الله دَ يحيىٰ بن سعيد رحمه الله نه نقل كړى دى چه حنظله بن ابى سفيان رحمه الله ۱۵۱هجرى پورې ژوندې وو. (۱۰)امام بخارى رحمه الله دَ يحيىٰ بن سعيد رحمه الله نه نقل كړى دى چه حنظله بن ابى سفيان رحمه الله ۱۵۱هجرى كښې وفات شوې. (۱۱)هم دغه قول (۱۵۱هجرى كښې دَ وفات) دَ ابن سعد، خليفه بن خياط، ابن حبان، ابن زبر، حافظ ابن حجر اوعلامه ذهبى رحمهم الله وغيره نه هم نقل دې. (۱۲)رحمه الله رحمةً واسعةً.

**القاسم**: دا مشهور محدث وفقيه قاسم بن محمد بن ابى بكرالصديق عبدالله بن عثمان بن عامرين عمرو بن كعب بن سعد بن تميم بن مره، قرشى تيمى مدنى رحمه الله دې.(۱۳)
دَ هغوى مور ام ولد وه هغې ته به سوده وئيلې شوه. (۱۴)ابومحمد دَهغوى كنيت دې ابو عبدالرحمن هم ورته وئيلې شو.(۱۵)

**ولادت**: علامه ذهبى رحمه الله په سيرأعلام النبلاء كښې دَ قاسم بن محمد رحمه الله ولادت دَحضرت على رضي الله عنه په دور خلافت كښې كيدل نقل كړې دى. او په تاريخ الإسلام كښې دَحضرت عثمان رضي الله عنه په دور خلافت كښې پيداكيدل ليكلى دى. (۱۶)

---

۱) سيرأعلام النبلاء: ۳۳۷/۶الجرح والتعديل: ۲۶۰/۳.
۲) تهذيب ا لتهذيب: ۶۱/۳تذكرة الحفاظ: ۱۷۶/۱.
۳) تذكرة الحفاظ: ۱۷۶/۱ تهذيب الكمال: ۴۴۵/۷.
۴) مقدمة الفتح: ۵۶۳/۱تهذيب التهذيب: ۶۱/۳.
۵) الطبقات: ۴۹۳/۵.
۶) تهذيب التهذيب: ۶۱/۳.
۷) مقدمة الفتح : ۵۶۳/۱تعليقات تهذيب الكمال: ۴۴۶/۷.
۸) سنن الترمذى كتاب الدعوات باب ماجاء فى رفع الأيدى عندالدعاء تحت رقم الحديث: ۳۳۸۶.
۹) ميزان الاعتدال: ۶۲۰/۱.
۱۰) تهذيب الكمال: ۴۴۷/۷.
۱۱) تهذيب التهذيب: ۶۱/۳التاريخ الكبير: ۴۵/۳-۴۴.
۱۲) الطبقات الكبرى:۴۹۳/۵حاشية تهذيب الكمال: ۴۴۷/۷الكاشف: ۳۵۸/۱سيرأعلام النبلاء: ۳۳۸/۶.
۱۳) تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳-۳۲۷رقم الترجمة: ۱۴۳۲ الطبقات الكبرى: ۱۸۷/۵تهذيب الكمال: ۴۲۷/۲۳ رقم: ۴۸۱۹التاريخ الكبير:۱۵۷/۷رقم: ۷۰۵سيرأعلام النبلاء:۵۳/۵رقم: ۱۸ تهذيب التهذيب: ۳۳۳/۸رقم: ۶۰۱ تذكرة الحفاظ: ۹۶/۱رقم: ۸۸حلية الأولياء: ۱۸۳/۲رقم: ۱۷۲كتاب الثقات: ۳۰۲/۵الجرح والتعديل: ۱۵۸/۷رقم: ۶۷۵ تقريب التهذيب : ۳۳/۲رقم: ۵۵۰۶ الكاشف:۱۳۰/۲ رقم الترجمة: ۴۵۲۸.
۱۴) الطبقات الكبرى: ۱۸۷/۵تهذيب الكمال: ۴۳۰/۲۳.
۱۵) تاريخ الإسلام:۳۲۸/۳الطبقات: ۱۹۴/۵الثقات: ۳۰۲/۵تهذيب الكمال:۴۲۷/۲۳تهذيب التهذيب: ۳۳۳/۸.
۱۶) سيرأعلام النبلاء: ۵۴/۵تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳.

**دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په پالنه كښې:** امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دَهغوى والد محمدبن ابى بكر دَ حضرت عثمان رضي الله عنه نه پس تقريباً ۳۶ هجرى كښې قتل كړې شو نو قاسم يتيم شو او دَحضرت عائشه رضي الله عنها په پالنه كښې راغلو. (۱)

حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه فرمائي چه ما دَ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په اولاد كښې دَ ده په شان سواد قاسم نه بل څوك نه دې ليدلې. (۲)

**شيوخ حديث اوكسب علم:** حضرت قاسم بن محمد رحمه الله يتيم كيدوسره دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په پالنه كښې راغلو او دَ يوې اوږدې مودې پورې دَهغې په صحبت كښې پاتې شو. دَهغې نه ئې حديث علم په كثرت سره حاصل كړو او په دينى مسائلو كښې ئې تفقه پيدا كړه. (۳)

علامه واقدى رحمه الله په خپل سندسره دَحضرت قاسم رحمه الله نه نقل كړې دې هغوى فرمائي چه حضرت عائشه رضي الله عنها حضرت ابوبكر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه اوحضرت عثمان رضي الله عنه دَخلافت په زمانه كښې به ئې فتوىٰ وركوله اودا سلسله دَ هغوى دَ وفات پورې روانه وه. حضرت قاسم رحمه الله وائي چه زه به دَ خپل ماشوموالى دَ حركتونو سره دَ هغوى په صحبت كښې لازمى ناست ووم او زه به دَ علم سمندر حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه په مجلس كښې كيناستلم. ددوى نه علاوه به دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما په مجلس كښې هم كيناستم اودَ ابن عمر رضي الله عنهما په نيزورع، په كثرت دَعلم اودَ كومو څيزونو چه به علم نه وو دَهغې په جواب كښې توقف كيدلو. (۴)هغوى رحمه الله دَ حديث علم دَحضرت عائشه رضي الله عنها ابن عمر ابن عباس خپلې نيا اسماء بنت عميس، ابوهريره، فاطمه بنت قيس، رافع بن خديج، عبدالله بن خباب، عبدالله بن عمرو، معاويه رضي الله عنهم اسلم مولى عمر بن الخطاب صالح بن خوات بن جبير، عبدالله بن جعفر بن ابى طالب، عبدالله بن زبير، عبدالله بن عبدالله بن عمر اودَ خپل تره خونى عبدالله بن عبدالرحمن بن ابوبكر صديق، عبدالله بن عمرو بن العاص اوعبدبن جاريه دَ دوو ځامنونه حاصل كړې (۵) دَدوى دَخپل پلار محمد او نيكه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه نه روايت منقطع دې. (۶)

**تلامذه:** دَحضرت قاسم رحمه الله نه دَ محدثينو يوكثر شمير استفاده كړې ده. دَهغوى رحمه الله نه دَحديث علم حاصلونكوكښې اسامه بن زيد ليثى، افلح بن حميد، انس بن سيرين، ايوب سختيانى، جعفر بن محمد الصادق، حميد الطويل، حنظله بن ابى سفيان، سالم بن عبدالله بن عمر، عامر شعبى، ابوالزناد عبدالله ابن ذكوان، عبدالله بن عون، عبدالرحمن بن القاسم بن محمد، عيسىٰ بن ميمون واسطى، مالك بن دينار، محمدبن مسلم شهاب زهرى، محمدبن منكدر، نافع مولى ابن عمر، يحيىٰ بن سعيدانصارى، ابوبكربن محمدبن عمرو بن حزم اوابوعثمان رحمهم الله وغيره شامل دى. (۷)

---

(۱) تهذيب الكمال: ۲۳/۴۳۰تهذيب التهذيب: ۸/۳۳۴.
(۲) سيرأعلام النبلاء: ۵/۵۵تهذيب الكمال: ۲۳/۴۳۰.
(۳) سيرأعلام النبلاء: ۵/۵۴تذكرة الحفاظ: ۱/۹۷تاريخ الإسلام: ۵/۵۵.
(۴) تهذيب الكمال: ۲۳/۴۳۱-۴۳۰سيرأعلام النبلاء: ۵/۵۵.
(۵) تهذيب الكمال:۲۳/۴۲۸-۴۲۷تهذيب التهذيب: ۸/۳۳۳سيرأعلام النبلاء: ۵/۵۴تاريخ الإسلام: ۳/۳۲۸.
(۶) سيرأعلام النبلاء:۵/۵۴ تعليقات الكاشف:۲/۱۳۰.
(۷) تهذيب الكمال: ۲۳/۴۳۰-۴۲۸تهذيب التهذيب:۸/۳۳۴-۳۳۳سيرأعلام النبلاء: ۵/۵۴.

**دَ ائمه توثیقی کلمات او جلالت شان:** حضرت قاسم بن محمد رحمه الله دَ فقهاء مدينه نه وو. امام ابونعيم اصفهانی رحمه الله حلیة الأولياء كښې دَهغوی تذکره په دې الفاظوسره کړې ده: قاسم بن محمد بن ابی بكر فقيه پرهيزگار شفيق متواضع دَ صديق فرزند، دَښکلې حسب والا دَ غامض احکامو په خودلو کښې فائق اودَ ښکلې اخلاقو طرف ته سبقت کونکې وو. [1]

ابن عيينه رحمه الله فرمائی «كان من أفضل أهل زمانه» [2] يعنى دَ خپلې زمانې دَ ټولو نه دَ غوره خلقو نه وو. ابوالزناد رحمه الله فرمائی چه ما دَ قاسم رحمه الله نه لوئی هيڅوک دَ سنت عالم نه دې ليدلې او ځوک ترهغه وخته پورې لوئی سړې نه شی شميرلې ترکومې چه هغه ته دَ سنت علم نه وی. [3] يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائی چه مونږ (په خپله زمانه کښې) په مدينه کښې څوک نه دې ليدلې چه مونږ هغه ته په قاسم رحمه الله باندې فضيلت ورکړو. [4]

محمد بن سعيد رحمه الله دَ محمد بن عمر رحمه الله نه نقل کړی دی هغوی فرمائی: «كان ثقة، وكان رفيعاً عالماً فقيهاً إماماً، كثير الحديث، ورعاً» [5] يعنی قاسم بن محمد رحمه الله ثقه، دَ اوچتې مرتبې والا فقيه امام كثير الحديث او پرهيزگار وو. ابن حبان رحمه الله اوفرمائيل چه قاسم بن محمد رحمه الله دَ لويو تابعينو اوعلم، ادب، عقل او فقه کښې دَخپلې زمانې دَ غوره او بهترينو خلقونه وو او ډيرې کمې خبرې به ئی کولې. [6]

علامه دهبی رحمه الله په تاريخ الإسلام کښې فرمائيلی: «كان فقيهاً، إماماً، مجتهداً، ورعاً، عابداً، ثقة، حجة» [7] اوسير أعلام النبلاء کښې فرمائی: «الإمام القدوة، الحافظ الحجة، عالم وقته بالمدينة مع سالم وعكرمة» [8] يعنی حضرت قاسم بن محمد رحمه الله فقيه، امام، مجتهد، پرهيزگار، عبادت گذار، ثقه، قدوه پيشوا، حافظ حجت او سالم، عكرمه سره په خپله زمانه کښې دَمدينې لوئې عالم وو.

سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائی چه دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَحديث دَ ټولو نه زيات علم لرونکی درې کسان دی: ① قاسم بن محمد ② عروه بن زبير او ③ عمره بنت عبدالرحمن. [9] امام بخاری رحمه الله دَ علی بن مدينی رحمه الله نه نقل کړی دی چه دَ قاسم بن محمد رحمه الله دوه سوه احاديث دی. [10]

**دَامام بخاری رحمه الله دَ روايت عجيبه انداز:** امام بخاری رحمه الله په خپل صحيح کښې دَ حضرت قاسم رحمه الله خوئی عبدالرحمن په واسطه دَ سفيان حديث نقل کولو کښې يوعجيبه انداز اختيارولوسره فرمائيلی

---

[1] حلية الأولياء: ۱۸۳/۲.
[2] التاريخ الكبير: ۱۵۷/۷الجرح والتعديل: ۱۵۸/۷.
[3] حلية الأولياء: ۱۸٤/۲التاريخ الكبير: ۱۵۷/۷ تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳سير أعلام النبلاء: ۵٦/۵.
[4] تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳حلية الأولياء: ۱۸٤/۲تهذيب الكمال: ٤۳۱/۲۳.
[5] الطبقات الكبرى: ۱۹٤/۵تذكرة الحفاظ: ۹۷/۱سير أعلام النبلاء: ۵۵/۵.
[6] كتاب الثقات لابن حبان: ۳۰۲/۵.
[7] تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳.
[8] سير أعلام النبلاء: ۵٤/۵-۵۳.
[9] الجرح والتعديل: ۱۵۹/۷تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳.
[10] تهذيب الكمال: ٤۳۰/۲۳سير أعلام النبلاء: ۵٤/۵.

دي: «حدثنا عبدالرحمن بن القاسم وكان أفضل أهل زمانه، أنه سمع أباه وكان أفضل أهل زمانه» (1) مونږ ته حديث بيان كړو عبدالرحمن بن قاسم اوهغه دَ خپلې زمانې دَ غوره خلقونه وو، هغوى دَ خپل پلار قاسم نه واوريده او هغه دَ خپلې زمانې دَ غوره خلقو نه وو.

**دَمدينې په فقهاؤکښې شمير:** ابوالزناد رحمه الله اوفرمائيل په اهل مدينه کښې اووه لوئى خلق دى «يعنى فقهاء» کله چه په څه مسئله کښې اختلاف کيږى نو په هغوى کښې دَ يوقول اخستې شى په هغوى کښې يوقاسم رحمه الله دې. (2) يحيٰى بن قطان رحمه الله فرمائيلى چه دَ مدينې فقهاء لس دى بيا په هغوى کښې دَ قاسم رحمه الله نوم واخستو. (3) عبدالله بن وهب رحمه الله امام مالک رحمه الله دَ قاسم بن محمد رحمه الله تذکره اوکړه اووئى فرمائيل چه هغه دَ دې امت دَ فقهاؤ نه وو. (4)

**دَ ابن سيرين رحمه الله دَ قاسم رحمه الله حالات معلومولو سره اقتداء کول:** امام مالک رحمه الله اوفرمائيل چه کله ابن سيرين رحمه الله بيمار شو او حج له نه شو تللې نو حج له تلونکو خلقو ته به ئى وئيل چه هغوى دې دَ قاسم بن محمد رحمه الله سيرت، لباس وغيره جائزه واخلى اورادې شى. خلق به واپس راغلل اودَ قاسم بن محمد رحمه الله «حالات اومعمولات» به ئى بيان کړل نوابن سيرين رحمه الله به دَ قاسم بن محمد رحمه الله اقتداء کوله. (5)

**خيار التابعين:** احمدبن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى «کان من خيار التابعين وفقهائهم» يوبل ځائى کښې فرمائيلى: «مدنى، تابعى، ثقة، نزه، رجل، صالح» (6) مصعب بن عبدالله بن زبير رحمه الله فرمائى «القاسم بن محمد من خيار التابعين» (7)

**تواضع اوعلمى معاملاتوکښې حزم او احتياط:** يونس بن بکير رحمه الله وائى چه مونږ ته ابن اسحاق رحمه الله بيان اوکړو چه يو باندچى قاسم بن محمد رحمه الله له راغلو او تپوس ئى اوکړو چه تاسو دَ زيات علم والا ئى که سالم؟ قاسم بن محمد رحمه الله په جواب کښې اوفرمائيل سبحان الله په مونږ کښې به هريو دَخپل علم مطابق تاته جواب درکړى. يعنى ته چه کومه خبره معلومول غواړې دَهغې باره کښې سوال اوکړه. هغه بيا تپوس اوکړو چه په تاسو کښې اعلم څوک دې؟ هغوى په جواب کښې اووئيل سبحان الله هغه بيا سوال اوکړو نوهغوى په جواب کښې اوفرمائيل هغه يعنى سالم. څه چه څه تپوس کوې نودَ هغه نه اوکړه. دې وينا کولوسره دَخپل ځائى نه پاسيدو.

ابن أسحاق رحمه الله وائى چه هغوى داخبره ناخوښه کړه چه دا اووائى چه زه دَ زيات علم والايم ځکه چه دا به هم خپل تعريف اوتزکيه وه اودائى هم ناخوښه کړه چه سالم ته اعلم اووائى ځکه چه دا غلط بيانى وه.

---

1) كتاب الحج باب الطيب بعد رمى الجمار والحلق قبل الإفاضة رقم: ۱۷۵٤.

2) تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳.

3) تاريخ الإسلام: ۳۲۸/۳.

4) تهذيب الكمال: ٤۳۳/۲۳ تهذيب التهذيب: ۳۳٤/۸.

5) سير أعلام النبلاء: ۵۷/۵ تهذيب الكمال: ٤۳۳/۲۳.

6) تهذيب التهذيب: ۳۳۵/۸ سير أعلام النبلاء: ۵۷/۵.

7) تهذيب الكمال: ٤۳۳/۲۳ تهذيب التهذيب: ۳۳۵/۸.

ابن اسحاق رحمه الله وائی قاسم رحمه الله دَ سالم رحمه الله نه دَ زيات علم والاوو. (۱)ايوب رحمه الله وائی چه يحيىٰ دَ قاسم رحمه الله نه څه تپوس کولوسره واوريدو په جواب کښې به قاسم رحمه الله کله **لاأدري** اوکله **لاأعلم** فرمائيل. يحيىٰ چه کله نور تپوسونه کول شروع کړه نووئې فرمائيل په الله قسم، ته چه څه زمونږ نه پوښتنه کوې مونږ په هغې کښې دَ هرې خبرې علم نه لرو.(۲)

حماد بن زيد دَ عبيدالله نه نقل کړی دی چه حضرت قاسم بن محمد رحمه الله به دَ قرآن پاك تفسير نه کولو. (يعنی احتياط به ئې کولو).(۳) ابوالزناد رحمه الله وائی چه حضرت قاسم رحمه الله صرف ظاهری څيزونو سره متعلق دَ سوال جواب ورکولو.(۴)

ابن عون رحمه الله وائی حضرت قاسم رحمه الله دَ چا دَ سوال دَ جواب باره کښې څه اووئيل اودَ هغې نه پس ئې اوفرمائيل چه دا زما رائې ده زه دا نه وايم چه هم دغه حق دی.(۵)

**تقدير سره متعلق خبرو اترو کولونه ممانعت او په قدريه باندې لعن کول:** عمران بن عبدالله رحمه الله وائی چه بعض خلقو دَتقدير باره کښې خبرې کولې حضرت قاسم رحمه الله هغوی ته اوفرمائيل چه کوم څيز الله تعالیٰ نه دې بيان کړې تاسو دَهغې باره کښې خبرې اترې مه کوئې.(۶) ابن عمار رحمه الله وائی چه ما قاسم رحمه الله او سالم رحمه الله په قدريه باندې په لعن کولوسره اوريدلی دی.(۷)

**دَ احاديثو په املاء کښې په کثرت سره احتياط:** عبدالله بن العلاء رحمه الله وائی حضرت قاسم رحمه الله ته مې عرض اوکړو چه هغوی دې يوڅو احاديث په املاء کولوسره اوليکی. نوهغوی اووئيل دَ حضرت عمر رضي الله عنه په دورکښې احاديث ډير زيات شوی وو(يعنی خلقو به بغيردَ احتياط نه دَ هرې خبرې نسبت دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته کولو) حضرت عمر رضي الله عنه خلقو ته دَ الله تعالیٰ واسطه ورکړه چه هغوی دې خپل ليکلې شوې احاديث هغوی له راوړی. خلقو چه به کله خپل ليکلی شوی احاديث هغوی له راوړل نوهغوی دَ دې دَ سوزلوحکم ورکړو او وئې فرمائيل چه دا دَ اهل کتابو دَ کوږوالی په شان کوږوالی دې. عبدالله وائی چه قاسم رحمه الله دَ هغې ورځ نه پس زه دَ احاديثو دَ ليکلو نه منع کړم.(۸)

يحيىٰ بن سعيد رحمه الله وائی چه حضرت قاسم رحمه الله اودَ هغوی منکرو به دَ ماسخوتن نه پس يوبل ته احاديث اورول.(۹)عبدالرحمن ابن ابی الموال وائی چه حضرت قاسم بن محمد رحمه الله به سحر دَ کورنه جمات ته تشريف راوړلو او دوه رکعته نفل کولوسره به بيا دَخلقو په مينځ کښې کيناستلو نوخلقو به دَ هغوی نه (علمی) سوالونه کول.(۱۰)

---

(۱) سيرأعلام النبلاء: ۵۶/۵حلية الأولياء: ۱۸٤/۲.

(۲) تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳حلية الأولياء: ۱۸٤/۲.

(۳) الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۷/۵تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳.

(۴) تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳ الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۷/۵.

(۵) الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۷/۵تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳.

(۶) الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۸/۵.

(۷) تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۸/۵.

(۸) سيرأعلام النبلاء: ۵۹/۵تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳.

(۹) الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۸/۵.

(۱۰) الطبقات الكبرىٰ: ۱۸۹/۵تاريخ الإسلام: ۳۲۹/۳.

**وصيت**: افلح بن حميد رحمه الله وائى حضرت قاسم رحمه الله خپل وصيت ليكلووخت كښې اوفرمائيل چه دا دَ قاسم بن محمد وصيت دې چه هغه دَدې خبرې ګواهى وركوى چه دَالله تعالى نه سوا بل څوك معبود نشته دې.[1]

سليمان بن عبدالرحمن وائى قاسم بن محمد رحمه الله (دَمرګ په وخت) اووئيل: "ماله زما په دې كپړو كښې كفن راكړئى په كوموكښې چه مونځ كوم يعنى قميص لنګ او څادر. دَهغوى خوئى اووئيل پلاره ته خو دوه كپړې هم نه خوښوې (يعنې چه نوې كفن واخستې شى)؟ په جواب كښې اوفرمائيل بچې، دَحضرت ابوبكر رضي الله عنه هم دغه شان دَ دريو كپړو كفن وو اودمړى نه زيات ژوندى سړى دَ كپړو زيات محتاج وى".[2] خالد بن ابى بكر رحمه الله فرمائى چه قاسم بن محمد رحمه الله وصيت كړې وو چه دَ هغه په قبردې هيڅ تعمير نه كوى.[3] يزيد وائى چه زه دَ قاسم رحمه الله دَ انتقال په وخت موجود ووم هغه په قُديد كښې وفات شو او په مُشَلّل كښې دفن كړې شو. دَدې دواړو ځايونو په مينځ كښې دَ دريو ميلو برابر فاصله وه. دَهغوى خوئى كټ په خپله اوږه باندې كيخودو او روان شو تردې چه مُشَلّل ته اورسيدو.[4]

**وفات**: دَ قاسم بن محمد رحمه الله دَ وفات په كال كښې اختلاف دې ډير اقوال دى. چنانچه ضمره دَ رجاء بن جميل ايلى نه نقل كړى دى چه دَ عمر بن عبدالعزيز دَ وفات نه پس دَ عبدالملك په دوركښې ۱۰۱هجرى يا ۱۰۲هجرى كښې وفات شوې.[5] دَعبدالله بن عمر عمرى رحمه الله ۱۰۵هجرى نقل دې.[6]

خليفه بن خياط رحمه الله وائى چه ۱۰۶هجرى اواخر يا دَ ۱۰۷هجرى شروع كښې وفات شوې.[7] حافظ ابن حجر رحمه الله تقريب التهذيب كښې ۱۰۶هجرى قول صحيح ګرځولې دې.[8] هيثم بن عدى اويحيىٰ بن بكير نه ۱۰۷هجرى روايت دې.[9] علامه ذهبى رحمه الله الكاشف كښې هم دغه اختياركړې دې.[10]

واقدى، يحيىٰ بن معين، على بن مدينى، ابوعبيد اوفلاس رحمهم الله نه ۱۰۸هجرى قول روايت دې. واقدى وئيلى چه دَ ۷۰يا ۷۲كالو په عمر كښې وفات شوې. دغه وخت دَ قاسم بن محمد رحمه الله دَ ستركو نظر هم تلې وو.[11] عمر الضرير رحمه الله وئيلى چه ۱۰۹هجرى كښې وفات شوې.

---

[1] الطبقات الكبرى:۱۹۳/۵.
[2] سير أعلام النبلاء: ۶۰/۵الطبقات الكبرى:۱۹۳/۵.
[3] تاريخ الإسلام: ۳۳۰/۳سير أعلام النبلاء: ۶۰/۵
[4] الطبقات الكبرى:۱۹٤/۵-۱۹۳.
[5] الثقات لابن حبان: ۳۰۲/۵ التاريخ الكبير: ۱۵۷/۷تهذيب الكمال: ٤۳۵/۲۳-٤۳٤تهذيب التهذيب: ۳۳۵/۸.
[6] التاريخ الكبير: ۱۵۷/۷سير أعلام النبلاء:۵۸/۵تهذيب الكمال: ٤۳۵/۲۳تهذيب التهذيب: ۳۳۵/۸.
[7] تاريخ الإسلام : ۳۳۰/۳سير أعلام النبلاء:۵۸/۵ تهذيب التهذيب: ۳۳۵/۸ تذكرة الحفاظ: ۹۷/۱.
[8] تقريب التهذيب:۲۳/۲.
[9] سير أعلام النبلاء: ۵۸/۵تهذيب الكمال: ٤۳۵/۲۳تاريخ الإسلام: ۳۳۰/۳.
[10] الكاشف: ۱۳۰/۲.
[11] تهذيب الكمال:٤۳۵/۲۳سير أعلام النبلاء: ۵۸/۵تاريخ الإسلام: ۳۳۰/۳الطبقات لابن سعد: ۱۹٤/۵.

ابن سعد رحمه الله ۱۱۲ هجری نقل کړي دي. (۲) ابوالحسن ابن البراء دَ ابن مدینی نه يو قول دَ ۱۱۲ هجری هم نقل کړي دي. (۳) ليکن علامه ذهبي رحمه الله دَ ابن سعد قول شاذ ګرځولي دي. (۴) دَ نوح بن حبيب نه ۱۱۷ هجری قول مروی دي. (۵) دَدې هم په شاذ کيدو کښې هيڅ تامل نشته.

**دَ قاسم بن محمد رحمه الله يوڅو قيمتي اقوال:** حضرت قاسم بن محمد رحمه الله فرمائي: ① دَ الله تعالی دَحق پيژندلو نه پس جاهل جوړيدو سره ژوند تيرول ډير بهتردی دَهغه سړی نه چه داسې خبره اوکړی دَ کومې چه هغه ته علم نه وی. (۶)

② دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف دَ امت دَپاره رحمت دې. (۷)

③ دَ سړي خپل عزت کول دادی چه هغه دې دَ خپل علم دَاحاطه نه بهر څه خبره نه کوی. (۸)

④ بچي دَ هغه څيزونو باره کښې په قسم سره خبره مه کوه دَ کوم چه تاته علم نه وی. (۹)

⑤ دَ نوی کپړو دَ مړی نه زيات ژوندی سړی محتاج وی. (۱۰)

**عائشة رضي الله عنها:** دادَ حضورپاك دَ ټولو نه زياته ګرانه بی بی ام المؤمنين طيبه طاهره اوصديقه کائنات حضرت عائشه صديقه بنت ابوبکر صديق رضي الله عنهما ده. دَدوی مختصر حالات دَ ژوند بدء الوحي دَ دويم حديث لاندې تير شوی دی. (۱۱)

**شرح حديث: کان اذا اغتسل من الجنابة:** يعنی کله چه به حضورپاك دَ غسل جنابت اراده کوله اغتسل نه دَ غسل کولو اراده مراد ده. (۱۲) لکه دَ امام اسماعيلي رحمه الله په روايت «إذا أراد أن يغتسل» نه صراحت سره معلومه شوې ده. (۱۳)

**دعا بشيء نحو الحلاب:** يعنی حضورپاك به دَ حلاب په شان يو څيز (لوښي) راغوښتلو. **دعا** په معنی دَ **طلب** دي. **نحو الحلاب** يعنی دَ حلاب په شان به ئی يو لوښي راغوښتلو. (۱۴)

---

(۱) تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۵.

(۲) تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۵ سير أعلام ا لنبلاء: ۵/۵۸تهذيب التهذيب: ۸/۳۳۵.

(۳) تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۵ سير أعلام النبلاء ۵/۵۸.

(۴) سير أعلام النبلاء: ۵/۵۸تاريخ الإسلام: ۳/۳۳۰.

(۵) تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۵.

(۶) الطبقات لابن سعد:۵/۱۸۸تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۳ تاريخ الإسلام:۳/۳۲۹ سير أعلام النبلاء: ۵/۵۷

(۷) الطبقات:۵/۱۸۹تهذيب الكمال:۲۳/۴۳۳ تاريخ الإسلام:۳/۳۲۹ سير أعلام النبلاء: ۵/۶۰

(۸) تهذيب الكمال: ۲۳/۴۳۴سير أعلام النبلاء:۵/۵۷

(۹) الطبقات لابن سعد:۵/۱۸۹.

(۱۰) تاريخ الإسلام: ۳/۳۳۰الطبقات: ۵/۱۹۳.

(۱۱) کشف الباري: ۱/۲۹۵-۲۹۱.

(۱۲) فتح الباري: ۲/۴۸۹عمدة القاري: ۳/۳۰۴إرشادالساري: ۱/۴۹۶.

(۱۳) فتح الباري: ۲/۴۸۹عمدة القاري: ۳/۳۰۴ الكنزالمتواري: ۳/۱۹۷.

(۱۴) عمدة القاري:۳/۳۰۴التوشيح: ۱/۲۴۶ إرشادالساري: ۱/۴۹۶.

**دَعلامه كشميرى رحمه الله تحقيق:** نحوالحلاب باندې علامه كشميرى رحمه الله ليكلى دى چه دَ دويم طرق دَ روايت نه معلومه شوه چه حضورپاك بعينه په حلاب نومې لوښې كښې (هم) غسل اوكړو.[1]

**په نورو طرق كښې دَ حلاب ذكر:** ابوعوانه رحمه الله په خپل مسند كښې دَ ابوعاصم رحمه الله نه دَ يزيدبن سنان رحمه الله په واسطه نقل كړى دى: ((كان يغتسل من حلاب))[2] ابن خزيمه رحمه الله په خپل صحيح كښې هم دغه الفاظ نقل كړى دى.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله دَ كلام نه معلوميږى چه نحوالحلاب نه بلحاظ مقدار حلاب لكه چه لوښې مراد دې ځكه چه ابوعوانه رحمه الله دَ ابوعاصم رحمه الله نه نقل كړى دى: ((**ووصفه أبوعاصم بأنه أقل من شبر في شبر**)) يعنى ابوعاصم رحمه الله دَ دې مقدار دَيو لويشت اوږدوالى اوپلنوالى نه كم ګرځولې دې.[4]

دَ ابن حبان رحمه الله په روايت كښې دى: ((**أشار أبوعاصم بكفيه، حكاية حلق شبريه، يصف به دورة الأعلى**)) يعنى ابوعاصم رحمه الله په دواړو ورغوو (تلو) سره اشاره اوكړه لكه دَ دواړو لاسونودَ ليشتونه ئى حلقه جوړه كړه دَ پورتنئى دائرې دور اوحلقه كيفيت ئى اوخودلو يعنى حلاب يا دَدې په شان لوښې به داسې وو.[5]

امام بيهقى رحمه الله سنن كبرىٰ كښې دَ حلاب دَ مقدار باره كښې نقل كړى دى: ((**فإذا هو كقدر كوز، يسع ثمانية أرطال**))[6] يعنى هغه لوښې (حلاب) په مثال دَ اندازې دَ كوزې وو په كوم كښې چه دَ اته رطل اوبو راتلو ګنجائش وو. دَ بيهقى رحمه الله دَ روايت نه معلومه شوه چه دَ حضوراكرم دَغسل په سلسله كښې نقل صاع مقدار هم دَ اتو رطل برابر وو، هم دغه دَ احنافو مذهب دې لكه چه دَ علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله په حواله سره ماقبل كښې تيرشوى دى.[7]

**دَ غسل دَ اوبو دَ مقدار بيان:** علامه عينى رحمه الله او ابن رجب حنبلى رحمه الله ليكلى دى چه دَ حديث باب په بعض طرق كښې راغلى دى: ((**إنه سئل كم يكفي من غسل الجنابة؟ فحدث بهذا الحديث**)) يعنى دَ حضرت قاسم رحمه الله نه تپوس اوكړې شو چه دَ جنابت دَ غسل دَپاره څومره اوبه كافى كيږى؟ هغوى په جواب كښې حديث باب بيان كړو لكه چه ابن رجب حنبلى رحمه الله فتح البارى كښې ليكلى دى اود علامه عينى رحمه الله په قول ((**فأشار إلى القدح والحلاب**)) يعنى هغوى دَ قدح او حلاب طرف ته اشاره اوكړه. بيا دې دواړو

---

[1] فيض البارى: ۱/۴۵۶.
[2] كتاب الطهارة باب صفة الأوانى التى كان يغتسل منها رسول الله صلى الله عليه وسلم من الجنابة: ۱/۲۴۸ رقم: ۸۵۳
[3] كتاب الوضوء باب استحباب بدء المغتسل بإفاضة الماء على الميا من قبل المياسر: ۱/۱۲۲رقم: ۲۴۵.
[4] مسندأبى عوانة،كتاب الطهارة باب صفة الأوانى التى كان يغتسل منها رسول الله صلى الله عليه وسلم من الجنابة: ۱/۲۴۸ رقم: ۸۵۳
[5] رقم الحديث: ۱۱۹۷.
[6] كتاب الطهارة باب استحباب البداية فيه بالشق الأيمن: ۱/۲۸۴رقم: ۸۷۲
[7] فتح الملهم: ۳/۷۶.

حضراتو اوفرمائیل چه دَدې نه معلومه شوه چه دلته دَ غسل دَ اوبو دَمقدار بیان دې نه چه دَ خوشبو.(۱)

**دَعلامه عینی رحمه الله تحقیق:** علامه عینی رحمه الله نور فرمائی چه دَمعانی ذوق لرونکی حضرات پوهیږی چه دَ حلاب نه دلته امام بخاری رحمه الله صرف لوښې مراد اخستې دی نه چه څه بل څیز. شراح بغیرد څه فائدې په دې باندې په کثرت سره کلام کړې دې حالانکه دَحدیث الفاظ زمونږ دَخبرې دلیل دی. ځکه چه په حدیث کښې نحوالحلاب الفاظ راغلی دی او نحو دلته دَ مثل په معنی کښې دې اومثل شئ دَهغې غیر وی. که چرې دلته بعینه دَ حلاب طلب کول وې نو بیا کیدې شی چه خبره دَ اشکال قابل وه. خو بعض الفاظ دعابانامثل الحلاب هم دی.(۲)

**په نحوالحلاب کښې تشبیه په کوم لحاظ سره ده؟:** بعض حضراتو لیکلی دی چه نحوالحلاب کښې تشبیه په لحاظ دکیفیت مافی الاناء هم کیدې شی چه څنګه دَ حلاب پیتو لشلو لوښې سره دَ حضورپاك غسل کول ثابت دی چه په هغ کښې اوبه اچول او غسل کول باوجود دَ پیتو دَ اثراتو ښکاره کیدو صحیح دې. دغه شان دَاورو اغږلو هغه لګن (لوښې) سره هم دَحضورپاك غسل کول ثابت دی په کوم کښې چه دَاورو اثرات موجود وو. چنانچه مسند احمد کښې ((باب فی حکم الماء متغیر بطاهر أجنبی عنه)) لاندې دَدې په ثبوت کښې دوه احادیث ذکر کړې شوی دې په کوم اندې چه په حاشیه کښې دَ الاحکام لاندې اولیکلی شو چه احادیث الباب نه جواز دَ طهارت دَ حکم دَداسې اوبو نه معلوم شو په کوم کښې چه یواجنبی پاك څیز ملاؤ شوې وی او په دې سره په اوبوکښې تغیر هم راغلې وی په دې شرط چه دغه بدلون معمولی وی او په دې سره اوبه دَ خپل حدود او وصف نه خارج نه شی اوهم دغه دَ مالکیه نه بغیر دَ باقی ائمه مجتهدین مذهب دې صرف مالکیه دَدې قائل نه دی چه داسې اوبه پخپله خو پاکې دی مګر مطهر (پاکونکې) نه دی.(۳) په دې توجیه سره دعا بحلاب او دعا بنحو حلاب دَدوارو غرض یوکیږی.(۴)

**دَ الحلاب وغیره لغوی تحقیق:** دَ الحلاب لغت کښې حلب یحلب (باب نصر) نه مصدردې جمع حُلُبٌ راځی. دَ پیتو او پیتولشلو لوښی ته وائی (۵)مراد ترې نه هم لوښې دې.

علامه کرمانی رحمه الله دَ علامه جوهری رحمه الله په حواله سره لیکلی دی چه المَحْلَبُ دَ میم او لام فتحه سره یو بوټې او دوائی ده دَ کوم نه چه خوشبوئی تیاریږی او اَلْحَلَبَةُ دَ حاء په ضمه سره معروف دانه ده یعنی میتهی چه دَ ترکارئی په توګه هم پخولې شی او دَ دوائی په توګه هم استعمالولې شی. (دَدې جمع حُلَب راځی)(۶)

---

(۱) عمدة القاری:۳/۳۰۵-۳۰۴ فتح الباری: ۱/۱۵٤.

(۲) عمدة القاری: ۳/۳۰۵.

(۳) الفتح الربانی مع بلوغ الأمانی: ۱/۲۱٤-۲۱۳.

(٤) أنوار الباری: ۹/۱۹۹-۱۸۹.

(۵) لسان العرب: ۳/۲۷۸،۲۷۵القاموسالوحید کامل ص: ۳۶۶.

(۶) لسان العرب: ۳/۲۸۰لغات کشوری ص: ۱۵۷فیروزاللغات ص: ۲۷٤.

**اَلْحُلّب** دَ حاء په ضمه اوتشدید لام سره یوقسم بوټي دې کوم چه طبیبان عمومًا په دوائی کښې استعمالوی. ابوزید اصمعي اوونیل چه حَلَب په زمکه باندې کوي اوږ خوړ شوې یو ځیلنی ته وائي کوم چه مات کړې شی نودَهغې نه دَ پیښو په شان څه څیز راوځی. سقّاءُ حُلَبِيّ دَدې نه دې یعنی حُلَبِي مشکیزه کومه چه په دې بوټی باندې رنګ کړې شوی وی.[1] ابن منظور افریقی دَ امام ابوحنیفه رحمه الله او ابوزیاد نه هم دَ حُلَب وضاحت نقل کړې دې.[2]

**حَبُّ الْمَحْلَب** فارسی کښې پیو مریم او هندی کښې گمیونی، کبیلا، کیلی، دانه په شان سرکابلی، دیر خوشبودار (تخم ته وائی) دا تخم اکثر په خوشبیاتو کښې ملاووهی اودَدې نه تیل هم جوړوی.[3] هم دَدې نه جوړې شوې خوشبوئی ته عربی کښې دې طرف ته منسوب کولوسره اَلْمَحْلِبِيَّةُ وئیلی شی.[4]

**قوله: :فأخذ بکفیه فبدأ بشق رأسه الأیمن ثم الأیسر:** بیابه حضورپاك خپل لاس (دواړه لاسونه) سره لپې دَ کول اودَ سر په ښی طرف نه به ئې شروع کوله بیابه ئې په ګسه حصه باندې اچولې. بکفه په عام نسخوکښې مفرد مروی دې خو دَ کشمیهنی په روایت کښې بکفیه تثنیه سره نقل شوې دې.[5] امام مسلم رحمه الله او ابوداؤد رحمه الله هم دَ حلاب والاروایت کښې کفیه هم تثنیه نقل کړې ده.[6] فقال بهما کښې تثنیه ضمیر هم دَ کفیه تثنیه کیدو په صحت باندې دلالت کوی.[7]

**دَ روایاتو نه دَ دریمه لپه اخستلو ثبوت:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی چه امام مسلم رحمه الله په حدیث حلاب کښې لفظ الأیسر نه پس ثم أخذ بکفیه الفاظ زیاتی نقل کړی دی دَ کوم نه چه دَحضورپاك دَ دریمې لپې اخستلو طرف ته اشاره کیږی لکه چه دَابوعوانه دَ روایت نه دَدې ضراحت کیږی.[8]

**قوله: :فقال بهما علی رأسه:** یعنی حضورپاك په خپلو دواړو لاسونو سره په خپل سر مبارك باندې اوبه واچولې. دَ فقال بهما مطلب دلته دادې چه حضورپاك دَ خپلو دواړو لاسونو اوبه په خپل سرباندې راواړولې یعنی وئې بهیولې. دلته دَ قول په فعل باندې اطلاق کړې شوې دې یعنی قال (قول) وئیلو سره بهیول (فعل) مراد اخستې شوې دې.[9]

---

[1] شرح الکرمانی:۱۲۱/۳الصحاح ص: ۲۵٤.

[2] لسان العرب:۲۸۰/۳.

[3] خزائن الأدویة: ۱۵/٤بحواله انوارالباری:۲۰٤/۹.

[4] لسان العرب: ۲۸۰/۳.

[5] فتح الباری:٤۸۹/۲عمدة القاری:۳۰۵/۳إرشادالساری: ٤۹٦/۱.

[6] صحیح مسلم کتاب الحیض باب صفة غسل الجنابة رقم الحدیث: ۷۲۵سنن أبی داؤد کتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة رقم الحدیث: ۲٤۰.

[7] عمدة القاری:۳۰۵/۳إرشادالساری:٤۹٦/۱.

[8] فتح الباری:٤۸۹/۲.

[9] عمدة القاری:۳۰۵/۳تحفة الباری:۲۲۳/۱.

**په غیرکلام باندې دَ قول اطلاق**: علامه ابن الاثیر رحمه الله لیکلی دی چه ابن منظور افریقی رحمه الله او علامه عینی رحمه الله هم نقل کړی دی چه په عربوکښې ډیره توسع ده چه هغوی دَ قول په ذریعه دَ ټولو افعالو تعبیرکوی او په غیرکلام باندې هم دَدې اطلاق کوی. چنانچه دَ لاس نه دَ نیولو دَپاره **قال بیده** وائی اوپه خپو تګ ته **قال برجله** وائی او په سترګوسره دَ اشاره کولو دَپاره **قالت له العینان** وائی لکه چه شاعر وائی: **قالت له العینان سمعاًوطاعة**

یعنی سترګو هغه ته اشاره اوکړه او لسان حال ته ئی اووئیل چه ستا هره خبره به اورو او اطاعت به کوو.

په لاسونوسره اوبه بهیول او لامبلو دَپاره به وائی **قال بالماء علی یده** اودَ کپړې اوچتولودَپاره به **قال بثوبه** وائی **قال** دَهغوی په ټولو معانو باندې اطلاق په توګه دَ مجاز او توسع کیږی. (۱)

**دَقال په معانی کثیره کښې استعمال**: غرض **قال** معانی کثیره دَپاره راځی مثلاً **قال** په معنی **أقبل، مال، استراح، ذهب، غلب، أحبّ، حکم** وغیره. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ما په خاص توګه اهل مصر اولیدل چه هغوی **قال** په خپلو ډیرو محاوراتوکښې استعمالوی. چنانچه په همسا سره دَ وهلودَپاره وائی **أخذ العصاوقال به** او دَ لباس اغوستلو دَپاره وائی **أخذ ثوبه وقال به علیه**. کلام عرب تتبع کونکې **قال** دَهغوی په مختلفو معانوکښې دَ استعمال نه به واقف وی. (۲)

**دَ قال په نورو معانو کښې دَ استعمال ثبوت دَ الفاظ حدیث نه**: حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله دَ قال نورو معانو کښې استعمال دَ احادیثونه هم ثابت کړې دې. چنانچه علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په یوحدیث کښې رفع ثوب دَپاره **"قال بثوبه"** الفاظ راغلی دی. (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله بخاری شریف کښې ائینده راتلونکې **باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة** کښې دَ حضرت میمونه رضی الله عنها دَ روایت الفاظ **((قال بیده الأرض))** لاندې لیکلی دی چه دا **((من قبیل إطلاق القول علی الفعل))** دې ځکه چه هم دَدې **کتاب الغسل** ا تلسم نمبر باب : **نفض الیدین من الغسل عن الجنابة** کښې هم دَ حضرت میمونه رضی الله عنها په روایت کښې **((فقال بیده الأرض))** په ځائې **((فضرب بیده الأرض))** الفاظ مروی دی. دَ کومې نه چه معلومیږی چه دَدې قال نه ضرب فعل مراددې. (۴) دَغه شان حدیث **لاحسد إلا فی اثنتین** کښې دَ قرآن کریم تلاوت کونکی باره کښې فرمائی **(( لو أوتیت مثل ما أوتی هذا لفعلت مثل ما یفعل))** یعنی **((لتلوت مثل ما یتلو))** هم دَ دې قبیل نه دې. (۵)

---

(۱) النهایة: ۵۰۲/۲ لسان العرب: ۳۵۴/۱۱ عمدة القاری: ۳۰۵/۳.

(۲) عمدة القاری: ۳۰۵/۳ النهایة: ۵۰۲/۲.

(۳) الحدیث أخرجه أحمد فی مسنده، مسند أبی هریرة رضی الله عنه: ۲۱۶/۱۵ رقم: ۹۳۶۶ وأخرج ابن ابی شیبة فی مصنفه فیما نحن بصدده عن ابن سیرین فی کتاب الصلاة [باب] أن یمسح حبهته رقم: ۴۷۵۶. عمدة القاری: ۳۰۵/۳.

(۴) رقم الروایتین: ۲۵۹، ۲۷۶.

(۵) والحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه إلا أنه قال: "لیتنی" مکان "لو" و "عملت" مکان "فعلت" والمعنی واحد کتاب فضائل القرآن باب اغتباط صاحب القرآن رقم: ۵۰۲۶ ویتکرر أیضاً برقم: ۷۲۳۲، ۷۵۲۸. فتح الباری: ۴۹۰/۲.

**قوله: :علی رأسه**: دَ بعض حضراتو په روایت کښې لفظ وسط اضافه ده. چنانچه ابوذر، ابوالوقت، اصیلي او ابن عساکر روایت کښې «علی وسط رأسه» الفاظ دی.[1]

**دَ لفظ وسط تحقیق**: په حاشیه بخاری شریف کښې دَ حل اللغات لاندې لیکلې شوی دی چه وَسَط (په فتح دَ سین) هغه ځیزته وائی کوم چه په مینځ کښې وی او وَسْط (په سکون دَ سین) پخپله مینځ ته وائی.[2]

علامه جوهری رحمه الله فرمائی: «جلستُ وسْطَ القوم بالتمکین، لأنّه ظرفٌ، وجلستُ فی وسَط الدار بالتحریك، لأنّه إسمٌ، وکل موضع صَلَحَ فیه "بَیْنَ" فهو وسْط، وإن لم یصلح فیه "بَیْنَ" فهو وسَط بالتحریك وربّما سکن ولیس بالوجه».[3] په رومبی مثال کښې وسْط (په سکون دَ سین) ظرف او په دویم مثال کښې وسَط (په فتح دَ سین) اسم دی. اوهرهغه ځائې چرته چه دَ "بین" راتلل صحیح وی نوهغه وسْط (په سکون) سره دی او چرته چه بین راتلل صحیح نه دی نوهغه وسَط (په فتح) دی اوکله دا بغیردَ څه وجې نه هم ساکن استعمالولې شی.

ابن اثیر رحمه الله لیکلی دی «الوسْط بالسکون، یقال فیما کان متفرّق الأجزاء غیرَ متصل، کالنّاس، والدوابّ وغیر ذلك».[4] یعنی هرهغه ځیز چه غیرمتصل او متفرق الاجزا وی نودهغې دَ پاره لفظ وسْط (په سکون) استعمالولې شی لکه الناس الدواب وغیره.

علامه عینی رحمه الله ددې ډېر مثالونه ورکړی دی مثلاً لفظ قلاده (هار) متفرق الاجزا دې نوددې دپاره وئیلی شی «انظر هذه الیاقوتة وسْط القلادة» دغه شان لفظ حلقه اوقوم هم متفرق الاجزا دی نووئیلی شی «لا تقعد وَسْط الحلقة ووَسْط القوم» اوکه چرې هغه ځیز متصل الاجزا او غیر متفرق وی نودهغې دپاره وَسَط (په فتح سره) استعمالولې شی لکه الدار، الرأس وغیره، لهذا دَ رأس یعنی سرپاره کښې وئیلی شی «احتجم وَسَط رأسه» اودَ دار باره کښې وائی «قعد وَسَط الدار».[5]

**وسْط او وَسَط یوشان معنې والا دی**: امام فراء رحمه الله وائی چه ما دَ یونس نه واورېده چه وَسْط او وَسَط دواړه دَ یو شان معنې دی اوبعض کوفیانو هم یوګرځولی دی. نور وائې دا دواړه په توګه دَظرف او اسم هم استعمالولې شی.[6] علامه ابن اثیر رحمه الله نقل کړی دی چه دا دواړه دَ یوبل په ځائې راځی لکه چه هم دغه خبره ډېره مناسب ده.[7]

---

[1] إرشادالساری: ۴۹۶/۱ تحفة الباری: ۲۲۳/۱.

[2] ص: ۴۰ قدیمی کتب خانه کراچی.

[3] النهایة: ۸۴۷/۲

[4] الصحاح للجوهری ص: ۱۱۳۸ فتح الباری: ۴۸۹/۲.

[5] عمدة القاری: ۳۰۵/۳.

[6] عمدة القاری: ۳۰۵/۳.

[7] النهایة: ۸۴۸/۲.

**په حدیث کښې وَسَط په فتح دَسین دې:** اکثر شراح په زیر بحث حدیث کښې لفظ وَسَط مفتوح السین گرځولې دې. [1]ځکه چه رأس غیرمتفرق او متصل الاجزا دې. ابن ملقن رحمه الله داقول دَ ابن التین رحمه الله طرف ته منسوب کړې دې اودَې دَ مفتوح کیدو وجه ئې اسم کیدل گرځولې دی. [2]

**دَحدیث نه مستنبط شوې امور:** دَحدیث باب نه دا امورمستنبط کیږی ① دَغسل کونکې دَپاره مستحب دی چه هغه دې دَ اول نه دَغسل والا دَ اوبو لوښې تیار اوساتې دې دَ پاره چه دې سره غسل اوکړی. [3]

② پاکی حاصلولوکښې دَ ښی طرف نه شروع کول مستحب دی. ابن خزیمه رحمه الله په خپل صحیح کښې «تیامن فی التطهر» په استحباب باندې دې الفاظو سره ئې ترجمه قائم کړې ده. «باب استحباب بدء المغتسل بإفاضة الماء علی المیامن قبل المیاسر» [4] امام بیهقی رحمه الله «باب استحباب البدایة فیه بالشق الأیمن» په الفاظو سره ترجمه قائم کړې ده. [5]

③ دَ سر ښې حصه او بیا گس طرف اوبیا دَ سر په مینځ اوبه بهیول مستحب دی. [6]

④ دَحدیث الفاظ «کان النبی صلی الله علیه وسلم» په دې خبره باندې دلالت کوی چه حضورپاک ﷺ په دې عمل باندې همیشه والې فرمائیلې دې. [7]

⑤ دَدې حدیث نه معلومه شوه چه حضورپاک ﷺ په سرباندې په درې لپې اوبو بهیولو باندې اکتفا اوکړه او هغه کافی کیږی. [8] ابن حبان رحمه الله په دَې مناسبت سره «ذکر وصف الغرفات الثلاث التی وصفناه للمغتسل من الجنابة» ترجمه قائم کړې دې. [9]

⑥ دَغسل په وخت خوشبوئی استعمالول. [10]

## ۷- باب: اَلْمَضْمَضَةِ وَالْاِسْتِنْشَاقِ فِي الْجَنَابَةِ

### په غسل جنابت کښې غرغره کول او پوزه کښې اوبه اچول

**دَ ترجمه مقصد:** په غسل جنابت کښې مضمضه او استنشاق باره کښې اختلاف دې. امام بخاری رحمه الله دا مسئله بیانوی. چنانچه امام ابوحنیفه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی چه مضمضه

---

[1]) فتح الباری: ۴۸۹/۲ عمدة القاری: ۳۰۵/۳ ارشاد الساری: ۴۹۶/۱.
[2]) التوضیح لشرح الجامع الصحیح: ۵۶۷/۴.
[3]) عمدة القاری: ۳۰۵/۳.
[4]) صحیح ابن خزیمه: ۱۲۲/۱.
[5]) السنن الکبری: ۱۸۴/۱.
[6]) عمدة القاری: ۳۰۵/۳.
[7]) عمدة القاری: ۳۰۵/۳.
[8]) فتح الباری: ۴۸۹/۲.
[9]) صحیح ابن حبان بترتیب ابن بلبان: ۵۶۹/۳.
[10]) شرح ابن بطال: ۳۸۶/۱ الشرح المیسر للصابونی: ۳۲۹/۱.

اواستنشاق په غسل جنابت كښې واجب دى خوددَ امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله په نيز سنت دى.(١)

دَ مذاهب نور تفصيل به دَ حديث لاندې راځى. (إن شاء الله تعالى).

**دَ علامه ابن بطال رحمه الله رائې:** علامه ابن بطال ليكلى دى چه مضمضه او استنشاق په غسل جنابت كښې سنت دى ځكه چه دا دواړه دَ اودس اجزا دى اودَ علماؤ په دې خبره باندې اجماع ده چه دَ غسل جنابت نه وړاندې اودس كول واجب نه دې اوكله چه اودس كول واجب نه دى نودَدې اجزاء او توابع يعنى مضمضه اواستنشاق به هم واجب نه وى او په حديث باب كښې حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ حضورپاك په غسل كښې چه دَ كومې مضمضه او استنشاق نقل كړې دې هغه سنت دې. ځكه چه حضورپاك به تولو عباداتو كښې كمال او افضل باندې عمل لازمى ګرځولو.(٢) علامه كرمانى رحمه الله هم دَ ابن ملقن رحمه الله اوعلامه ابن بطال رحمه الله رائې نقل كړې ده.(٣)

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه علامه ابن بطال رحمه الله وغيره دَ حديث باب نه په غسل جنابت كښې دَعدم وجوب مضمضه اواستنشاق استنباط كړې دې. ځكه چه دَدې نه پس راتلونكې ((باب: مسح اليد بالتراب لتكون أنقى)) كښې دَحضرت ميمونه رضي الله عنها روايت كښې دى چه حضورپاك دَ مونځ والااودس اوفرمائيلو. دې نه معلومه شوه چه په حديث باب كښې هم مضمضه او استنشاق هم دَاودس والا وو او په دې خبره باندې اجماع شوې ده چه په غسل جنابت كښې اودس واجب نه دې او مضمضه اواستنشاق توابع دَ اودس نه دى. كله چه اودس په غسل كښې ساقط شو نودَدې توابع هم ساقط شو او په حديث باب كښې دَ حضورپاك مضمضه اواستنشاق په فضل اوكمال باندې محمول دې.(٤)

**دشاه ولى الله رحمه الله اوګنګوهى رحمه الله توجيه:** شاه ولى الله رحمه الله فرمائى((يعنى إنهما مطلوبان فى الشرع، إمّا على سبيل الوجوب وإمّا على وجه السنة))(٥) امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى چه مضمضه او استنشاق په شريعت كښې مطلوب دى يا خوعلى سبيل الوجوب او يا على سبيل السنة. ګنګوهى رحمه الله فرمائى: ((إنهما ثابتان بالسنة، فمن أخذ بوجوبهما ومن ذاهب إلى سنيتهما))(٦) دَامام بخارى رحمه الله مقصد داخودل دى چه دا دواړه دَ سنت نه ثابت دى بعض ورته واجب وائى او بعض دَ سنتو قائل دى.

**دَعلامه عينى رحمه الله وغيره توجيه:** علامه عينى رحمه الله اوعلامه قسطلانى رحمه الله وغيره ليكلى دى چه، دَامام بخارى رحمه الله مقصد دَدې باب نه په غسل جنابت كښې دَ مضمضه او استنشاق دَ حكم بيان كول

---

(١) أوجز المسالك:١/٥٠٣، مختصر اختلاف العلماء: ١/١٣٥.
(٢) شرح ابن بطال: ١/٣٨٦.
(٣) شرح الكرمانى:٣/١٢٣-١٢٢ التوضيح: ٤/٥٦٨.
(٤) فتح البارى: ٢/٤٩٠.
(٥) شرح تراجم أبواب البخارى ص:١٨.
(٦) لامع الدرارى مع الكنز المتوارى: ٣/٢٠١، الأبواب والتراجم ص: ٦٠.

دى چه آيا دا واجب دى که سنت؟ [1] دَشيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله رائې هم دغه ده چه دا يومختلف فيها مسئله ده په دې وجه ئې مستقل باب قائم کړې دې. [2]

**دَعلامه عينى رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره باندې رد:** علامه عينى رحمه الله وغيره فرمائى دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن بطال وغيره دَ قول نه استدلال صحيح نه دې ځکه چه حديث باب مستقل حديث دې. په دې کښې دَ مضمضه او استنشاق صراحت دې. دَ راتلونکى باب حديث سره دَدې هيڅ تعلق نشته دې.

بيا حضورپاك کله هم دا دواړه نه دى ترك کړى کوم چه دَ مواظبت دليل دې او په مواظبت سره وجوب ثابتيږى اودَ مواظبت دليل دَحضورپاك ﷺ نه دَدې ترك نه نقل کيدل دى. باقى پاتې شوه خبره دَ اودس دَ سقوط نودَ اودس قصدى سقوط دَ اودس ضمنى سقوط ته مستلزم نه دې. بهرحال يوخودَدې ترك نقل نه دې.

اودويم نص يعنى ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ هم دَدې په وجوب باندې دلالت کوى. [3]

**دَ ابن بطال دَ اجماع دَدعوىٰ حيثيت:** حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله وغيره ليکلى دى چه ابن بطال رحمه الله کومه دَ اجماع دعوىٰ کړې ده او حافظ ابن حجر رحمه الله دا بغيردَ څه نقد نقل کولو نه سکوت اختيارکړې دې هغه محل نظر دې ځکه چه دَ ابوثور او داؤد ظاهرى په دې باره کښې اختلاف دې چه هغوى په غسل کښې اودس واجب گرځولې دې. بعض حضرات وائى که چرې هغه عمل موجب دَ جنابت کيدو سره موجب حدث هم وى نو بيا په غسل کښې اودس کول واجب دى. [4]

دَامام احمد رحمه الله په يوروايت کښې دى چه په غسل کښې ضمنًا دَ اودس نيت به کافى نه وى بلکه دَ غسل نه وړاندې يا روستو په مستقل توګه اودس کول ضرورى دى اودَ امام شافعى رحمه الله دَ دوو اقوالونه هم يوهم دغه شان دې. [5] دَ داؤد ظاهرى ابوثور امام احمد او امام شافعى رحمهم الله په يو روايت کښې دَ ابن بطال رحمه الله دَ نقل کړې شوې اجماع خلاف دې. په دې وجه دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دا دَ استدلال په توګه باندې پيش کول صحيح نه دى. حالانکه حافظ صاحب رحمه الله «باب الوضوء قبل الغسل» لاندې پخپله دَ داؤد ظاهرى او ابوثور دَ اختلاف دَ وجې نه دَ ابن بطال دعوىٰ دَ اجماع مردود ګرځولې ده. [6]

**دَ امام بخارى رحمه الله رجحان:** مضمضه او استنشاق فى الغسل دَ امام بخارى رحمه الله په نيز څه حيثيت دې؟ آيا هغه دې ته سنت وائى که واجب؟ دَ دې وضاحت کولوسره شيخ الاسلام علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى:

---

[1] عمدة القارى: ۳/۲۰۵ارشادالسارى: ۱/۴۹۶.
[2] تقريربخارى: ۲/۸۳سراج القارى: ۲/۱۹۷.
[3] عمدة القارى: ۳/۲۰۶حاشية السندى على الصحيح: ۱/۵۷.
[4] الكنزالمتوارى: ۳/۲۰۲حاشية التوضيح: ۴/۵۶۸.
[5] المغنى لابن قدامة: ۱/۱۳۹الكنزالمتوارى:۳/۲۰۲.
[6] فتح البارى: ۲/۴۷۶.

"دَ امام بخاري رحمه الله صرف مضمضه او استنشاق دَپاره دا ترجمه قائم كول دَهغوى په دې رحجان باندې دلالت كوى چه په غسل جنابت كښې دَ مضمضه او استنشاق كوم حيثيت دې هغه په اودس كښې نه دې. دَ امام بخاري رحمه الله دَدې رحجان ثبوت دَهغه دَ قائم كړې شوې تراجم نه ملاويږي. كتاب الغسل كښې دَ ټولو نه اول ئې دا ترجمه قائم كړه چه دَ غسل شروع دَ اودس نه كول پكاردى.

په دې ترجمه كښې حرم رسول صلى الله عليه وسلم حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها روايت بيان كړو چه كله به حضورپاك دَ جنابت غسل فرمائيلو نو په شروع كښې به ئې خپل دواړه لاسونه وينځل «ثم يتوضأ كما يتوضأ للصلاة» بيابه ئې اودس كولو لكه څنګه چه به ئې دَ مانځه دَ پاره اودس كولو او په اودس كښې مضمضه او استنشاق شامل كيدل ښكاره دى. اوس امام بخاري رحمه الله دَدې نه پس «باب المضمضة والاستنشاق في الجنابة» ځان له قائم كړو. كه چرې په غسل جنابت كښې هم دَ مضمضه اواستنشاق حيثيت دَهغوى په نيز هم هغه دې كوم چه په اودس كښې دې نودَ جدا ترجمه قائم كول ضروري نه وو. په اودس كښې دَدې حيثيت دَ سنت او غسل كښې دا دواړه څيزونه واجب اومستقلاً مطلوب دى". (١)

## الحديث الأول

٢٥٩ - حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَالِمٌ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنَا مَيْمُونَةُ قَالَتْ: «صَبَبْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا، فَأَفْرَغَ بِيَمِينِهِ عَلَى يَسَارِهِ فَغَسَلَهُمَا، ثُمَّ غَسَلَ فَرْجَهُ، ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ الأَرْضَ فَمَسَحَهَا بِالتُّرَابِ، ثُمَّ غَسَلَهَا، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ، وَأَفَاضَ عَلَى رَأْسِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى، فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ، ثُمَّ أُتِيَ بِمِنْدِيلٍ فَلَمْ يَنْفُضْ بِهَا» [حديث باب ر: ٢٤٦] (٢)

---

(١) فضل الباري: ٢/٤٣٤-٤٣٣.

(٢) الحديث أخرجه البخاري أيضاً في نفس الكتاب باب الوضوء قبل الغسل رقم الحديث: ٢٤٩ وفي باب الغسل مرة رقم الحديث: ٢٥٧ وفي باب الغسل بالصاع ونحوه رقم الحديث: ٢٥٣ وفي باب مسح اليد بالتراب لتكون أنقى رقم الحديث: ٢٦٠ وفي باب تفريق الوضوء والغسل بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٢٦٥ وفي باب من توضأ في الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد مواضع الوضوء منه مرة أخرى رقم الحديث ٢٧٤ وفي باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة رقم الحديث: ٢٧٦ وفي باب التستر في الغسل عندالناس بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٢٨١ وأخرجه مسلم في صحيحه في كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة رقم الحديث: ٧٢٢ وأبوداؤد في سننه في كتاب الطهارة باب في الغسل من الجنابة رقم الحديث: ٢٤٥ والترمذي في سننه في كتاب الطهارة باب ماجاء في الغسل من الجنابة بنحوه مختصراً وقال: هذا حديث حسن صحيح، رقم الحديث: ١٠٣ والنسائي في سننه في كتاب الطهارة باب غسل الرجلين في غير المكان الذي يغتسل فيه رقم الحديث: ٢٥٢ وأيضاً في كتاب الغسل والتيمم باب إزالة الجنب الأذى عنه قبل إفاضة الماء عليه بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٤١٨ وأيضاً في باب مسح اليد بالأرض بعد غسل الفرج رقم الحديث: ٤١٩ وأيضاً في باب الاستتار عند الغسل رقم الحديث: ٤٠٨ وأخرجه ابن ماجه في سننه في كتاب الطهارة باب المنديل بعد الوضوء رقم الحديث: ٤٦٧ راجع جامع الأصول رقم: ٥٣٢١ وتحفة الأشراف: رقم: ١٨٠٦٤.

**ترجمه**: مونږ ته عمر بن حفص بن غياث بيان اوکړو، اوونيل مونږ ته زما پلار، مونږ ته اعمش ونيل ماته سالم بن ابی الجعد، هغه د کريب نه هغه د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړی هغه اوونيل چه مونږ ته حضرت ميمونه رضي الله عنها بيان کړو چه ما د حضور اکرم ﷺ دپاره دغسل اوبه (په يولوښی) کښې واچولې نو حضورپاک په خپل ښی لاس سره په ګس لاس باندې اوبه واچولې او دواړه لاسونه نی اووينځل. بيا حضورپاک خپل شرمګاه اووينځل بياخپل لاس په زمکه باندې اووهلو او دائی په خاوره باندې اوموږلو بيانی (اوبوسره) اووينځلو بيانی غرغره اوکړه بيانی پوزه کښې اوبه واچولې بيانی خپل مخ مبارک اووينځلو او په سرباندې اوبه اوبهيولې. بيا حضورپاک دهغه ځائی نه اخوا شو اوخپلې دواړه خپې نی اووينځلې. بيا دحضورپاک په خدمت کښې رومال راوړلې شو نوحضورپاک (په دې رومال سره د خپل اودس اندامونه) اوچ نه کړل.

## تراجم رجال

**عمر بن حفص بن غياث:**

**نوم او د نسب سلسله**: داعمر بن حفص بن غياث (د غين کسره سره) بن طلق ابن معاويه نخعی کوفی دی. ابوحفص د دوی کنيت دی.[1]

**اساتذه حديث**: هغوی دحديث روايت دخپل پلار حفص بن غياث، سُکَين بن مکبر عجلی، عبدالله بن ادريس، عبدالله بن خراش حوشبی، عثّام بن علی عامری او ابوبکر بن عياش رحمهم الله نه کوی.[2] عمر بن حفص په عام توګه د خپل پلار حفص بن غياث نه روايت نقل کوی. ائمه حديث هم د ده نه هم د ده د پلار په واسطه روايات نقل کړی دی.[3]

**تلامذه**: امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله خوبغيرد څه واسطه د هغوی نه روايت نقل کوی. خوامام ابوداؤد رحمه الله امام ترمذی رحمه الله اوامام نسائی رحمه الله په واسطه د محمدبن ابی الحسين سمنانی د عمر بن حفص نه روايت کوی.[4]

ددې نه علاوه د عمر بن حفص رحمه الله د حديث روايت نقل کونکوکښې ابوشيبه ابراهيم بن ابی بکر ابن ابی شيبه، ابراهيم بن يعقوب جوزجانی، احمد بن ابراهيم دورقی، احمدبن يوسف سلمی، اسماعيل بن عبدالله اصبهانی، سليمان بن عبدالجبار بغدادی، عباس بن ابی طالب، ابواسامه عبدالله بن اسامه کلبی، عبدالله بن عبدالرحمن دارمی، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالکريم رازی، ابوحاتم محمدبن ادريس رازی، محمدبن حسين متينی، محمد بن ابی الحسين سمنانی، محمد بن عثمان بن کرامه، محمدبن علی بن ميمون رقی، محمدبن ابی غالب قُميسی، محمدبن يحيی بن فارس

---

[1] الطبقات الکبری: ۴۱۳/۶التاريخ الکبير: ۱۵۰/۶رقم الترجمة: ۱۹۴۴الجرح والتعديل:۱۲۶/۶ رقم الترجمة: ۵۴۴الثقات لابن سعد: ۴۴۵/۸تهذيب الکمال:۳۰۵/۲۱-۳۰۴ رقم الترجمة: ۴۲۱۷سير أعلام النبلاء: ۶۳۹/۱۰رقم الترجمة: ۲۲۳تاريخ الإسلام: ۱۰۶/۶ رقم الترجمة: ۶۳۴۹تهذيب التهذيب: ۴۳۵/۷رقم الترجمة:۷۱۳تقريب التهذيب: ۷۱۴/۱رقم الترجمة: ۴۸۹۶الکاشف: ۵۶/۲ رقم: ۴۰۳۸تحرير تقريب التهذيب: ۶۹/۳رقم الترجمة۴۸۸.

[2] تهذيب الکمال: ۳۰۵/۲۱تهذيب ا لتهذيب: ۴۳۵/۷تاريخ الإسلام: ۱۰۶/۶.

[3] سير أعلام النبلاء: ۶۳۹/۱۰تاريخ الإسلام: ۱۰۶/۶.

[4] تهذيب التهذيب: ۴۳۵/۷ سير أعلام النبلاء: ۶۳۹/۱تاريخ الإسلام:۱۰۶/۶.

ذُهلی، محمدبن یحیی بن کثیر حزانی، موسی بن سعید دندانی، هارون بن عبدالله الحمال اویعقوب بن سفیان رحمهم الله شامل دی. [1]

**دَ ائمه جرح والتعدیل توثیقی اقوال:** امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی "ثقة".[2] امام عجلی رحمه الله او ابوزرعه رحمه الله فرمائی "ثقة".[3] ابن شاهین په کتاب الثقات کښې نقل کړی دی چه امام احمد رحمه الله فرمائی "صدوق".[4] امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه زه عُمر بن حفص رحمه الله (نه دَ روایت په غرض دَ هغه کورته لاړم) لیکن ماته دَهغه نه دَ روایت موقع ملاؤنه شوه.[5] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی "کان من العلماء الأثبات".[6]

**دَ ابن حبان رحمه الله مبهم جرح:** ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې تذکره کړې ده اومبهم جرح کولو سره ئی لیکلی دی «ربما أخطاء».[7] حافظ ابن حجرعسقلانی رحمه الله تهذیب التهذیب [8] کښې دَ ابن حبان رحمه الله «ربما أخطاء» بغیردَ تبصرې نه نقل کولونه پس دَ نورو علماؤ توثیقی اقوال نقل کړی دی خو په تقریب التهذیب کښې لیکلی دی «ثقة ربما وهم».[9]

**دَ ابن حبان رحمه الله او ابن حجررحمه الله دَ قول حقیقت:** دَحافظ ابن حجر رحمه الله دا کلام «ربما وهم» دَ ابن حبان رحمه الله قول «ربما أخطاء» نه ماخوذ دې. دَ ابن حبان رحمه الله اوحافظ صاحب رحمه الله دَدې مبهم جرح هیڅ اعتبار نشته دې. دَ شیخین امام بخاری او امام مسلم رحمهم الله دَهغه نه روایت کول پخپله دَهغوی توثیقی دلیل دې. او امام ابوحاتم رحمه الله او ابوزرعه رحمه الله غوندې ائمه متشددین دَهغوی مطلقًا توثیق کړې دې لهذا هم مطلقًا توثیق معتمد اومعتبردې نه چه دَابن حبان او حافظ صاحب مبهم جرح (ځکه چی دَ انبیاء کرام علیهم السلام نه علاوه کوم یو نفس بشر دې چه دَ خطا او وهم نه خالی دې).[10]

**وفات:** ابن سعد رحمه الله لیکلی دی چه عمر بن حفص رحمه الله په کوفه کښې دَ ابواسحاق معتصم بالله دَ خلافت په زمانه کښې ربیع الاول ۲۲۲هجری کښې انتقال شوې.[11] رحمه الله رحمةً واسعةً.

دَ امام بخاری رحمه الله ابن حبان رحمه الله علامه ذهبی رحمه الله اوحافظ ابن حجررحمه الله نه هم دَ وفات کال ۲۲۲هجری نقل دې.[1]

---

[1] تهذیب الکمال:۲۱/۳۰۶-۳۰۵تهذیب ا لتهذیب: ۷/۴۳۵.
[2] الجرح والتعدیل: ۶/۱۲۶سیرأعلام النبلاء: ۱۰/۶۳۹.
[3] تهذیب التهذیب: ۷/۴۳۵حاشیه تهذیب الکمال: ۲۱/۳۰۶.
[4] تهذیب التهذیب: ۷/۴۳۵ تعلیقات تهذیب الکمال: ۲۱/۳۰۶.
[5] تاریخ الإسلام: ۶/۱۰۶تهذیب الکمال:۲۱/۳۰۶.
[6] سیرأعلام النبلاء: ۱۰/۶۳۹.
[7] کتاب الثقات: ۸/٤٤٥.
[8] تهذیب التهذیب: ۷/٤۳۵.
[9] تقریب التهذیب:۱/۷۱٤.
[10] تعلیقات الکاشف: ۲/۵۷تحریر تقریب التهذیب: ۲/۶۹.
[11] الطبقات الکبری: ۶/٤۱۳.

**حدثنا ابي حفص بن غياث:**

**نوم او نسب سلسله:** هغوی د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله خصوصي شاګرد او دامام بخاری رحمه الله معمتدترین استاذ حفص بن غیاث بن طلق بن معاویه بن مالک بن الحارث بن ثعلبه بن عامر بن ربیعه بن عامر بن جشم بن وهیل بن سعد بن مالک بن النخع نخعي کوفي رحمه الله دی.[1] دهغوی کنیت ابوعمر دی.[2] حفص بن غیاث د هشام بن عبدالملک د خلافت په زمانه کښې ۱۱۷هجری کښې پیداشوی.[3]

**تحصیل علوم وشیوخ حدیث:** هغوی چه د کومو محدثینو کرامو نه دحدیث علم حاصل کړې په هغوی کښې اسماعیل بن ابی خالد، اسماعیل بن سُمَیع، اشعث بن سوار، اشعث حُدانی، اشعث حمرانی، برد بن سنان شامی، ابوبرده یزید بن عبدالله اشعری، جعفر بن محمدبن علی الصادق، حجاج بن ارطاة، خالد الحذاء، سعد بن طارق اشجعی، سفیان ثوری، سلیمان الاعمش، سلیمان ابن جریج تیمی، عاصم الاحول، ابوشیبه عبدالرحمن کوفي، عبدالعزیز بن عمر بن سعد بن کدام، عبدالعزیز بن عمر بن عبدالعزیز، عبیدالله بن عمر، ابوعمیس مسعودی، ابو عنبس نخعي، علاء بن خالد، علاء بن مسیب، مجاهدبن سعید، محمدبن ابی یحیی، موسی بن عمیر عنبری، میمون وراق، هشام بن عروه، یحیی بن سعید انصاری، مصعب بن سلیم، ابواسحاق شیبانی او ابو خالد دالانی رحمهم الله شامل دی.[5]

**تلامذه:** د حفص بن غیاث رحمه الله نه د حدیث روایت کونکوکښې ابراهیم بن مهدی، احمدبن ابراهیم دورقي، احمدبن حنبل، اسحاق بن راهویه، ابومعمر اسماعیل هُذلی، ابوبکر اسماعیل أبلی، امیه بن قاسم حسن عرفه، داؤد بن رشید، ابوخیثمه، سفیان، وکیع بن جراح، ابوسائب، سهل رازی، سهل عسکری، صدقه بن فضل مروزی، ابوسعید اشج، ابوبکر بن ابی شیبه، عفان بن مسلم، ابوالشعثاء، علی بن خشرم، علی بن مدینی، علی بن میمون، عمربن حفص بن غیاث، ابوداؤد حفری، عمران بن میسره، غنام بن حفص بن غیاث، ابونعیم فضل بن دکین، قتیبه بن سعید، محمد بن آدم، محمد بن صباح بزار، ابوکریب، محمد بن مثنی، ابویحیی ثقفی مروزی، ابوهشام رفاعی،

---

[1]) التاريخ الكبير: ۱۵۰/۶الثقات: ٤٤٥/٨ الكاشف: ۵۷/۲تاريخ الإسلام: ۱۰۶/۶تهذيب التهذيب: ٤٣٥/٧ تقريب التهذيب: ٧١٤/١.

[2]) تهذيب الكمال: ۵۶/۷رقم الترجمة: ١٤١٥تهذيب التهذيب: ۵۱۵/۲ تاريخ بغداد: ۱۵۸/۸رقم الترجمة: ٤٣١٣وفيات الأعيان:۱۹۷/۲رقم الترجمة: ۲۰۲ التاريخ الكبير: ۳۷۰/۲رقم الترجمة: ۲۸۰٤الطبقات الكبرى: ۳۸۹/۶الجرح والتعديل: ۱۹۹/۳رقم الترجمة: ۸۰٤ كتاب الثقات: ۲۰۰/۶العلل الواردة فى الأحاديث النبوية للدارقطني: ۲۸۸/۱الكامل لابن الأثير: ۳۷۰/۵تاريخ الإسلام: ۲۲۶/۵رقم الترجمة: ٤٩١١تذكرة الحفاظ: ۲۹۷/۱رقم الترجمة:۲۷۹الكاشف: ۲٤۳/۱رقم الترجمة: ۱۱۶۵ سير أعلام النبلاء: ۲۲/۹ رقم الترجمة: ۶تقريب التهذيب: ۲۲۹/۳۱ رقم الترجمة: ١٤٣٦تحرير تقريب التهذيب: ۳۰۵/۱ رقم الترجمة:١٤٣مقدمة فتح الباري:۵۶۱/۱.

[3]) كتاب الثقات: ۲۰۰/۶الطبقات الكبرى: ۳۹۰/۶التاريخ الكبير: ۳۷۰/۶.

[4]) الطبقات الكبرى:۳۹۰/۶وفيات الأعيان: ۲۰۱/۲ تاريخ بغداد:۱۹۶/۸.

[5]) تهذيب الكمال: ۵۸/۷-۵۶تهذيب التهذيب: ٤١۵/۲ تاريخ بغداد: ۱۸۵/۸.

هناد بن سری، یحیی بن سعید القطان، یحیی بن معین، یحیی بن یحیی نیسابوری او یعقوب بن ابراهیم دورقی رحمهم الله شامل دی.(۱)

**دَ ائمه جرح اوتعدیل اقوال او دَ ژوند حالات:** اسحاق بن منصور رحمه الله اواحمد بن سعد بن ابی مریم رحمه الله یحیی بن معین رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی «**حفص بن غیاث ثقة**».(۲)

ابومسلم صالح رحمه الله دَ خپل والد احمد بن عبدالله عجلی رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی «**حفص بن غیاث ثقة، مامون فقیه**» دَامام وکیع رحمه الله نه چه به کله دَ یوڅیزباره کښې تپوس کولې شو نوهغوی به فرمائیل چه لاړشئ زمونږ دَ قاضی صاحب نه معلوم کړئ. هغوی نور فرمائی «**کان سخیاً أوشیخاً عفیفاً مسلماً**».(۳)

ابن ابی حاتم عبدالرحمن رحمه الله وائی چه ما دَخپل پلار نه دَ حفص بن غیاث رحمه الله او ابوخالد الاحمر رحمه الله باره کښې پوښتنه اوکړه نوهغوی اوفرمائیل حفص دَ خالد په نسبت احفظ اواتقن دې.(۴) ابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې دَهغوی تذکره کړې ده.(۵)

علی ابن مدینی رحمه الله وائی چه یحیٰی بن معین رحمه الله فرمائی «**حفص ثبت**» ما وئیل هغه ته وهم کیږی. ابن معین رحمه الله اوفرمائیل دَهغه کتاب صحیح دې. کله چه زه کوفې ته راغلم نو حزام حفص او ابن أبی زائده غونډې مې څوك اونه لیدل. دا خلق اصحاب حدیث وو. ابن مدینی رحمه الله اووئیل کله چه حفص رحمه الله خپل کتابونه رااوویستل نوهغه هم هغه شان وو لکه چه یحیٰی رحمه الله فرمائیلی وو او په هغې کښې اخبار او الفاظ (حدیث) وو څنګه چه یحیٰی فرمائیلی وو.(۶)

علی ابن مدینی رحمه الله وائی چه ما یحیٰی بن سعید القطان رحمه الله داسې فرمائیلوسره واوریدو: حفص بن غیاث دَ اعمش رحمه الله په شاګردانو کښې دَ ټولو نه زیات اوثق وو. ابن مدینی رحمه الله وائی چه مادَ یحیٰی رحمه الله خبره اونه منله خوچه زه کله کوفې ته راغلم نوعمر بن حفص رحمه الله ماته دَخپل والد صاحب کتاب اوخودلو په کوم کښې چه دَاعمش رحمه الله روایات وو نوما یحیٰی بن سعید ته دَ رحمت دعا اوکړه. عمر وئیل کتاب زما دَ پلار ګورې او دعا یحیٰی ته کوې؟ ابن مدینی رحمه الله وائی چه ما اووئیل چه ما دَ یحیٰی بن سعید نه اوریدلی وو چه حفص دَ اعمش په اصحاب کښې دَ ټولو نه زیات اوثق دې. ماته دَهغې یقین هغه وخت پورې نه وو شوې ترکومې چه ما دَهغه کتاب نه وو کتلې.(۷)

یحیٰی بن معین نه تپوس اوکړې شو چه ابن ادریس او حفص بن غیاث کښې کوم یو ډیر احفظ دې؟ نوهغه اوفرمائیل ادریس حافظ دې اوحفص بن غیاث صاحب حدیث دې هغه ته دَ حدیث پیژندګلو ده.(۸)

---

(۱) تهذیب الکمال: ۷/۵۹-۵۸تهذیب التهذیب: ۶/۴۱۶-۴۱۵ تاریخ الإسلام: ۵/۲۲۶.

(۲) تاریخ بغداد: ۸/۱۹۳الجرح والتعدیل: ۳/۲۰۰تهذیب التهذیب: ۷/۶۰.

(۳) تاریخ بغداد: ۸/۱۹۳، ۱۶۴ تهذیب الکمال: ۷/۶۰تهذیب التهذیب: ۲/۴۱۶تاریخ الإسلام: ۵/۲۲۶.

(۴) الجرح والتعدیل: ۳/۲۰۰تهذیب الکمال:۷/۶۱.

(۵) کتاب الثقات: ۶/۲۰۰.

(۶) تاریخ بغداد: ۸/۱۹۳تهذیب الکمال:۷/۶۲-۶۱.

(۷) تاریخ بغداد: ۸/۱۹۳تهذیب التهذیب: ۲/۴۱۶ تهذیب الکمال: ۷/۶۱-۶۰.

(۸) تاریخ بغداد: ۸/۱۹۴سیر أعلام النبلاء: ۹/۲۳.

ابن خراش رحمه الله فرمائى «هو أي: حفص أثبت من عبد الواحد بن زياد» [1] امام نسائى رحمه الله فرمائى «حفص بن غياث ثقة» [2] علامه ذهبى رحمه الله فرمائى «الإمام الحافظ العلامة القاضي أبو عمر الحنفي الكوفي قاضي الكوفة ومحدثها» [3] علامه عينى رحمه الله فرمائى «ثقة فقيه عفيف حافظ» [4] خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى «كان حفص كثير الحديث، حافظاً له، ثبتاً فيه وكان أيضاً مقدماً عند المشايخ الذين سمع منهم الحديث» [5]
يعقوب ابن شيبه رحمه الله فرمائى «حفص ثقة ثبت إذا حدث من كتابه ويتقى بعض حفظه» [6] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ثقة فقيه، تغير حفظه قليلاً في الآخر» [7] ابن سعد رحمه الله فرمائى «كان ثقة مأموناً ثبتاً إلا أنه كان يدلس» [8]

حافظ ابن حجر رحمه الله دَ فتح الباري په مقدمه كښې فرمائى: «حفص بن غياث من الائمه الأثبات، أجمعوا على توثيقه والاحتجاج به، إلا أنه في الأخر ساء حفظه، فمن سمع من كتابه أصح ممن سمع من حفظه..... اعتمد البخاري على حفص هذا في حديث الأعمش، لأنه كان يميز بين ما صرح به الأعمش بالسماع وبين ما دلسه، نبه على ذلك أبو الفضل بن طاهر وهو كما قال». [9]
يعنى حفص بن غياث رحمه الله دَ ائمه اثبات نه دې. دَهغوى توثيق اودَ هغوى دَ روايت نه په احتجاج باندې دَ ائمه اجماع ده . البته په آخرى عمر كښې په حافظه كښې څه فرق راغلې وو. دَهغوى دَحفظ په مقابله كښې دَ كتاب نه اوريدلې شوې روايت زيات صحيح دې. نور ئې اوفرمائيل امام بخارى رحمه الله دَ اعمش دَ حديث په سلسله كښې په حفص باندې زيات اعتماد كولو. يعنى تركومې چه دَهغه نه دَاعمش حديث ملاويدلو نودَ نورو نه به ئې روايت نه كولو. دَ ابوالفضل بن طاهر مطابق حفص به دَ اعمش تدليس كړې شوى روايات اودَ سماع دَ صراحت والا رواياتو كښې فرق ساتلو. حافظ صاحب فرمائى «وهو كما قال (أي: أبو الفضل بن طاهر)» بهرحال حفص بن غياث رحمه الله دَ ائمه جرح وتعديل دَ تصريحاتو مطابق دَ ثقات او اثبات نه دې. [10] اودَ ائمه جرح وتعديل دَهغوى په توثيق باندې اتفاق دې. كمامر.

**دَ امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دَ شاګردئى شرف:** حفص بن غياث رحمه الله ته دَ امام صاحب رحمه الله نه شرف تلمذ حاصل دې. هغوى دَ امام اعظم رحمه الله په ممتاز كبار اصحاب اوشركاء تدوين فقه كښې وو. دَ

---

[1] تاريخ بغداد: ١٩٤/٨ تهذيب الكمال: ٦٢/٧ تاريخ الإسلام: ٢٢٦/٥.
[2] تهذيب الكمامل: ٦٢/٧ سير أعلام النبلاء: ٢٥/٩ تهذيب التهذيب: ٤١٦/٢.
[3] سير أعلام النبلاء: ٢٢/٩.
[4] عمدة القارى: ٣٠٦/٣.
[5] تاريخ بغداد: ١٩٠/٨ الجواهر المضية: ٢٢٣/١.
[6] تاريخ بغداد: ١٩٤/٨ الكاشف: ٣٤٣/١ تهذيب الكمال: ٦٠/٧.
[7] تقريب التهذيب: ٩٢٢/١.
[8] الطبقات: ٣٩٠/٦.
[9] مقدمه فتح البارى: ٥٦١/١ تحرير تقريب التهذيب: ٣٠٥/١.
[10] تعليقات تهذيب الكمال: ٦٩/٧.

امام ابويوسف رحمه الله سره ورته هم دَ شاګردئی سعادت حاصل دې. امام ابوحنيفه رحمه الله چه کوم شاګردان وجه د سرور او دافع حزن اوغم فرمائيلې وو دَحفص بن غياث رحمه الله شمير هم په هغوی کښې کيدو.[1]

**دَ قضاء عهده:** هغوی په کوفه کښې ديارلس کاله او بغداد کښې دَ قضاء متولی اودَ قضاء په عهده باندې پاتې دې. احمدبن کامل رحمه الله وائی چه هارون الرشيد هغه په بغداد کښې دَ شرقيه قاضی مقررکړو بيا دَهغه ځائی نه معزول کولوسره ئی دَ کوفې قاضی جوړکړو.[2] عبيدبن صباح رحمه الله وائی چه حفص بن غياث رحمه الله ۱۷۷ هجری دَ شپيتوکالو په عمر کښې قاضی مقررشو.[3]

حميد بن ربيع رحمه الله وائی هارون الرشيد دَ قضاء عهده حواله کولودپاره عبدالله بن ادريس حفص بن غياث اووکيع بن الجراح دريواړه راؤغوښتل. ابن ادريس خو دربارته په رسيدو باندې دَ السلام عليکم نه پس خپل ځان داسې راګذار کړو لکه چه هغه مفلوج وی. خليفه اووئيل دا ضعيف بوډا بوځئی داد کار نه دې. وکيع خپله ګوته په سترګه باندې کيخودو سره اووئيل (دَ توريه په توګه دا ګوته مراد اخستلو سره) اووئيل په الله تعالی قسم امير المؤمنين ما دَ يو کال نه په دې سره څه نه دی ليدلی. خليفه هغه معزور ګنړلو سره واپس کړو اوحفص بن غياث رحمه الله څه عذر اونه کړې شو او قاضی جوړکړې شو.[4]

دَ ابوبکر بن ابی شيبه رحمه الله په روايت کښې دی چه حفص بن غياث اوفرمائيل چه ما دَ قضاء عهده هغه وخته پورې اختيارنه کړه ترکومې پورې چه زما دَ پاره مردار خوراك حلال نه شو.[5] يوځل ئی اوفرمائيل چه که دَ قرضونو بوج اودَبال بچ ذمه واری نه وه نو دَقضاء عهده به مې نه وه قبوله کړې.[6]

ابراهيم بن مهدی رحمه الله وائی چه کوم وخت حفص بن غياث دَ شرقيه بغداد قاضی وو نويوسړې چه دهغوی نه ئی دَ قضاء مسائلو پوښتنه کوله، حفص رحمه الله اوفرمائيل کيدې شی ته دَ قاضی جوړيدو خواهش مند ئی نو واؤره چه سړې دې په خپله سترګه کښې ګوته ورکړی اودې باسی داد هغه دپاره ددې نه بهتر ده چه هغه قاضی جوړشی.[7]

**دَ ابن ابی ليلی فيصلو سره مشابهت:** هغوی دَخپل استاذ امام ابويوسف رحمه الله دَ مشورې نه بغيردَ قضاء عهده قبوله کړې وه. چه هغوی ته معلومه شوه نودا خيال ئی اوکړو چه داد بوج کاردَهغوی دَپاره قابل تحمل نه وی اودهغه دَ قضاء عهده قبلول هم په هغوی باندې مشکل شي. چنانچه بشر ابن الوليد وائی چه امام ابويوسف رحمه الله ماته اوحسن بن زياد ته اوفرمائيل چه دَهغه دَ فيصلو تتبع کونی. کله چه مونږ دَ هغې تفصيلات دَ امام ابويوسف رحمه الله مخې ته کيخودل نوهغوی په دې کښې نظر کولوسره اوفرمائيل داخودَ قاضی ابن ابی ليلی فيصلوسره ملاويږی بيائی اوفرمائيل دَ شروط او سجلات هم تتبع کوئی. مونږ هغه هم اوکړه نو په هغې باندې هم نظر اچولوسره اوفرمائيل حفص بن

---

[1] مناقب الإمام أبی حنيفة للذهبی: ص:۲۸، الجواهر المضية: ۲۲۲/۱-۲۲۱الفوائد البهية ص: ۶۸
[2] تاريخ بغداد: ۱۸۶، ۱۸۹/۸، تهذيب الكمال: ۵۹، ۶۴/۷سير أعلام النبلاء: ۳۰/۹.
[3] تاريخ بغداد: ۱۹۶/۸تهذيب الكمال: ۶۹/۷.
[4] تاريخ بغداد: ۱۸۶/۸وفيات الأعيان: ۱۹۸/۲الجواهر المضية: ۲۲۲/۱.
[5] تاريخ بغداد: ۱۹۸/۶وفيات الأعيان: ۲۰۰/۲تاريخ الإسلام: ۲۲۷/۵.
[6] تاريخ بغداد: ۱۸۶/۸وفيات الأعيان:۱۹۸/۶تهذيب الكمال: ۶۴/۷.
[7] تاريخ بغداد: ۱۸۶/۸تاريخ الإسلام: ۲۲۷/۵سيرأعلام النبلاء:۲۶۳۹.

غياث رحمه الله دَهغه خلقو نه دي چاته چه دَ قيام ليل په بركت سره دَ الله تعالى حفاظت او خيال ساتل حاصل دى. (١)

خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى چه كله حفص بن غياث رحمه الله قاضى جوړكړې شو نوامام ابويوسف رحمه الله خپلو ملګروته اووئيل چه راشئى دَ حفص نوادر راجمع كړئى. بيا چه كوم وخت دَ هغه فيصلې امام ابويوسف رحمه الله ته وړاندې كړې شوې نو اصحاب ابويوسف دَهغوى نه دَ حفص دَ نوادر باره كښې تپوس اوكړو. نوهغوى اوفرمائيل تاسوته دې خير وى حفص خودَ الله تعالى دَ توفيق لاندې روان دې. يورروايت كښې دى امام ابويوسف رحمه الله اوفرمائيل الله تعالى دَ تهجد په بركت سره حفص ته خپل توفيق وركړې دې.(٢)

**دَ قضاء حق ئې اداكړو:** هاشم رفاعى وائى حفص بن غياث رحمه الله يوځل په شرقيه كښې ناست وو دَ خلقو مسئلې حل كولې چه دَ خليفه پيغام راغلو نوهغوى قاصد ته اوفرمائيل چه دَدې خلقو دَ خصوماتو نه فارغ كيدو سره به دَ امير المؤمنين په خدمت كښې حاضريږم ځكه چه زه هم دَ دوى دَ مسئلو دَ حل كولو اجرت او مزدورى اخلم اودَ هغه وخته پورې دَ خپل مجلس نه نه پاسيدو تركومې چه دَ خصوم نه فارغ كيدو سره لاړنه شو.(٣)

غنام بن حفص وائى يو ځل زما پلار بيمارشو او پنځلس ورځې په بيمارئى كښې تيرې شوې اوعدالت ته لاړ نه شو، دَ مياشتې په پوره كيدو باندې وظيفه ملاؤشوه نوماته ئې سل درهم راكړه وئې فرمائيل لاړشه ګورنر ته ئې وركړه. دادَ هغه پنځلسو ورځو وظيفه ده په كوم كښې چه ماته دَ مسلمانانو په مينځ كښې دَ فيصلې كولوموقع ملاؤنه شوه او په دې زما هيڅ حق نشته.(٤)

عمر بن حفص وائى چه كله زما دَ پلار آخرى وخت رانيزدې شو او په هغه بې هوشى راغله نو زه دَهغه سر ته كيناستم او په ژړا شوم. هغه په هوش كښې راغلو نو تپوس ئې اوكړو چه ولې ژاړې؟ ما وئيل چه ستاسو دَ جدائئى په خيال سره اوستاسو دَ قاضى جوړيدو په معامله سره نوهغوى اوفرمائيل مه ژاړه ځكه چه ما تول عمر ډير پاك ژوند تير كړې دې (يعنى كله ما حرام نه دى خوړلې) هيڅ كله مى دَمدعى اومدعى عليه په مينځ كښې په عدل اوانصاف كولو كښې دَ مداهنت نه كار نه دې اخستې. (٥)

وكيع بن الجراح رحمه الله اوفرمائيل چه نن اهل كوفه په خير اوعافيت كښې دى دَهغوى امير داؤد بن عيسى او قاضى حفص بن غياث اومحتسب حفص الدورقى دې. (٦)ابوجعفر مسندى رحمه الله وائى چه حفص بن غياث رحمه الله دَ عربو په سخيانو خلقو كښې وو اوهغوى به فرمائيل ځوك چه زمونږ پيش كړې شوې خوراك نه كوى مونږ هغوى سره خبرې نه كوو. (٧)

---

(١) الجواهر المضية: ٢٢٢/١تاريخ بغداد: ١٨٩/٨.

(٢) تاريخ بغداد: ١٨٩/٨ الجواهر المضية: ٢٢٣/١سيرأعلام النبلاء: ٣٠/٩.

(٣) تاريخ بغداد: ١٨٧/٨وفيات الأعيان: ١٩٨/٢.

(٤) تاريخ بغداد: ١٨٧/٨وفيات الأعيان: ١٩٨/٢تاريخ الإسلام: ٢٢٧/٥.

(٥) تاريخ بغداد: ١٨٧/٨وفيات الأعيان: ١٩٨/٢تاريخ الإسلام: ٢٢٧/٥.

(٦) تاريخ بغداد: ١٩٠/٨سيرأعلام النبلاء: ٢٦/٩تهذيب الكمال: ٦٥/٧.

(٧) تاريخ بغداد:١٩٠/٨ تاريخ الإسلام: ٢٢٧/٥تهذيب الكمال: ٦٥/٧.

حفص بن غیاث رحمه الله وائي کوم وخت چه مونږ بغداد ته راغلو نومونږ سره اصحاب حدیث راغلل نوابن ادریس به هغوی ته وئیل چه تاسو شعر اوعربی لازمی اونیسئ. حفص وائي ما ابن ادریس ته اووئیل چه ته دالله تعالی نه نه ویریږې؟ دا خلق د رسول الله ﷺ د آثار او احادیثو طالبان دی اوته دوی ته د شعر اوعربی زده کولو وائي. که بیا دې داسې اووئیل نو زه به تاسره ډیر خراب مخ شم.(۱)

حفص بن غیاث رحمه الله په قضاء کښې دعلم اودیانت هغه کردار پیش کړو چه امام ابویوسف رحمه الله غوندې قاضی القضاة په هغه باندې د اطمینان اظهاراوکړو (کما مر) او حفص د وفات نه پس په خپل خان باندې نهه سوه درهم قرضه پریخوده. (۲)هغه واقعې د قضاء حق اداکړو هم دغه وجه ده چه په هغه وخت کښې به په عام توګه دا وئیلې کیدل چه حفص آخری قاضی وو او په هغه باندې قضاء ختمه شوې ده.(یعنی اوس د هغوی په شان د عادلانه قضا توقع پاتې نه شوه). (۳)

**وفات:** دهغوی د وفات د کال باره کښې درې اقوال دی. حافظ ابن حجر رحمه الله په تقریب التهذیب کښې ۱۹۴ یا ۱۹۵ هجری نقل کړې دې.(۴) او ابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې ۱۰ ذی الحجه ۱۹۵ یا ۱۹۶هجری د وفات کال ګرځولې دې. (۵)۱۹۵هجری د ابوسائب مسلم بن جناده قول دې.(۶) او ۱۹۶ هجری د عمرو بن علی اومحمد بن مثنی وغیره قول دې.(۷)احمدبن عبدالجبار عطاردی، ابن نمیر، ابوسعید اشج، خلیفه بن خیاط، ابن ابی الدنیا، عبیدبن صباح، ابوبشر او ابن خلکان وغیره وئیلی دی چه حفص بن غیاث رحمه الله ۱۹۴ هجری کښې ددې دنیا نه تلې دې. (۸)ابن سعد لیکلی دی د حفص بن غیاث رحمه الله انتقال ۱۰ ذی الحجه ۱۹۴هجری باندې د محمد بن هارون په دور خلافت کښې شوې دې.(۹) ابوبشر هارون رحمه الله وائي چه دابن ادریس د انتقال په وخت حفص بن غیاث رحمه الله فالج کښې راګیرشو بیا ۱۹۴هجری پورې په کور کښې (بیمار) پاتې شو او ۱۰ یعنی ذی الحجه ۱۹۴هجری کښې وفات شو اوامیر کوفه فضل بن عباس دهغوی جنازه اوکړه.(۱۰) علامه مزی رحمه الله علامه ذهبی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله ۱۹۴هجری د وفات قول صحیح ګرځولې دې.(۱۱) رحمه الله ورحمة واسعة.

---

(۱) تاریخ بغداد: ۱۶۸/۸تاریخ الإسلام:۲۲۷/۵.
(۲) وفیات الأعیان: ۲۰۰/۲ تهذیب الکمال: ۶۴/۷تهذیب التهذیب: ۴۱۷/۲سیرأعلام النبلاء: ۲۶/۹ تاریخ الإسلام: ۲۲۷/۵.
(۳) تهذیب الکمال: ۶۴/۷تاریخ الإسلام: ۲۲۷/۵تهذیب التهذیب: ۴۱۷/۲سیرأعلام النبلاء: ۲۶/۹.
(۴) تقریب التهذیب: ۲۲۹/۱.
(۵) کتاب الثقات:۲۰۰/۶.
(۶) تاریخ بغداد: ۱۹۶/۸تاریخ الإسلام: ۲۲۸/۵تهذیب الکمال: ۶۹/۷سیرأعلام النبلاء: ۳۴/۹.
(۷) تاریخ بغداد: ۱۹۶/۸وفیات الأعیان: ۲۰۱/۲تهذیب الکمال: ۶۹/۷
(۸)تاریخ بغداد: ۱۹۵-۱۹۶/۸تاریخ الإسلام: ۲۲۸/۵تهذیب الکمال: ۶۹/۷سیرأعلام النبلاء: ۳۳/۹ تهذیب التهذیب: ۴۱۸/۲ وفیات الأعیان: ۲۰۰/۲تذکرة الحفاظ: ۲۹۸/۱.
(۹) الطبقات الکبری: ۳۹۰/۶.
(۱۰) تاریخ بغداد:۱۹۶/۸تهذیب الکمال: ۶۹/۷سیرأعلام النبلاء: ۳۳/۹.
(۱۱) تاریخ الإسلام: ۲۲۸/۵سیرأعلام النبلاء: ۳۴/۹تهذیب ا لکمال: ۴۱۷/۲تهذیب الکمال: ۶۹/۷.

باقي رواة حديث اعمش سالم كريب ابن عباس اوميمونه رضي الله عنهم تراجم وړاندې تير شوي دي.(۱)

## شرح حديث

**قوله: غُسْلاً: غُسْلاً** په ضمه دَ غين دَغسل اوبوته وائي. (۲)دَ لفظ غسل لغوي تحقيق اودَ ائمه لغت مختلف اقوال كتاب الغسل په شروع كښې بيان كړې شوي دي.

**قوله: ثم قال بيده الأرض فمسحها بالتراب:** بيا حضورپاك خپل لاس په زمكه باندې اووهلو او هغه ئې په خاوره پورې اومږلو. دَ ابن عساكر او ابوذر په روايت كښې على الأرض الفاظ دي يعني دَ على اضافه ده.(۳) **قال بيده الأرض** أ**على الأرض** مطلب دادې چه هغوى عليه السلام خپل لاس په زمكه باندې اووهلو "**قال**" دلته دَ "**ضرب**" په معنى كښې دې لكه چه هم دَدې كتاب ۱۸ نمبرباب **نفض اليدين من الغسل عن الجنابة** كښې دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها هم دغه روايت دې او په دې كښې «**نفض اليدين من الغسل عن الجنابة**» كښې دَحضرت ميمونه رضي الله عنها هم دغه روايت دې او په هغې كښې «**فضرب بيده الأرض**» الفاظ دي. تفصيل په سابق باب كښې تيرشوې دې.

**قوله: ثم تمضمض واستنشق:** بيا حضورپاك غرغرې اوكړې او پوزه كښې اوبه واچولې. دَ ابوذر اصيلي او ابن عساكر په روايت كښې تمضمض په ځائې مضمض الفاظ دي. (۴)دَ مضمضه اواستنشاق سره متعلق بحثونه په كتاب الوضوء كښې راغلي دي. دلته صرف په غسل كښې دَدې دواړوسره متعلق دَ ائمه كرامو مذاهب او مختصراً دَ حنفيه دليل جواب ذكر كول مقصود دي.

**په غسل جنابت كښې مضمضه او استنشاق حيثيت:** دَ احنافو په نيز په غسل جنابت كښې مضمضه او استنشاق يعني خله او پوزه كښې اوبه اچول واجب دي. (۵)

دَ امام شافعي رحمه الله په نيز په اودس او غسل دواړو كښې غرغرې كول او پوزه كښې اوبه اچول سنت دي. هم دغه قول دَ حسن بصري، امام زهري، حكم بن عتبه، قتاده، ربيعه، يحيى بن سعيدانصاري، امام اوزاعي، ليث بن سعد رحمهم الله او په يو روايت كښې دَعطاء رحمه الله نه هم نقل دي.(۶) دَ امام مالك رحمه الله هم دغه مذهب دې.(۱)

---

۱) دَ اعمش رحمه الله دَپاره اوګورئ: كشف البارى: ۲۵۱/۲دَ سالم احوال صحيح البخاري كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع لاندې اوګورئ. دَ كريب رحمه الله حالات كتاب الوضوء باب التخفيف فى الوضوء په ذيل كښې اوګورئ. دَ ابن عباس رضي الله عنهما حالاتودَپاره كشف البارى: ۴۳۵/۱ ۲۰۵/۲ اودَ حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ حالاتو دَپاره كشف البارى: ۴۲۰/۴.

۲) شرح الكرماني: ۱۲۲/۳ التوضيح: ۵۶۹/۴ فتح البارى: ۴۹۰/۲عمدة القارى: ۳۰۶/۳إرشاد السارى: ۴۹۷/۱الكوثر الجارى: ۴۱۶/۱التوشيح: ۲۴۶/۱تحفة البارى: ۲۲۳/۱.

۳) إرشادالسارى: ۴۹۷/۱تحفة البارى: ۲۲۳/۱.

۴) إرشاد السارى: ۴۹۷/۱تحفة البارى: ۲۲۴/۱-۲۲۳.

۵) البحر الرائق: ۸۷/۱-۸۶الهدايه: ۴۲/۱-۴۱البناية: ۳۱۶/۱، ۳۱۱بدائع الصنائع: ۲۶۷/۱تبيين الحقائق مع حاشية الشبلي: ۶۰/۱-۵۹.

۶) المجموع شرح المهذب: ۳۶۳/۱-۳۶۲، ۱۹۷/۲شرح النووى: ۱۰۲/۳البناية: ۳۱۱/۱السعاية: ۲۷۵/۱.

دَ امام احمد رحمه الله يو روايت دَ امام شافعي رحمه الله په شان دې يعنى په اودس اوغسل دواړو كښې سنت دي خو دَ مشهور روايت مطابق مضمضه اواستنشاق په اودس اوغسل دواړو كښې واجب دي. هم دغه دَ ابن ابى ليلى حماد او امام اسحاق رحمهم الله مذهب دې. يو روايت دَ عطاء رحمه الله او ابن شهاب زهرى رحمه الله نه هم دغه شان نقل دې. دَ امام احمد رحمه الله نه په يو دريم روايت كښې دانقل دى چه استنشاق په اودس او غسل دواړو كښې واجب دې نه چه مضمضه. دَ ابوثور، ابوعبيد، داؤدظاهرى او ابن منذر رحمهم الله هم دغه مذهب دې.([2])

**دَ بدن دَاندامونوقسمونه:** دَ احنافو په استدلال باندې دَ پوهيدلودَپاره داخبره په ذهن كښې اوساتئى چه دَ بدن دَاندامونو درې قسمونه دى: ① هغه اعضاء كوم چه من كل الوجوه دَ بدن داخل حصه دى. ② هغه اعضاء كوم چه من كل الوجوه دَ بدن خارج حصه دى. ③ بعض اعضاء هغه دى چه من وجه دَ بدن داخل حصه او من وجه ظاهر دَ بدن حصه دى. لكه پوزه او خله. لهذا دَ قسم اول نه په غسل كښې وينځل ضرورى دى او نه په اودس كښې. دَ دويم قسم نه اعضاء ثلاثه په اودس كښې وينځل اودَ سر مسح كول ضرورى دى او په غسل كښې دَ ټولو وينځل ضرورى دى. دَ دريم قسم دوه حيثيتونه دى نودهريو په اعتبارسره احناف وائى چه په غسل كښې دَدې وينځل ضرورى دى نه چه په اودس كښې.([3])

**دَ احنافو مستدل:** دَغسل باره كښې دَ احنافو يو استدلال خو دَ قرآن مجيد آيت ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ ([4])يعنى كه تاسو په حالت دَ جنابت كښې ئى نو ښه په مبالغه سره پاكى حاصله كړئى، نه دې. چنانچه ملك العلماء علامه كاسانى رحمه الله فرمائى چه په اودس كښې دَ قرآنى نص په رڼا كښې دَ مخ دَ وينځلو حكم وركړې شوې دې. دَ كوم نه مراد چه ظاهرى مخ دې. لهذا دَ خلې او پوزې دننه حصه په دې كښې داخل نه ده په خلاف دَ جنابت چه په دې كښې دَ قرآنى نص په رڼا كښې ښه په مبالغه سره دَ بدن پاكولو حكم وركړې شوې دې اودَ بدن اطلاق په ظاهرى اوباطنى دواړو حصو باندې كيږى. لهذا تركومې پورې چه ممكن وى دَ بدن ظاهرى اوباطنى حصې وينځل ضرورى دى. هم دغه وجه ده چه مضمضه او استنشاق په غسل جنابت كښې واجب دى. ځكه چه دَ خلې او پوزې دننه حصې ته بغيرد څه حرج نه اوبه رسول ممكن دى.([5])

**دَ مراتب تعيين:** حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى چه دَمضمضه اواستنشاق ثبوت خو دَحضورپاك په غسل كښې بلاريب دې البته دَمراتب تعيين دَ باب اجتهاد نه دې. زمونږ يعنى دَ احنافو په نظركښې دواړه په غسل كښې واجب دى ځكه چه شارع عليه السلام په نسبت دَ ورې پليتئى دَ جنابت باره كښې زيات تاكيد فرمائيلې دې. جنبى ئى دَ قرآن دَ قراءت نه منع كړو بې اودسه ئى نه دې منع كړې، جنبى ئى دَ دخول اوقيام دَ جمات نه منع كړو بې اودس ئى نه دې منع كړې. دَدې نه معلومه شوه چه په نسبت دَ ورې پليتئى دَ جنابت رسيدل باطنى بدن ته زيات دى لهذا مونږ مضمضه

---

[1]) حاشية الدسوقى: ١/٢٢٤الاستذكار: ١/١٦٢-١٦١المنتقىٰ: ١/٣٩٧.

[2]) المغنىٰ لابن قدامة: ١/٨٣الإنصاف للمرداوى: ١/١٥٢البناية: ١/٣١١السعاية: ١/٢٧٥.

[3]) السعاية: ١/٢٧٧.

[4]) سورت المائدة: ۶

[5]) بدايع الصنائع: ١/٢٦٧.

اواستنشاق په غسل کښې فرض واجب اوګرځول. البته دَ فرض نه فرض ظني مراد دې او دَ خبر واحد نه ثابتيږي. فرض قطعي دَ قرآن نه ثابتيږي.([1])

**دَ حديث پاک نه استدلال:** دَ ابوداؤد ترمذي او ابن ماجه په روايت کښې دي چه حضورپاک فرمائي: «إن تحت كل شعرة جنابة، فاغسلوا الشعر وانقوا البشرة»([2]) يعني بيشکه دَ هر ويښتنه نه لاندې جنابت وي نو تاسو ويښته وينځئي او څرمن پاکوئي.

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه دَ حنفيه استدلال «تحت كل شعر جنابة» نه دې په پوزه کښې چونکه ويښته وي لهذا دَهغې وينځل ضروري دي او خله په ظاهري بدن کښې داخل ده لهذا دَ خطابي اعتراض په خائی نه دې چه دَ بشره نه دَ حنفيه استدلال صحيح نه دې.([3])

علامه عبدالحئي لکهنوي رحمه الله فرمائي چه کله په دې حديث سره دَ استنشاق وجوب ثابت شو نودَ مضمضه وجوب به هم ثابت شي ځکه چه په حنفيه او شوافع کښې څوک هم دَدې په مينځ کښې دَ فصل قائل نه دی.([4])

**دَ فريق مخالف دَ دليل خلاصه:** باقي پاتې شوه خبره دَ قائلين عدم وجوب دَ قول نودَحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها په روايت کښې «عشر من الفطرة»([5]) کښې استنشاق اومضمضه هم شمير کړې شوې ده. اودَ عمار بن ياسر رضي الله عنه په روايت کښې دي «من الفطرة المضمضة والاستنشاق والسواك»([6])اودَ فطرت نه مراد سنت دې لکه څنګه چه علامه خطابي رحمه الله دَ اکثرو علماؤ نه نقل کړې دی اوعلامه نووي رحمه الله دَدې تصويب کړې دې. لهذا مضمضه اواستنشاق کول هم سنت دی نه چه واجب.([7])

**دَ صاحب دَ هدايه جواب:** يوجواب خودادې لکه چه صاحب دَهدايه وئيلی دا روايت دَ حدث اصغر په حالت باندې محمول دې. دَهغه احاديثو په رڼاکښې کوم چه دَ مضمضه اواستنشاق په غسل جنابت کښې وجوب بيان کړې شوی دی.([8])

**دَ صاحب دَ فتح القدير جواب:** دويم جواب دادې چه مونږ دا نه منو چه دَ فطرت نه مراد سنت دې ځکه چه دَفطرت ډيرې معنې راځي. دين اسلام ته هم فطرت وئيلې شوې دې لکه دَ بخاري شريف

---

[1]) فيض الباري: ٤٥٦/١.

[2]) الحديث أخرجه أبوداؤد في سننه، كتاب الطهارة باب في الغسل من الجنابة رقم: ٢٤٨وابن ماجه في سننه كتاب الطهارة باب تحت كل شعرة جنابة رقم: ٥٩٧.

[3]) البناية شرح الهداية: ٣١٥/١.

[4]) السعاية: ٢٧٧/١.

[5]) الحديث أخرجه مسلم في صحيحه، كتاب الطهارة، باب خصال الفطرة رقم: ٦٠٤ وأبوداؤد في سننه كتاب الطهارة، باب السواک من الفطرة رقم: ٥٣والترمذي في سننه، أبواب الأدب، باب ماجاء في تقليم الأظفار رقم: ٢٧٥٧ وابن ماجه في سننه أبواب الطهارة باب الفطرة رقم: ٢٩٣.

[6]) الحديث أخرجه أبوداؤد في سننه كتاب الطهارة باب السواک من الفطرة رقم: ٥٤وابن ماجه في سننه أبواب الطهارة باب الفطرة رقم الحديث: ٢٩٤.

[7]) السعاية: ٢٧٦/١.

[8]) الهداية كتاب الطهارات فصل في الغسل: ٤٤/١.

روايت ((كل مولود يولد على الفطرة)) (١) كښې دى. دغه شان اختراع ابداع او سنت ته هم فطرت وئيلى شى پس په حديث كښې دَ سنت نه دين مراد دې لهذا په دې سره به دَ وجوب استنشاق اومضمضه نفى نه كيږى، ځكه چه دين اعم دې واجب او سنت دواړو ته شامل دې داد صاحب فتح القدير جواب دې.(٢)

**دَسنت نه اصطلاحى سنت مرادنه دې:** علامه عبدالحئى لكهنوى رحمه الله فرمائى كه چرې مونږ دَعلامه خطابى او نووى خبره اومنو اوفطرت دَ سنت په معنى كښې واخلو نوبياهم زمونږ په استدلال باندې په دې سره څه فرق نه پريوځى. ځكه چه دَدې نه اصطلاحى سنت مراد نه دې لكه څنګه چه امام شافعى رحمه الله اراده كړې ده.بلكه دَدې نه دَانبياء عليهم السلام سنت اودَهغوى طريقه مسلوكه مراد ده. (٣)

**دَ رواياتونه تائيد:** دَدې تائيد دَحكيم ترمذى دَ نوادرالأصول روايت اودَ بزار دَ مرفوع روايت نه كيږى چه ((خمس من سنن المرسلين الحياء والحلم والحجامة والسواك والتعطر)) (٤) يعنى پنځه څيزونه دَ مرسلين دَ سنت نه دى: حياء، حلم، حجامه، مسواك او خوشبوئى لګول.

دَترمذى په روايت كښې دى ((أربع من سنن المرسلين الحياء، والتعطر، والسواك والنكاح)) (٥) يعنى څلور څيزونه دَ رسولانود سنتو نه دى. حياء، خوشبوئى لګول، مسواك او نكاح.

**الزامى جواب:** دغه شان دَامام شافعى رحمه الله په نيز ختان او استنجاء بالماء فرض دى. اودَدې په استدلال كښې پيش كړې شوى رواياتوكښې هغه څيزونه هم شمير كړې شوى دى. كوم جواب چه دَدې دواړو دَ فرض كيدو باره كښې وى هم هغه جواب زمونږ هم مضمضه او استنشاق واجب كيدو باره كښې وى. (٦)

**قوله: ثم تنحى فغسل قدميه:** بيا حضورپاك دَهغه ځائى نه اخوا شواوخپلې دواړه خپې اووينځلې. دَ تنحىٰ مطلب شراح دا بيان كړې دې چه بيا دَ حضورپاك دَ غسل والا دَ ځائى نه اخواكيدلوسره بل ځائى ته شو.(٧) علامه كرمانى رحمه الله ليكلى دى چه خپې وينځل روستوكول دَ جواز دَ بيان دَ پاره وو.(٨)

---

(١) كتاب الجنائز باب إذا أسلم الصبى فمات هل يصلى عليه؟ وهل يعرض على الصبى الإسلام؟ رقم:١٣٥٨ويتكرر أيضاً رقم: ١٣٥٩، ١٣٨٥، ٤٧٧٥، ٦٥٩٩.

(٢) السعاية: ١٧٦/١فتح القدير: ٥١/١.

(٣) السعاية: ٢٧٦/١.

(٤) الأصل الخامس والستون والمائة فى سنن المرسلين: ١٥٤/٢الأحاد والمثانى: ٢٧٣ جدمليح بن عبدالله الأنصارى رقم الحديث: ٢٢٠٨ (٢٢٣/٤) كشف الأستار كتاب الصلوة باب السواك: ٢٤٤/١رقم:٥٠٠.

(٥) اطراف مسند الإمام أحمد بن حنبل مسند أبى أيوب الأنصارى: ٥٩/٦رقم: ٧٧٣٨وأخرجه الترمذى فى سننه أبواب النكاح باب ماجاء فى فضل التزويج والحث عليه رقم: ١٠٨٠ مسندالشاميين مسند مكحول الشامى مكحول عن ابن خباب: ٣٧٤/٤رقم: ٣٥٩٠.

(٦) البناية: ٣١٧/١السعاية: ٢٧٤/١چونكه دا مسئله په كتاب الوضوء كښې تيره شوې ده په دې وجه دَ اختصار نه ئى كار اخستې دې. دَنور تفصيل دَپاره اوګورئى اعلاء السنن: ١٣٥/١-١٣٠ البناية: ٣١١-٣١٦/١السعاية:: ٢٧٧/١-٢٧٤.

(٧) فتح البارى: ٤٩٠/٢عمدة القارى:٣٠٦/٣إرشادالسارى: ٣٩٧/١.

(٨) شرح الكرمانى: ١٢٢/٣.

**قوله: :ثم أتي بمنديل**: بيا دَ حضورپاك په خدمت كښې يو روما راوړلې شو.

**دَ لفظ منديل تحقيق**: منديل (په كسره دَميم) په وزن دَ مفعيل، ندلَ يَندُلُ ندلاً دَ باب سمع نه يا خو النَّدْل (په معنى دَ الوسخ يعنى خيرى) نه ماخوذ دې ځكه چه په منديل سره اوساخ لرې كولې شي. يا لاندَل په معنى تناول كولو نه ماخوذ دى چه منديل سره په بدن باندې موجود اوبه صفا او اوچې كړې شي.[1] رومبى معنى علامه كرمانى رحمه الله علامه عينى رحمه الله اودويمه ابن فارس رحمه الله علامه كورانى رحمه الله اختيار كړې ده.[2]

**دَ ابن منظور افريقى رحمه الله رائې**: ابن منظورافريقى رحمه الله فرمائى «**المِنْدِيْلُ والمَنْدِيْلُ نادر والمِنْدَلُ** كله: **الذي يُمَسَّح به**» يعنى **مَنْدِيل، مِنْدِيل** او **مِنْدَل** درويواړه استعماليږى البته **مَنْدِيل** په فتح دَميم نادرالاستعمال دې. دَدې ټولو اطلاق دَ اوچولو ځيز (توليه) باندې كيږى.[3]

بعض حضرات وائى چه **مِنْدِيل** په وزن دَ **فِعْلِيْل** هم مستعمل دې اوداد مندل نه ماخوذ دې. علامه زكريا انصارى رحمه الله هم دا اختيار كړې دې.[4] هم دَدې نه **تندّل** او **تمندّل** هم راځى يعنى په دې تقدير باندې دا رباعى دې خو امام كسائى رحمه الله دَدې ماده اشتقاق انكار كړې دې. «**كذا قال أبو عبيد**»[5]

علامه ابن منظور افريقى رحمه الله اوعلامه جوهرى رحمه الله ليكلى دى چه «**تندّلتُ بالمِنْدِيل** او **تَمَنْدَلتُ أي تمسحت به أثر الوضوء أو الطهور**» دواړه شان مستعمل دې يعنى ما په رومال سره دَ اودس يادَ پاكوالى اوبه اوچې كړې.[6]

**فلم ينفض بها**: يعنى حضورپاك په دغه رومال سره خپل دَ اودس اندامونه اوچ نه كړل.

**د ينفض وضاحت**: نَفَضَ يَنفُضُ (نصر ينصر) نَفضاً، څنډل، اخوا كول ختمول او غورزولوته وائى. كپړې نچوړ كولوسره څنډل او ونه څوزولو سره ميوه اوپاڼې غورزولوته وئيلې شى. «**نَفَضْتُ الثَّوبَ والشجرَ وغيره أنفضه نَفْضاً: إذا حرّكته لينتفض**»[7] هم دَدې نه مِنفَض په معنى دَ مِنسَفَ (صافى اوجاړن) هم راځى.[8]

علامه عينى رحمه الله په حواله دَ جوهرى **النفض** په معنى **النشف** يعنى اوچول نقل كړى دى.[9] او علامه كرمانى رحمه الله په حواله دَ جوهرى **المِنفَض** په معنى **المِنشَف** توليه رومال يا كپړه كوم سره چه اوبه اوچې كړې شى په معنى كښې نقل كړې دې.[10]

---

[1] لسان العرب: ۹۳/۱٤ الصحاح ص: ۱۰۳۱ المنهاج: ۲۲۳/۳-۲۲۲.
[2] شرح الكرمانى: ۱۲۲/۳ عمدة القارى: ۳/۳۰۶ المنهاج: ۲۲٤/۳ الكوثر الجارى: ٤۱۶/۱.
[3] لسان العرب: ۹۳/۱٤.
[4] تحفته البارى: ۲۲٤/۱.
[5] لسان العرب: ۹۳/۱٤ الصحاح ص: ۱۰۳۱ عمدة القارى: ۳۰۶/۳ لسان العرب: ۱۹۳/۱۳.
[6] لسان العرب: ۹۳/۱٤ الصحاح ص: ۱۰۳۱.
[7] لسان العرب: ۲۳۹/۱٤ الصحاح ص: ۱۰۵۹.
[8] لسان العرب: ۲۳۹/۱٤ الصحاح ص: ۱۰۵۹.
[9] عمدة القارى: ۳۰۷/۳.

**فلم ينفض بها كښې ضمير مؤنث راوړلو وجه:** "فلم ينفض بها" كښې بها دَ مؤنث ضمير دَ دې دَپاره راوړلو چه منديل نه ((خرقة مخصوصة)) (يعنى رومال يا كپړې هغه ټکړه په کوم سره چه بدن اوچولې شي) مراد دې اوهغه مؤنث دې. [1] لکه څنګه چه دَعائشه رضى الله عنها روايت كښې دى: ((كان لرسول صلى الله عليه وسلم خرقة ينشف بها بعد الوضوء)) حضورپاك سره دَ كپړې يوه ټکړه وه په کوم سره چه حضورپاك دَ خپل دَ اودس اندامونه يا بدن اوچولو. [2]

دکريمه په روايت كښې دى چه ابوعبدالله يعنى امام بخارى رحمه الله فرمائى: ((يعنى لم يمتسح)) [4] فلم ينفض بها نه دَ راوى مراد دادې چه حضورپاك دَ رومال په ذريعه بدن اوچ نه کړو.

**په توليه وغيره سره دَ طهارت اندامونه نه اوچولو حكمت:** علامه قسطلانى رحمه الله ليکلى دى: ((لأنه أثر عبادة فكان تركه أولى)) [5] يعنى حضورپاك په رومال سره دَ اودس لوندوالې خکه اوچ نه کړو چه دا دَ عبادت اثر دې نودَې ترك کول اولى دى. دَشوافع نه ابوحامد يعنى امام غزالى رحمه الله هم دغه قول دې چه دادَ عبادت اثر دې دا به دَ اثر شهادت (وينې وغيره) په شان په ځانى ساتلې شى. [6]

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى ((وتركه صلى الله عليه وسلم للمنديل فإنه أراد إبقاء بركة الماء والتواضع)) [7] يعنى حضورپاك دَ اوبوبركت باقى ساتلو دَپاره اودَ تواضع په توګه منديل ترك کړو. امام ترمذى رحمه الله فرمائى: ((ومن كرهه إنما كرهه من قبل أنه قيل: إن الوضوء يوزن)) [8] چاهم چه دَ اودس نه پس رومال استعمالول ناخوښه کړه هغه ئى په دې وجه ناخوښه کړه چه دَاودس دَ اوبو (اعمال نامه كښې) وزن

---

[1] شرح الكرمانى: ۱۲۲/۳.

[2] فتح البارى: ٤٩٠/٢عمدة القارى: ٣٠٧/٣إرشاد السارى: ٣٩٧/١.

[3] الحديث رواه الترمذى فى سننه، أبواب الطهارة باب ماجاء فى المنديل بعد الوضوء رقم: ٣٥وقال: حديث عائشة ليس بالقائم، ولا يصح عن النبى صلى الله عليه وسلم فى هذا الباب شىء، وأبومعاذ يقولون هو "سليمان بن أرقم" وهو ضعيف عندأهل الحديث. انتهى ماقال. وقال محقق سنن الترمذى الشيخ أحمد محمدشاكر: إسناد المؤلف هذا فيه. سفيان بن وكيع بن ا لجراح، وهو فى نفسه ثقة صادق، إلا أن وراقه أفسد عليه حديثه، فأدخل عليه ماليس منه ونصح بتغيره فلم يقبل. فضعف حديثه باختلاط بما ليس منه، ولكن لم ينفرد برواية هذا الحديث فقد رواه الحاكم فى المستدرك: ١٥٤/١ من طريق محمدبن عبدالله عبدالحكم عن ابن الوهب ورواه البيهقى:١٨٥/١عن الحاكم وغيره من طريق ابن عبدالحكم وقد ضعف الترمذى هذا الحديث من أجل سليمان بن أرقم، فإنه ضعيف ولكن الترمذى لم يجزم بأن أبا معاذ هو سليمان بن أرقم بل قال: "يقولون"، والبيهقى تبع الترمذى فى ذلك غير أنه جزم بأنه سليمان" وأما الحاكم فقال: أبومعاذ هذا هوالفضيل بن مسيرة، بصرى، روى عنه يحيى بن سعيد وأثنى عليه، وأقره الذهبى على ذلك فلم يتعقبه فيه. وبذلك يكون إسناد الحديث صحيحاً. انتهى ماقال. (حاشية سنن الترمذى:١/٧٥).

[4] فتح البارى: ٤٩٠/٢إرشادالسارى:٣٩٧/١شرح الكرمانى:١٢٢/٣.

[5] إرشادالسارى:٤٩٧/١.

[6] شرح ابن العربى على سنن الترمذى: ٦٩/١.

[7] شرح ابن بطال : ٣٨٦/١.

[8] أبواب الطهارة باب ماجاء فى المنديل بعدالوضوء: ٧٧/١رقم: ٥٤.

كولې شي. ابن شهاب زهرى رحمه الله فرمائي: «أنما أكره المنديل بعد الوضوء لأن الوضوء يوزن» [1] يعنى زه دَ اودس نه پس رومال په دې وجه ناخوښه کوم څکه چه دَ اودس (اوبه) وزن کولې شي. امام ترمذى رحمه الله اوفرمائيل چه دَ سعيدبن مسيب نه هم دغه شان مروى دى. [2]

**دَ سعيدبن مسيب رحمه الله روايت:** ابن عساكر رحمه الله تاريخ دمشق کښې دَحضرت سعيد بن مسيب روايت خپل سندسره مرفوعًا هم نقل کړې دې چنانچه هغوى فرمائي: «أخبرنا على الصواب أبوالحسن الفرضى، نا عبدالعزيز بن أحمد، أنا أبو محمد بن أبى نصر، أنا على بن شعيب، أنا أبو عبدالملك أحمد بن إبراهيم القرشى، نا سليمان بن عبدالرحمن، نا ناشب بن عمرو الشيبانى الدمشقى، نا مقاتل بن حيان، عن سعيد بن المسيب عن أبى هريرة رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: "من توضأ فمسح بثوب نظيف فلا بأس به، ومن لم يفعل فهو أفضل، لأن الوضوء يوزن (وفى رواية: نور يوم القيامة مع سائر الأعمال)"». [3] يعنى چاچه اودس اوکړو او په پاکه کپړه باندې ئې هغه اوچ کړو نو په دې کښې هيڅ حرج نشته دې اوچاچه داسې اونه کړه نودا افضل دې څکه چه دَ قيامت په ورځ به نورو تولو اعمالوسره دَ اودس وزن کولې شي.

**تنبيه:** ليکن داخبره دې واضح وى چه دَ ابن عساكر رحمه الله دواړه مرفوع روايتونه ناشب بن عمرو شيبانى نه مروى دى او په ناشب بن عمرو باندې ائمه کلام کړې دې. چنانچه دارقطنى هغه ضعيف گرځولو سره فرمائيلى دى «ناشب ضعيف» [4] امام بخارى رحمه الله فرمائي «ناشب بن عمرو الشيبانى منكر الحديث» [5] غرض دَ ابن عساكر رحمه الله دَ رفع والا روايتونه دَناشب بن عمرو دَ وجې نه ضعف نه خالى نه دى.

**دَ ابن العربى رحمه الله رائې:** ابن العربى مالكى رحمه الله فرمائي چه په دوو وجوهاتو باندې دَ پاکئى اوبوته دَ عبادت اثر وئيل صحيح نه دى. اول وجه داده چه اودس پخپله عبادت دې دَ عبادت اثرنه دې. دويمه وجه داده چه اثر عبادت شهيد کښې غسل نه ساقط کوى هغې ته په يوه اندازه باندې بقاء حاصل ده. دَ شهيد غسل خو څکه ساقط کيږى چه كافرانو هغه په توره سره پاك کړې وى. نور فرمائي چه دَامام ترمذى رحمه الله دا وينا چه تمسح بالمنديل ناخوښه کولو وجه دَ اودس دَ اوبو وزن کيدل دى نودا يو ضعيف خبره ده څکه چه دَاودس دَ اوبو وزن کول دَهغې مسح نه منع کوى (هغه به بهرحال تللې شى که هغه په اندامونو باندې اوچې شوې وى يا په توليه کښې جذب شوې وى) [6]

**دَ بعض حضراتو توجيه:** بعض حضراتو ليکلى چه دَ عبادت دَ اثر وزن خو به په آخرت کښې وى دَهغه ځائى ميزان اوتله خودَدنيا دَ تلې په شان نه ده اونه هغه په دنياکښې محسوس کولې شي. بلکه هغه

---

[1] أبواب الطهارة باب ماجاء فى المنديل بعدالوضوء: ۷۷/۱ رقم: ۵۴.

[2] حواله سابق.

[3] تاريخ مدينة دمشق، [ذكر من اسمه] ناشب بن عمرو، أبو عمرو الشيبانى، الجزء الحادى والستون: ۳۸۰/۶۱ رقم الترجمة: ۷۸۱۲، جمع الجوامع، قسم الأقوال، حرف الميم: ۱۳۷/۷، رقم الحديث: ۲۱۷۱۲ كنزالعمال كتاب الطهارة قسم الأقوال، آداب متفرقة من الإكمال: ۱۳۰/۹ رقم الحديث: ۲۶۳۴.

[4] سنن الدارقطنى مع التعليق المغنى باب وجوب وضع الجبهة والأنف: ۳۴۸/۱ المغنى فى الضعفاء: ۴۴۹/۲ تراجم رجال الدارقطنى فى سننه الذين لم يترجم لهم فى التقريب ولا فى رجال الحاكم: ۴۵۹/۱ رقم الترجمة: ۱۱۹۰.

[5] ميزان الاعتدال: ۲۳۹/۴ رقم الترجمة: ۸۹۸۶ لسان الميزان: ۱۵۸/۷ رقم الترجمة: ۸۸/۴.

[6] شرح ابن العربى على سنن الترمذى: ۷۰/۱.

خوَ هغه امور غيبيه نه دي لکه چه خودلي شوي دي. هسې په هغې باندې ايمان راوړل ضروري دي يعنی دا يقين ضروري دې چه وزن به کيږي.[1]

**دَعلامه کرماني وغيره توجيه:** علامه کرماني رحمه الله وغيره امام تيمي نه نقل کړي دي: «في الحديث دليل على أنه صلى الله عليه وسلم كان ينشفه ولولا ذلك لم يأته بالمنديل، وإنما رده لأنه يمكن أنه كان وسخاً أو نحوه» دَ امام بخاري رحمه الله حديث باب په دې خبره باندې دلالت کوي چه حضورپاك به دَ بدن اندامونه اوچول. که چرې داسې نه وې نو دَ حضورپاك په خدمت کښې به منديل نه شو پيش کولې. باقي پاتې شوه خبره دَ رد کولو نو ممکن دی چه حضورپاك دَمنديل په خيرنوالي يا بل څه وجه سره رد کړې وي.[2] قسطلاني رحمه الله هم دغه توجيه دَ ابن التين رحمه الله نه هم نقل کړې ده.[3]

**دَحضورپاک منديل رد کول:** مسلم شريف کښې دَحضرت ميمونه رضي الله عنها په روايت کښې دي: «ثم أتيته بالمنديل فرده»[4] بيا ما دَحضورپاك په خدمت کښې منديل پيش کړو نو هغوی صلى الله عليه وسلم رد کړو.

**دَمنديل ردکولووجه:** شراح حديث دَدې مختلف وجوهات بيان کړي دي. قاضي عياض رحمه الله او علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله ليکلي دي چه حضورپاك صلى الله عليه وسلم منديل ځکه رد کړو چه ترك کول ئې افضل دي (قاله العثماني) ياداچه حضورپاك ته دَ مونځ تادی وه يائې تواضعاً ترك کړو يا مترفين (دَعيش پرست خلقو) په مخالفت کښې ردکړو. يا داچه دَ ګرمئ وخت وو او دَ اوبو لوندوالي پکار وو يا دَ اوبو برکت باقي ساتلو دَپاره ئې ردکړو. يا په هغه کپړه باندې حرير (ريښم) وغيره ليکيدلي وو يا دَدې ويرې نه ردکړه چه چرته عادت نه شي.[5]

**دَبعض حضراتوقول:** بعض حضراتو ليکلي دي چه ترك تنشيف هغه وخت افضل دې کله چه دَ يخنئ کيدو يا نجاست سره دَ لګيدو ويره نه وي ګني دَدې پريخودل به مسنون نه وي. اذرعي وئيلي دي چه کله دَاودس کولونه پس په داسې ځائې تيريدل کيږي چرته چه دَ هوا لګيدلو دَ وجې نه په نجاست سره دَ ګنده کيدو ويره وي يا دَ اوبو يخوالي ډير محسوس کيږي يا دَ بيمارئ زياتيدو ويره وي يا دَ زخم خرابيدو ويره وي وغيره نو بيا به تنشيف سنت اومتأکد شي.[6]

**دَحافظ عبدالغني مقدسي رحمه الله عجيبه معمول:** په علماء سلف کښې عبادت پرهيزګاري سنن او مستحبات اوآدابو رعايت به ئې ښه په اهتمام سره کولو.هم په دغه علماء سلف کښې حافظ عبدالغني بن عبدالواحد مقدسي حنبلي رحمه الله به دَتهجدو ډير اهتمام کولو. دَ شپې په آخري حصې کښې چه کله هوايخه شي او په موسم کښې يخوالي پيداشي نودَهغوی معمول ووچه هغوی به دَ تهجدو هر دوه رکعته په تازه اودس سره کول. هره شپه به ئې تقريباً اووه ځل يا اته ځل تازه اودس کولو اوفرمائيل به ئې چه ماته ترهغه وخته پورې په مانځه کښې خوند نه راځي ترکومې چه اندامونه دَ اودس لمده نه وي. چنانچه علامه ابوالفرج عبدالرحمن بن شهاب الدين بغدادي حنبلي رحمه الله او علامه شمس الدين

---

[1] إكمال إكمال المعلم: ٧٧/١حاشية الترمذي للشيخ أحمدمحمد شاكر: ٧٧/١.
[2] شرح الكرماني: ١٢٢/٣فتح الملهم: ٧٦/٣.
[3] إرشادالساري: ٤٩٧.
[4] كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة رقم: ٧٢٢.
[5] إكمال إكمال المعلم: ٩٢/٢فتح الملهم: ٧٦/٢البحر الرائق: ٩٧/١-٩٦.
[6] الموسوعة الفقهية: ٦٨/١٤.

ذهبى رحمه الله دَ ابوالحسن على بن ابراهيم بن نجا رحمه الله نه دَ حافظ عبدالغنى رحمه الله دا عمل دَهغوى دَ نورو معمولاتو سره نقل كړې دې. ابن نجا رحمه الله فرمائى حافظ عبدالغنى رحمه الله به بغيردَ فائدې خپل يو ساعت نه ضائع كولو. دَ سحر مونځ ادا كولوسره دَ قرآن كريم دور اوتلقين به ئې كولو. اكثر وختونوكښې به ئې دَ احاديثو تلقين هم كولو. راوى وائى چه مونږ ديرزيات احاديث دَهغوى دَ تلقين دَ وجې نه حفظ كړې وو. بيا به هغوى اودس كولو اودَ ماسپښين نه څه لږ وړاندې پورې فاتحه او معوذتين سره به ئې درې سوه ركعته نفل اداكول. بيابه ئې قيلوله كوله او بيداريدو سره به ئې دَ ماسپښين مونځ اداكولو او ترماښامه به دَ احاديثو اورولو يا ليكلوكښې مشغول وو. كه چرې روژه به ئې وه نو(دَ ماښام نه پس) به ئې افطارى كولو اوكه چرې روژه به نه وو نوبيابه ئې دَماښام نه واخله تر ماسخوتن پورې په نوافل كښې مشغول اوسيدو. دَماسخوتن مونځ كولونه پس تر نيمې شپې پورې يا دَهغې نه پس به اوده كيدو. بيا به بيدار شو اودس به ئې اوكړو اودَڅه وخته پورې به ئې دَ تهجدو مونځ كولو. بيابه ئې تازه اودس كولو او په تواضع او انكسارئى سره مونځ كولو. دَ سحر نه دَ لږشان وخت نه وړاندې پورې به دَهغوى دغه معمول وو. دَ شپې په تهجدو كښې اوه يا اته (يادَ دې نه زيات) ځل تازه اودس كولو اوفرمائيل به ئې ((ما تطيب لى الصلاة إلا ما دامت أعضائى رطبة)). يعنى ماته ترهغه وخته پورې په مونځ كښې خوند نه حاصليږى تركومې چه زما اندامونه دَ اودس په اوبو سره لامده نه وى.دې نه پس به ئې دَ سحردَ مانځه پورې لږشان آرام كولو. دادَهغوى رحمه الله عام معمول وو.([1]) دَتحديد بالنعمت په توګه ښايم چه تركومې پورې صحت وو "الماء يوزن" دَ وجې نه مونږ هم مخ لاس نه اوچولو ليكن اوس ضعف دې اوبه نه شې برداشت كيدې په دې وجه په تنشيف باندې عمل دې.

**تنشيف بعدالغسل باره كښې دَ فقهاؤ مذهب:** تنشيف بعدالغسل باره كښې دَ حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم اوفقهاء كرامو اختلاف دې او مختلف اقوال روايت شوى دى. تنشيف په اودس او غسل دواړو كښې مباح دې. دادَ حضرت انس بن مالك رضي الله عنه او سفيان ثورى رحمه الله قول دى.([2])

ابن منذر رحمه الله هم دغه قول دَحضرت عثمان بن عفان، حسين بن على رضي الله عنهم او بشر بن ابى مسعود، حسن بصرى، ابن سيرين، علقمه، مسروق، ضحاك او اسحاق رحمهم الله نه هم نقل كړى دى.([3])

تنشيف په دواړو كښې مكروه دې. دادَ ابن عمر، ابن ابى ليلى، سعيدبن المسيب، ابراهيم نخعى، مجاهد او ابوالعاليه رحمهم الله قول دې.([4])

حسن بن صالح او عبدالرحمن بن مهدى رحمهما الله نه هم كراهت نقل دې.([5]) ابن عباس رضي الله عنهما نه په اودس كښې كراهت او غسل كښې عدم كراهت نقل دې.([6]) حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دَ تنشيف نه منع كړې ده.([1])

---

[1]) كتاب الذيل على طبقات الحنابلة لأبى الفرج عبدالرحمن الحنبلى: ١٢/٢تاريخ الإسلام تحت ترجمة عبدالغنى بن عبدالواحد بن على: ٥٣٩/١٢رقم الترجمة: ٢٢٧٩٧سيرأعلام النبلاء تحت ترجمة عبدالغنى: ٤٥٣/٢-٤٥٢ رقم الترجمة: ٢٣٥ تذكرة الحفاظ تحت ترجمة عبدالغنى: ١٣٧٦/٤ط: ١٧رقم الترجمة: ١١١٢.

[2]) شرح النووى: ٢٢٢/٣.

[3]) الموسوعة الفقهية: ٦٦/١٤المغنى لابن قدامة: ٩٥/١ فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ١٨٣/١المجموع: ٤٦٢/١.

[4]) شرح النووى: ٢٢٢/٣الموسوعة الفقهية: ٦٧/١٤

[5]) فتح البارى لابن رجب :١٨٣/١المغنى لابن قدامة: ٩٥/١.

[6]) شرح النووى: ٢٢٢/٣فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ١٨٣/١ الموسوعة الفقهية: ٦٦/١٤المجموع: ٤٦٢/١.

**تنشیف سره متعلق دَ شوافع پنځه اقوال:** امام نووي رحمه الله شرح مسلم کښې دَحضرت میمونه رضي الله عنها روایت «ثم أتیته بمندیل فرده» په ذیل کښې تنشیف بعدالغسل باره کښې فرمائي چه په دې باره کښې زمونږ اصحاب شوافع کښې اختلاف دې اودَوی نه پنځه اقوال نقل دی. ① دَ مشهور قول مطابق ترک تنشیف مستحب دې البته تنشیف ته مکروه نه وائي. ② تنشیف مکروه دې. ③ تنشیف مباح دې یعنې کول اونه کول دواړه برابردی. هم دا مونږ (شوافع) اختیارکړی دی ځکه چه منع دَتنشیف یا داستحباب قول دَ واضح دلیل محتاج دې. ④ تنشیف مستحب دې ځکه چه داد اوساخ نه دَ بچ کیدو سبب دې. ⑤ په ګرمئ کښې تنشیف مکروه دې او یخنئ کښې مباح دې.([2])

**دَ شوافع په نیز راجح قول:** لیکن امام نووي رحمه الله المجموع کښې ړومبی قول ته ترجیح ورکولوسره لیکی چه جمهور اهل عراق قاضي حسین وغیره هم دا حتمي ګرځولی دی. او امام الحرمین داَئمه نه هم دا نقل کړی دی. خودَاقوالو په ترجیح باندې اختیار لرونکو متاخرینونه امام رافعي وغیره دې ته ترجیح ورکړې ده. اودَ دریم قول باره کښې فرمائي چه دا دَ ابوعلي طبري او قاضي ابوالطیب قول دې.([3]) امام نووي رحمه الله نور لیکي چه محاملي دَ عدم حرمت په تنشیف باندې اجماع نقل کړې ده البته خلاف په کراهت کښې دې.([4])

**دَ حنابله اقوال:** دَامام احمدبن حنبل رحمه الله نه په دې باره کښې دوه اقوال نقل دی. ① دَ غسل اندامونه اوچولو کښې هیڅ حرج نشته یعنې مباح دی. ② مکروه دی.

خلال دَ کراهت والا روایت نه انکارکړې دې. ابن قدامه رحمه الله لیکلي دي چه ړومبې قول یعنې تنشیف مباح کیدل اصح دی ځکه چه اصل اباحت دې. دَحضرت میمونه رضي الله عنها په روایت کښې دَ حضورپاک ترک مندیل په کراهت باندې دلالت نه کوی ځکه چه حضورپاک به کله مباح کارونه ترک کول لکه چه کله به ئې مباح کارکولو.([5])

**دَ حنابله په نیز راجح قول:** علامه ابوالحسن مرداوي رحمه الله «الإنصاف في معرفة الراجح من الخلاف على مذهب الإمام المبجل أحمد بن حنبل» کښې دَ تنشیف مباح کیدلو باره کښې «الرعایة الکبری» په حواله سره «هوالمذهب» او «هي أصح» نقل کړې دې خو «تجرید العنایة» نه دَدې قول اظهر کیدل نقل کولو نه پس فرمائي چه صاحب دَ تجرید دَدې شارح ابن عبیدان اوصاحبِ مجمع البحرین دا صحیح ګرځولې دې او "الوجیز" "المنور" "المنتخب" کښې او ابن رزین وغیره هم دَدې جزم کړې دې.([6])

**دَ مالکیه مذهب:** علامه عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله المدونة الکبری کښې دَ امام مالک رحمه الله دَتنشیف اباحت نقل کړې دې. ابن عبدالبر رحمه الله علامه دردیر مالکي رحمه الله اوعلامه دسوقي مالکي رحمه الله وغیره دَ امام مالک رحمه الله هم دَ اباحت مذهب نقل کړې دې.([7])

---

[1]) المغني لابن قدامة: ۱/۹۵الموسوعة الفقهیة: ۱٤/٦۸.
[2]) شرح النووي: ۳/۲۲۲.
[3]) المجموع شرح المهذب: ۱/٤٦۲-٤٦۱.
[4]) المجموع: ۱/٤٦۲.
[5]) المغني لابن قدامة: ۱/۹۵فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۱/۱۸۳الموسوعة الفقهیة: ۱٤/٦٦المجموع: ۱/٤٦۲.
[6]) الإنصاف: ۱/۱٦٦.
[7]) المدونة الکبری: ۱/۱۷فتح المسالک: ۱/٤۲۱حاشیة الدسوقي: ۱/۱۷۳الموسوعة الفقهیة: ۱٤/٦٦

**تنشيف بعدالغسل باره کښې دَ احنافو اقوال:** تنشيف بعد الغسل باره کښې حنفيه نه څلور اقوال نقل دي: ① استحباب ② اباحت ③ کراهت ④ دَ اودس نه پس مکروه او دَغسل نه پس جائز.

**استحباب تنشيف:** چنانچه صاحب دَ منيه ليکلي دي چه دَغسل نه پس بدن په توليه سره اوچول مستحب دي. دَ منيه شرح حلبيي کبيري کښې دي (استحباب تنشيف) دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها دَ روايت په بنياد باندې دي په کوم کښې چه هغوي اوفرمائيل چه نبي کريم ﷺ سره دَ کپړې يوه ټکړه وه په کومې سره چه به حضورپاك دَ اودس نه پس تنشيف کولو. روايت کړې دې دا ترمذي رحمه الله اودا ضعيف دې خو په فضائل کښې په ضعيف حديث باندې عمل کول جائزدي.[1]

علامه خليل احمدسهارنپوري رحمه الله بذل کښې هم دا اختيار کړې دی او ليکلي دي چه دَتعدد طرق دَ وجې نه دَ ترمذي روايت ته قوت حاصل دې.[2] شيخ الحديث مولاتازکريا رحمه الله هم دَ صاحب بذل په حواله سره هم دَاستحباب قول نقل کړې دې.[3]

**اباحت تنشيف:** صاحب فتاویٰ تاتار خانيه ليکلي دي چه دَمتوضي اومغتسل دَپاره دَ بدن په توليه سره اوچولوکښې هيڅ حرج نشته دې يعنی مباح دی. بعضو دا مکروه ګڼړلي دی اوبعض صرف دَادَ متوضي دَپاره مکروه ګڼړی نه چه دَ مغتسل دَپاره. صحيح خبره هم دغه ده کومه چه مونږ کړې ده (يعنی اباحت) ليکن مناسب دادی چه په تنشيف کښې مبالغه او استقصیٰ اونه کړی دې دَپاره چه دَ اودس اثر په اندامونو باندې پاتې شي.[4]

صاحب درمختار علامه حصکفي رحمه الله دا په آدابوکښې شميرکړی دی اوعلامه شامي رحمه الله په دې باندې دَ صاحب منيه دَ استحباب والاقول نقل کولوسره ليکلي دی چه په حليه کښې دي چه صاحب دَ منيه نه علاوه چاهم دَ استحباب قول نه دې ذکر کړې. دې نه پس نې دَ تاتارخانيه والا قول نقل کولوسره خزانة الاکمل اوخلاصه په حواله سره دَتنشيف باره کښې "لابأس" يعنی اباحت نقل کړې دی.[5] صاحب بحرابن نجيم رحمه الله دَ سراج الدرايه په حواله سره "لابأس" يعنی اباحت نقل کولونه پس ليکلي دی چه صاحب دَ منيه نه علاوه چاهم دَاستحباب صراحت نه دې کړې.[6] علامه عثماني رحمه الله فتح الملهم کښې دَمختلف اقوال نقل کولونه پس په آخره کښې صاحب بحر پورتنې ذکر کړې شوې قول نقل کړې دې.[7] صاحب دَ سعايه علامه لکهنوي رحمه الله هم دَ صاحب بحروالاقول نقل کړې دې.[8] علامه کشميري رحمه الله فيض الباري کښې تنشيف عدم سنت کيدل نقل کړی دی او العرف الشذي کښې دَهغوي نه دَ اباحت تنشيف معتمدعليه کيدل نقل دی.[9]

---

[1] الحلبي الكبيري: ص: ٤٥.

[2] بذل المجهود: ٢٦٦/٢.

[3] الكنزالمتواري: ٢٠٣/٣.

[4] الفتاوی التاتارخانية: ٢٢٩/١.

[5] ردالمحتار مع الدرالمختار: ٩٧/١.

[6] البحرالرائق: ٩٧/١.

[7] فتح الملهم: ٧٦/٣.

[8] السعاية: ٢٩٩/١.

[9] فيض الباري: ٤٥٦/١العرف الشذي: ٩٧/١.

**دَتنیشف اباحت معتمدعلیه دی:** علامه یوسف بنوری رحمه الله دَاباحت قول معتمد علیه گرځولې دې.([1])

علامه عینی رحمه الله باب الوضوء قبل الغسل په ذیل کښې دَ حضرت میمونه رضی الله عنها دَ روایت په حواله سره دَ تنشیف کراهت نقل کولونه پس بیا په جواز او اباحت تنشیف باندې دلالت کونکې متعدد (ضعیف) روایاتو استقصیٰ کړې ده دکوم نه چه تنشیف بعد الغسل اباحت معلومیږي.([2])
**دحضرت گنگوهی رحمه الله رائې:** مولانا یحییٰ کاندهلوی رحمه الله دَحضرت علامه گنگوهی رحمه الله نه الکوکب الدري کښې نقل کړی دي چه زمونږ په نیز دکلام خلاصه داده چه دَ حضورپاك په تولیه سره دَ بدن اوچول دَ جواز دَ بیانولو دَ پاره وو که هغه په جدا کپړه سره وو یا په هغې سره کومه چه حضورپاك اغوستې وه.([3])
**په استحباب اومکروه تنزیهی کښې فرق:** بیا دلته حضرت گنگوهی رحمه الله دلته دَ یواهم امر وضاحت کړې دې چه دَ حضورپاك کوم یوعمل ته دَ مستحب درجه ورکول پکاردی او کوم یو ته دَمکروه تنزیهی دکوم ترك کول چه اولیٰ دی، چنانچه هغوی فرمائی:
((والتقصي عنه بأنّ الذي فعله النبي صلی الله علیه وسلم مرة أومرتين، إما أن يكون بعد العلم بكونه محظوراً، أوفعله لئلا يعد محظوراً، فهو على ترك الأولى وبيان الجواز، وإما أن يكون فعله تحصيلاً للمثوبة والحُسني، وإنما تركه شفقة على الأمة وخوفاً من أن تتأكد السنية، أوتصل إلى حد الوجوب فيتشققوا، فهو مستحب، فترك الفعل ههنا مع رغبته إليه بخلاف الأول، فإن الترك ثمة مرغوب فيه والفعل لعارض البيان، وهذا التميز موقوف على استقراء تام وتصفح وافر))
یعنی چه کوم فعل دَ حضورپاك نه یو ځل یا دوه ځل صادر شوې وی اودَهغې کول دَ هغه فعل دَ محظور کیدودَ علم نه پس شوې وی یا په دې غرض حضورپاك هغه کار کړې وی چه خلق هغه شرعاً محظور اونه گڼړی نودَ حضور پاك دا فعل به جواز دَ بیانولودَپاره وی دَ کوم ترك کول چه اولیٰ دی اوکه چرې هغه کار حضورپاك دَ ثواب دَ حاصلولودَپاره کړې دې اوبیا حضورپاك علیه السلام هغه کار دَدې ویرې نه ترك کړې دې چه هسې نه امت په مشقت او تکلیف کښې پرینوځی. یائی په دې ویره ترك کړو چه دحضورپاك په بار بار کولو سره هغه کار سنت مؤکده یا دَ وجوب حد ته اونه رسی په کوم سره چه امت په مشقت کښې اخته شې نودَ حضورپاك دا عمل به مستحب وی. ځکه چه دلته ترك دَ فعل مرغوب وو اوعمل خو صرف دَ جواز دَ بیانولودَپاره وو. په دې دواړو قسمونوکښې فرق استقراء تام او تصفح وافر باندې موقوف دې.
**دَ حنفیه په نیز راجح قول:** دَ کلام خلاصه داده چه دَ حنفیه په نیز تنشیف مباح دې. استحباب صرف دَ صاحب منیه قول دې لکه چه ابن نجیم رحمه الله وغیره په حواله سره معلوم شو. علامه شامی رحمه الله ((کتاب الحظر والإباحة فصل في اللبس)) کښې لیکلی دی چه متاخرینو دَتعامل مسلمین دَ وجې نه تنشیف بعدالوضوء غیر مکروه گرځولې دې([4])علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه دَ تنشیف بعد الغسل باره کښې دواړه قسم روایات دی. کله دَعدم ضرورت دَ اظهاردَپاره نه استعمالول او انکار هم

---

[1]) معارف السنن: ۱/۲۰۳.
[2]) عمدة القاری:۳/۲۸۹-۲۸۸.
[3]) الکوکب الدری: ۱/۷۶.
[4]) حاشیة ابن عابدین: ۵/۲۵۲.

دَ نبی کریم ﷺ نه ثابت دي اوکله دَ بيان جوازدَپاره دَ حضورپاك نه استعمال هم ثابت دې. چنانچه دې ته چا دَ تمندل متعلق مستحب وئيلی، چامکروه.محقق قول دادې چه نه مستحب دی نه مکروه مباح دی دَ کولو اونه کولو دواړو اختيار دې [1]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحديث ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې چه په ترجمه کښې دَمضمضه او استنشاق تذکره ده او په حديث کښې «ثم تمضمض واستنشق» نه دَدې ثبوت کيږی. [2]

**دَ حديث نه مستنبط شوی امور:** دَ حديث باب نه دا لاندې ذکر شوی امور مستنبط کيږی:

① په غسل جنابت کښې دَ مضمضه او استنشاق تاکيد. **(كما مر تحت ترجمة الباب)**

② دَ ښځې دَ خاوندَپاره دَ غسل اوبه کيخودل اودَ ښځې نه خدمت اخستل **(كما علم من قوله: صبت للنبی صلی الله عليه وسلم غسلاً)** [3]

③ دَغسل نه پس دَ غسل اندامونه توليه وغيره سره نه اوچول **(دل عليه قوله: "فلم ينفض بها")**.

④ دَ تنشيف بعدالغسل جواز او اباحت **(كما مر تحت مذاهب الفقهاء)**

⑤ په فعل باندې دَ قول اطلاق کول **(كما أطلق فی قوله: "ثم قال بيده الأرض")**. دَدې نه علاوه نور مستنبط شوی امور دَ سابقه ابواب په ذيل کښې تير شوی دی. والله أعلم بالصواب.

## ۸- باب: مَسْحِ الْيَدِ بِالتُّرَابِ لِيَكُوْنَ أَنْقَى

### (دَ غسل جنابت نه وړاندې) په خاوره باندې لاس مږل دې دپاره چه ښه صفا شی

**دَترجمة الباب مقصد:** علامه عينی رحمه الله ليکلی دی چه دَامام بخاری رحمه الله غرض دَ دې ترجمه نه دَ غسل جنابت کونکی دَ استنجاء نه پس په خاوره پورې لاس مږلوسره دَ ښه صفا کولو دَ حکم بيان کول دی. [4] علامه ادريس کاندهلوی رحمه الله په الأبواب والتراجم کښې ليکی چه دَ استنجاء نه پس لاس په خاوره پورې مږل دې دپاره چه ښه صفا شي دا مستحب امر دې. [5]

**دَحضرت گنگوهی رحمه الله تحقيق انيق:** دَجنابت غسل کونکې دَ غسل نه وړاندې چه استنجاء کوی اودَ اودس نه فارغ شی نودَهغه دَ لاس نه تريخه وخته پورې بدبوئی راځی. دا چه دَ سړی په لاس باندې کومه بدبوئی پاتې کيږی په دې کښې اختلاف دې چه دا بدبوئی څه څيز دې؟ اودَدې حقيقت څه دې؟ آيا په دې سره لاس پاکيږی که نه؟

چنانچه حضرت سهارنپوری رحمه الله دَحضرت مولانا يحيیٰ کاندهلوی رحمه الله په واسطه سره دَ حضرت رشيد احمد گنگوهی رحمه الله نه نقل کړی دی چه فقهاء حنفيه كثرالله تعالى جمعهم وشكر سعيهم اقوال

[1] فضل الباری: ۲/۴۳۴.

[2] عمدة القاری: ۲۸۸/۳.

[3] عمدة القاری: ۳۰۶/۳.

[4] عمدة القاری: ۳۰۷/۳.

[5] الأبواب والتراجم ص: ۲۶۲.

مختلف دی. بعض حضرات وائی که دَ نجاست ظاهری آثار ختم شوی وی نو لاس به پاك وی سره دَدې چه دَ دې بدبوئی باقی پاتې وی. خو بعض نور حضرات وائی چه ترهغه وخته پورې به پاکوالې نه حاصلیږی ترکومې چه دَ دغه نجاست اثر مکمل ختم نه شی سوا دَهغه معمولی بوئی چه دَهغې ختمیدل گران دی.(١)

په دې مسئله کښې دَ فقهاؤ اختلاف دَ دغه بدبوئی په حقیقت کښې په اختلاف باندې مبنی دې چه آیا دا بدبوئی دَهغه نجاست دَ اجزاء صغار ده دَ کوم پیژندګلو چه دَهغې دَ کموالی دَ وجې نه نه کیږی یا دَهغه هوا دَ وجې نه ده چه دَ هغه نجاست سره لګیدلې راغلې ده.؟

چنانچه بعض حضراتو وئیلی چه دا اجزاء لطیفه غیر مرئیه دی لهذا لاس په خاوره سره وینځل ضروری دی ځکه چه دا ازاله دَ نجاست دَ قبیل نه دې اودَدې ختمول ضروری دی. خو بیا ډله دا وائی چه دا بدبوئی هغه هوا ده چه لاس پورې دَ اوبو اودَ نجاست دَ اتصال په وخت لګیدلې وه اودَ نجاست په اتصال سره مکیف بکیفیة النجاسة شو نوهغه هوا اوبه جوړیدو سره لاس پورې اولګیده. هم دغه وجه ده چه دَ لاس په اوچیدو سره هغه بدبوئی ځی. لهذا دَدې حضراتو په نیز دَدې ازاله ضروری نه ده لاس بغیردَ ازاله هم پاك دې. باقی ترکومې چه خبره دَ اجزاء صغیره لطیفه غیر مرئیه ده نو شریعت دَدې هیڅ اعتبار نه دې کړې دَدې وجود هم دَ عدم په حکم کښې دې لکه چه دَ یو لوند پرتوګ والاهوا خارج شی یا دَ ګندګئی دَ ځائی نه ککړه کیدو سره راتلونکې هوا سره په اتفاق لمدې کپړې نه پلیتیږی. که فرض کړه دَ دغه اجزاء لطیفه غیر مرئیه په شریعت کښې څه اعتبار وې نو په لازمی توګه به هغه لمدې کپړې پلیتیدې (حالانکه دَ دې هیڅوك هم قائل نه دی) باقی پاتې شوه دَ هوا دَ خارج کیدو سره انتقاض طهارت نوهغه دَ پلیتئی اجزاء ته متضمن کیدو دَ وجې نه نه بلکه دَ تصریح نص دَ وجې نه دی.(٢)

**دَ شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله دَحضرت ګنګوهی رحمه الله دغه مذکوره تحقیق نقل کولونه پس لیکی چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمه سره په مذکوره اختلاف باندې تنبیه فرمائی اودې خبرې له ئې ترجیح ورکړې ده چه دَ حضور پاك په خاوره باندې دَ لاس مږلو غرض تطهیر نه دې بلکه په غرض دَ تنظیف (صفائی) وو لکه چه په ترجمه کښې لفظ أنقى دلالت کوي. لهذا امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې لفظ أنقى راوړلو سره دَهغه خلقو تائید کوی دَ چا په نیز چه دَ دغه بدبوئی ازاله واجب نه ده بلکه صرف اولی ده.(٣)

**په خاوره پورې لاس مږل مورث فقر نه دې:** بعض علماؤ لیکلی دی چه په عوامو کښې مشهوره ده چه په خاوره باندې لاس مږل مورث فقر دې ممکن ده چه امام بخاری رحمه الله په دې خبره سره دَ هغه خلقو

---

(١) قال العلامة الحصكفي: "ويشترط إزالة الرائحة عنها وعن المخرج" ونقل العلامه الشامي: "وقال بعضهم: لا يشترط بل يستعمل حتى يغلب على ظنه أنه قد طهر" (الدرالمختار مع ردالمحتار كتاب الطهارة باب الأنجاس، مطلب في الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء: ٢٥٣/١).

(٢) بذل المجهود: ٣١٢/١-٣١١الكنزالمتوارى: ٢٠٤/٣-٢٠٣الأبواب والتراجم ص:٦١تقرير بخارى: ٨٣/١سراج القارى: ١٩٩/٢.

(٣) الأبواب والتراجم ص: ٦١الكنزالمتوارى: ٢٠٤/٣تقرير بخارى: ٨٣/١سراج القارى:١٩٩/٢.

تردید فرمائی چه دا یوه بې اصل خبره ده ځکه چه په حدیث کښې دَ حضورپاك په خاوره باندې لاس مږل ثابت دی. (۱)

**په خاوره باندې دَ لاس مږلو کښې هندوانو سره دَ تشبه هيڅ اعتبارنشته:** دَ مولانا محمدحسن مکی رحمه الله په تقریرکښې دی چه «بعض خلقو ونیلی» خاورو سره لاس مږل خو ثابت دی لیکن په دې زمانه کښې هندوانوسره دَمشابهت دَ وجې نه ترك اولی دې. حضرت گنگوهی رحمه الله اوفرمائیل چه ددې تشبیه هيڅ اعتبارنشته «لهذا دَدې کول به اولی وی». (۲)

**امام بخاری رحمه الله دغه مذکوره ترجمه ولې قائم کړه؟** ترجمه مسح الید بالتراب خودَ باب سابق حدیث میمونه رضی الله عنها نه معلومه شوې وه. هم دغه وجه ده چه علامه بطال رحمه الله «**باب المضمضة والاستنشاق من الجنابة**» کښې دَحضرت میمونه رضی الله عنها روایت نقل کولونه پس لیکلی دی «**وترجم له (أي: الإمام البخاري): باب مسح اليد بالتراب ليكون أنقى**» اودوباره دَ دې باب عنوان لګولوسره ئې دَدې وضاحت اونه کړو بلکه صرف "**ترجم له**" په جمله باندې ئې اکتفاء اوکړه. (۳)خودا ترجمه دَ سابقه باب دَ حدیث نه معلومه شوه نوبیا دَدې تکرار څه فائده؟

**دَ علامه کرمانی رحمه الله وغیره جواب:** علامه کرمانی، علامه قسطلانی او شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمهم الله فرمائی چه دَامام بخاری رحمه الله غرض دَدې امورو یعنی تکرار ابواب حدیث نه دَ شیوخ او استخراج او استنباط کښې دَ اختلاف طرف ته اشاره کول دی. مثلاً دَامام بخاری رحمه الله شیخ عمر بن حفص رحمه الله حدیث میمونه رضی الله عنها په غسل جنابت کښې دَ مضمضه اواستنشاق په ذیل کښې روایت کړې دې. خودَامام بخاری رحمه الله دویم شیخ محدث حمیدی رحمه الله هم دغه حدیث میمونه رضی الله عنها دَمسح الید بالتراب لاندې ذکرکړې دې. چنانچه امام بخاری رحمه الله په تکرار ترجمه سره دَدوارو روایاتو جدا جدا سیاق او دَ شیوخ جدا جدا استنباط طرف ته هم اشاره اوکړه او دوارو روایتونوته ئې په یو بل سره تقویت اوتائیدهم حاصل کړو. (۴)

**دَعلامه عینی رحمه الله جواب:** علامه عینی رحمه الله دَعلامه کرمانی رحمه الله مذکوره جواب نقل کولونه پس لیکی چه دلته دَدې یوه بله فائده هم ده چه په رومبی باب کښې «**دلك اليد على التراب**» لاس په خاوره باندې وهلو او مږلو ذکر وو او په دې باب کښې «**دلك اليد على الحائط**» دَ لاس په دیوال باندې دَمږلو بیان دې او په دې دوارو کښې فرق دې. (۵)

**دَعلامه کورانی رحمه الله توجیه اوپه علامه کرمانی وغیره باندې رد:** دَعلامه کورانی رحمه الله دَعلامه کرمانی رحمه الله وغیره توجیه نقل کولوسره په هغې باندې رد کولوسره فرمائی: «**هذا كلامه وليس بشيء**» یعنی دَدې خلقو دَ دې توجیه هيڅ حیثیت نشته ځکه چه امام بخاری رحمه الله حدیث «**إنما الأعمال بالنيات**» په خپل

---

(۱) حاشية البذل: ۳۱۱/۱ الدر المنضود: ۱۵۰/۱.

(۲) الكنز المتوارى: ۲۰۳/۳ الأبواب والتراجم ص: ۶۱

(۳) شرح ابن بطال: ۳۸۶/۱.

(۴) شرح الكرماني: ۳/ ۱۲۴-۱۲۳ إرشاد السارى: ۴۹۸/۱ تحفة البارى: ۲۲۴/۱.

(۵) عمدة القارى: ۳۰۷/۳.

صحيح کښې په اووه مختلف مقاماتو کښې نقل کړې دې.(١) دَدې باره کښې خودا توجيه ممکن نه ده چه دا اووئيلې شي چه امام بخاري رحمه الله داحديث په اووه مختلف ابواب کښې دَ شيوخ په اختلاف استخراج او استنباط طرف ته اشاره کولودَ پاره ذکر کړې دی. بلکه پخپله دامام بخاري رحمه الله غرض استنباط احکام دی. په دې وجه تول ابواب ئې دَ څه نه څه حکم بيانولودَپاره قائم کړې دې او بيا په هغې دَ حديث نه استدلال کوی اودَ امام بخاري رحمه الله دا عادت دې چه هغه په ادنٰی مناسبت سره هم استدلال کوی.چنانچه دلته ئې دَ مسح اليد بالتراب باب قائم کړو اوهغه حديث ئې راوړلو په کوم کښې چه په ديوال باندې دَ لاس وهلو اومږلو ذکر دې اودَدې نه وړاندې مضمضه او استنشاق باب قائم کړو او په هغې کښې هغه حديث راوړو په کوم کښې چه په خاوره باندې دَ لاس وهلو صراحت دې او په دواړو روايتونوکښې فرق دادې چه په حديث باب کښې دَ اودس تذکره ده خوسابقه باب روايت ددې نه خالی دې.(٢)

## د ترجمة الباب د الفاظو وضاحت:

**مسح اليد**: يعنی دَ جنابت غسل کونکی په خاوره باندې لاس مږل.(٣)

**قوله:: ليكون:** دَ ابن عساکر او اصيلی په روايت کښې لتکون الفاظ دی.(٤) أي:اليد.(٥) يعنی دَ يد مؤنث کيدو دَ وجې نه ئې تکون راوړلې.

**قوله:: أنقى:** أنقى نقاوة نه ماخوذ دې دَ کوم معنى چه نظافت ده.(٦)

أنقى صيغه اسم تفضيل ده په عام طور باندې درې قسمه استعماليږی. اضافت ، من او لام سره. شراح حديث ليکلی دی چه دلته دا من سره مستعمل دې اوهغه محذوف دې. يعنی أنقى من غير الممسوحة، غير ممسوحه نه دَ وړاندې مقابله کښې زيات ښه او صفا شی.(٧)

**دَ لتکون والا روايت باندې اعتراض**: دابن عساکر او اصيلی په روايت کښې يکون په ځائی باندې تکون الفاظ راغلی دی نو په دې باندې دا اعتراض کيدې شی چه دَ دې په اسم اوخبر کښې مطابقت

---

(١) الحديث أخرجه البخاري في كتاب بدء الوحي، باب كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم..... رقم:١، وكتاب الإيمان باب ماجاء: أن الأعمال بالنية والحسبة رقم:٥٤ وكتاب العتق باب الخطاء والنسيان في العتاقة والطلاق ونحوه، ولا عتاقة إلا لوجه الله تعالى رقم: ٢٥٢٩وفي كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة رقم: ٣٨٩٨وفي كتاب النكاح باب من هاجر أو عمل خيراً لتزويج امرأة فله مانوى رقم: ٥٩٧وفي كتاب الأيمان والنذور باب النية في الأيمان رقم: ٦٦٨٩وفي كتاب الحيل باب في ترک الحيل وأن لكل امرئ مانوى في الأيمان وغيرها رقم: ٦٩٥٣

(٢) الكوثر الجاري: ١/٤١٨-٤١٧.

(٣) إرشادالساري: ١/٤٩٨عمدة القاري:٣/٣٠٧.

(٤) أرشادالساري: ١/٤٩٨.

(٥) شرح الكرماني: ٣/١٢٣.

(٦) لسان العرب: ١٤/٢٧٣.

(٧) شرح الكرماني: ٣/١٢٣عمدة القاري: ٣/٣٠٧إرشادالساري: ١/٤٩٨فتح الباري: ٢/٤٣٩١.

نشته. حالانکه په دې کښې مطابقت ضروری دې ځکه چه په تکون کښې هی ضمیر کوم چه لفظ ید طرف ته راجع دې هغه دَدې اسم دې او أنقى دَدې خبر دې او هغه مذکر دې.

**جواب:** دَدې اعتراض علامه کرمانی رحمه الله او علامه عینې رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه اسم تفضیل کله من سره راشی یعنی بغیرد الف لام واضافت وی نوددې په ټولو احوالوکښې مفرد مذکر راوړل ضروری دی.(۱) لهذا عدم مطابقت والاخبره غلطه ده.(۲)

**دَعلامه برماوی په علامه کرمانی اوعینی باندې نقد:** علامه برماوی رحمه الله دَعلامه کرمانی رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله دَ کلام په تعاقب کولوسره فرمائیلی چه که دَدې حضراتو په نیز دَ فعل ناقص اسم لفظ ید طرف ته راګرځیدونکې ضمیر یعنی هي دې نوبیابه دَدې حضراتو خبره صحیح وی خوظاهر دادی چه فعل ناقص (یکون) اسم دلته لفظ مسح طرف راګرځیدونکې ضمیر هو مذکر دې نو په دواړو کښې مطابقت موندلې شی.(۳)

لکه چه علامه برماوی رحمه الله دَ ابن عساکر او اصیلی نه علاوه دَ باقی حضراتو روایت ته ترجیح ورکړې ده په کوم کښې چه یکون راغلې دې. خو په بنیادی توګه دا اعتراض غلط دې ځکه چه اسم تفضیل کله من سره مستعمل وی نوبیا دهغې مفرد مذکر راوړل واجب او ضروری دی. کمامر.

## الحديث الأول

۲٦۰- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ الْحُمَيْدِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، فَغَسَلَ فَرْجَهُ بِيَدِهِ، ثُمَّ دَلَكَ بِهَا الْحَائِطَ، ثُمَّ غَسَلَهَا، ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ غَسَلَ رِجْلَيْهِ» [حديث باب ر: ۲۴۹](۴)

---

(۱) قال الشيخ مصطفى الغلايينى فى "جامع الدروس العربية": ۱۴۷/۱ تحت "أحوال إسم التفضيل" مانصه: "إذا تجرد (إسم تفضيل) من "أل، و "الإضافة" فلا بد من إفراده وتذكيره فى جميع الأحوال، وأن تتصل به، "من" الجارة جارة للمفضل عليه، تقول: خالد أفضل من سعيد، وفاطمة أفضل من سعاد، وهذان أفضل من هذا، وهاتان أفضل من هاتين، والمجاهدون أفضل من القاعدين والمتعلمات أفضل من الجاهلات، وقد تكون من مقدرة، كقوله تعالى ﴿ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ﴾ [الأعلى:۱۷] أى خير من الحياة الدنيا وأبقى منها وقد اجتمع إثباتها وحذفها فى قوله سبحانه: ﴿أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا﴾ [الكهف: ۳۴] أى: أعزمنك". انتهى.

(۲) شرح الكرمانى: ۱۲۳/۳ عمدة القارى: ۳۰۷/۳ إرشادالسارى: ۴۹۸/۱.

(۳) إرشادالسارى: ۴۹۸/۱.

(۴) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى نفس الكتاب باب الوضوء قبل الغسل رقم الحديث: ۲۴۹ وفى باب الغسل مرة رقم الحديث: ۲۵۷ وفى باب الغسل بالصاع ونحوه رقم الحديث: ۲۵۳ وفى باب المضمضة والاستنشاق فى الجنابة رقم الحديث ۲۶۵ وفى باب من توضأ فى الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد مواضع الوضوء منه مرة أخرى رقم الحديث ۲۷۴ وفى باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة رقم الحديث: ۲۷۶ وفى باب التستر فى الغسل عندالناس بنحوه مختصراً رقم الحديث: ۲۸۱ وأخرجه مسلم فى صحيحه فى باب الحيض، باب صفة غسل الجنابة رقم الحديث: ۷۲۲ وأبوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة رقم الحديث: ۲۴۵ والترمذى فى

**ترجمه**: مونږ ته حميدي بيان اوکړو اووئيل مونږ ته سفيان بن عيينه، اووئيل مونږ ته سليمان بن مهران اعمش، هغه د سالم بن ابی الجعد نه، هغه د کريب نه هغه د ابن عباس رضي الله عنهما نه هغه وائی چه حضرت ميمونه رضي الله عنها فرمائی چه نبیٰ اکرم ﷺ کله د جنابت د غسل اراده اوکړه نو (د تولو نه اول) ئی خپل (کس) لاس سره خپل شرمګاه اووينځل بيا ئی دغه لاس په ديوال باندې اومږلو بيا ئی دا (اوبوسره) اووينځلو بيا ئی اودس يعنی چاراندام اوکړو د مانځه والا اودس په شان بيا چه کله د غسل نه فارغ شو نوخپلې دواړه خپې ئی اووينځلې.

## تراجم رجال

**الحميدي**: دا د امام بخاری رحمه الله استاذ د امام شافعی رحمه الله معاصر هم سبق اوشاګرد ابوبکر عبدالله بن الزبير بن عيسى بن عبيدالله بن اسامه بن عبدالله بن حميد بن الحارث بن اسد بن عبدالعزى قرشى، اسدى حُميدى مکى رحمه الله دې. (١) دَدوی مختصر حالات **بدء الوحی، باب کيف کان بدء الوحی إلى رسول الله صلى الله عليه** د رومبى حديث په ذيل کښې (٢) او تفصيلى احوال **کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا** لاندې بيان کړې شوی دی. (٣)

**سفيان**: دا مشهور محدث ابو محمد سفيان بن عيينه ابن ابى عمران هلالى کوفى دې. دَدوی ډير مختصر حالات **بدء الوحی باب کيف کان الوحی الرسول صلى الله عليه وسلم** (٤) او تفصيلى حالات **کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا** لاندې تير شوی دی. (٥) باقى رجال حديث اعمش سالم بن ابى الجعد کريب ابن عباس رضي الله عنهما اوام المؤمنين حضرت ميمونه رضي الله عنها احوال وړاندې بيان شوی دی. (٦)

## شرح حديث

**قوله:: فغسل فرجه**: نو د تولو نه اول حضور پاک خپل شرمګاه اووينځلو.

---

سننه فى كتاب الطهارة باب ماجاء فى الغسل من الجنابة بنحوه مختصراً، وقال: هذا حديث حسن صحيح رقم الحديث: ١٠٣والنسائى فى سننه فى كتاب الطهارة باب غسل الرجلين فى غير المكان الذى يغتسل فيه رقم الحديث: ٢٥٢ وأيضاً فى كتاب الغسل والتيمم باب إزالة الجنب الأذى عنه قبل إفاضة الماء عليه بنحوه مختصراً، رقم الحديث: ٤١٨وأيضاً فى باب مسح اليد بالأرض بعد غسل الفرج رقم الحديث: ٤١٩وأيضاً فى باب الاستتار عندالغسل رقم الحديث: ٤٠٨وأخرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة باب المنديل بعدالوضوء رقم الحديث٤٦٧وراجع جامع الأصول رقم: ٥٣٢١وتحفة الأشراف رقم: ١٨٠٦٤.

(١) تهذيب الكمال: ٥١٢/١٤.

(٢) كشف البارى: ٢٣٨/١-٢٣٧.

(٣) كشف البارى: ١٠٢/٣-٩٩.

(٤) كشف البارى: ٢٣٨/١.

(٥) كشف البارى: ١٠٦/٣-١٠٢.

(٦) د اعمش د حالاتو دپاره اوګورئی کشف البارى: ٢٥١/٢ سالم بن ابى الجعد د احوال دپاره کتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع، ابن عباس رضي الله عنهما دپاره اوګورئی کشف البارى: ٤٣٥/١، ٢٠٥/٢، حضرت ميمونه رضي الله عنها د احوالو دپاره اوګورئی کشف البارى: ٤٢٠/٤.

**فاء دَتفصيل دَپاره ده که دَتعقیب؟**: علامه کرماني رحمه الله اوفرمائیل چه فغسل کښې فاء دَ پاره دَتعقیب نه ده چه دَ دلک يد، اودس او غسل دَ شرمګاه وينځلونه وړانديوالې لازم راشي بلکه دلته فاء دَ تفصيل دَپاره ده. «اغتسل من الجنابة» کښې چه کوم اجمال وو دَهغې تفصيل ئې بيان کړې دې اودَ اجمال نه پس تفصيل راوړلې شي.([1])

علامه قسطلاني رحمه الله، شيخ الاسلام زکريا انصاري رحمه الله او علامه کرماني رحمه الله هم فاء تفصيليه ګرځولې ده.([2])

**فاء دَ تفسير دَپاره**: حافظ ابن حجر رحمه الله دَ فاء عدم تعقيب دَپاره کيدو باندې علامه کرماني رحمه الله سره متفق دې البته حافظ صاحب رحمه الله او علامه سيوطي رحمه الله فاء تفسيريه ګرځولې ده. ([3])حافظ صاحب رحمه الله نور ليکي چه په دې حديث کښې په ترتيب باندې دلالت کونکې حرف "ثم" راوړلې شوې دې چه دَ غسل جنابت په ترتيب باندې دلالت کوي.([4])

**دَعلامه عيني رحمه الله په نيزفاء تعقيبيه عاطفه ده**: علامه عيني رحمه الله په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې نقدکولوسره ليکلي دي چه بعض خلقو دلته فاء تفسيريه ګرځولې ده نودا دَ علامه کرماني رحمه الله دَ کلام نه ماخوذ دې. بيا علامه عيني رحمه الله فاء تعقيبيه ګرځولو سره اوفرمائيل چه کوم سړې دَ عربي اسرار نه واقف وي او په ژور نظر سره غور کوي نوهغه به وائي چه دلته فاء عاطفه ده چه دَترتيب دَپاره ده اودَ حديث معنى به داسې شي چه حضوراکرم دَخپل غسل ترتيب داسې بيان کړو چه اول ئې شرمګاه اووينځلو (بيائې لاس په خاوره باندې اومږلو او په اوبو سره ئې اووينځلو) اوبيائې اودس يعني چاراندام اوکړو. دې نه پس علامه عيني رحمه الله اوفرمائيل چه دلته دَ فاء دَ ترتيب دَپاره کيدل دا دَعاطفه کيدو نه نه خارج کوي.([5])علامه قسطلاني رحمه الله دَعلامه عيني رحمه الله قول چه فاء عاطفه دَپاره دَترتيب ده مطلب دا بيان کړې دې چه فاء دَ عطف دَپاره ده. دَهغه ترتيب دَبيانولو دَپاره ده چه په ترتيب باندې دلالت کونکې حرف ثم نه مستفاد دې. ([6])

**واضحه او بې دوړو خبره**: ليکن ډيره واضحه او بې غباره خبره هم هغه ده کومه چه علامه کرماني رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله وغيره دَ اکثر شراح حديث نه نقل ده. البته دَ علامه عيني رحمه الله توجيه دَ صفا کولو دَپاره داسې ونيلې کيدې شي «اغتسل من الجنابة» معنى «أراد الاغتسال» يا «شرع في الاغتسال» دَپاره لازرشي لکه چه شراح حديث دَ حديث دَ نورو طرق «إذا اغتسل من الجنابة» نه هم دغه معنى مراد اخستې ده. اوس چه فاء دَ تعقيب دَپاره اومنلې شي نوبيابه خبره بالکل واضحه شي چه حضورپاک کله دَ غسل جنابت اراده اوفرمائيله يا غسل جنابت ئې شروع کړو نودَهغې ترتيب داسې وو چه دَ ټولو نه اول ئې شرمګاه اووينځل بيا ئې په خاوره باندې لاس اومږلو. والله اعلم بالصواب.

---

[1]) شرح الکرماني: ۱۲۳/۳.

[2]) إرشاد الساري: ۴۹۸/۱ تحفة الباري: ۲۲۴/۱ الکوثر الجاري: ۴۱۷/۱.

[3]) فتح الباري: ۴۹۱/۲ التوشيح: ۲۴۶/۱.

[4]) فتح الباري: ۴۹۱/۲.

[5]) عمدة القاري: ۳۰۸/۳-۳۰۷.

[6]) إرشادالساري: ۴۹۸/۱.

**دَحديث ميمونه k نه دَمنى او فرج دَ رطوبت په ناپاكوالى باندې استدلال:** ابن العربي مالكى رحمه الله دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ روايت په ذيل كښې (۱۳) احكام ذكركړي دى. په الرابعة كښې اوليكل چه دا دَ امام شافعى رحمه الله دَ منى پاكوالى اودَ ښځې دَ فرج دَ رطوبت دَ پاكوالى په قول باندې رد دې. ځكه كه چرې دا پاك وې نو حضورپاك به دَ غسل شروع دَ وينځلو نه نه كوله يا به ئې دا دَ باقى ټول بدن په تطهير كښې داخل كړې وې. (۱)

**دَ حافظ صاحب په ابن العربى باندې رد:** حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن العربى دا استدلال بعيد ګرځولو سره فرمائى چه غسل ازاله نجاست باندې مقصور نه دې يعنى دَ غسل دَپاره نجاست ضرورى نه دې (اكثر وختونو كښې دَ نجاست دَازاله نه علاوه دَ نورو مقاصدو تنظيف، تنشيط او تبريد وغيره دَپاره هم غسل كولې شى). (۲)

**دَ فرج رطوبت او دَمنى طهارت او نجاست:** دَحنفيه نه دَ صاحبين رحمهما الله په نيزدَ فرج رطوبت نجس دې البته دَامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز طاهر دې. (۳)اومنى دَ حنفيه په نيز په اتفاق سره نجس ده.

**دَعلامه عينى رحمه الله په حافظ صاحب باندې نقد:** علامه عينى رحمه الله دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن العربى مالكى قول بعيد ګرځولو باندې نقد كولوسره فرمائيلى دى چه هغه دَ ابن العربى قول ته بعيد وئيلى دې حالانكه دَ هغه دا وينا پخپله بعيد ده ځكه چه منى او رطوبت فرج په نجاست باندې استدلال كونكو صرف دَحضرت ميمونه رضي الله عنها په روايت باندې اكتفانه ده كړې، اول مونږ دا مسئله دَ استقصى دلائل سره بيان كړې ده. (۴)

رطوبت فرج سره متعلق نور بحث هم دَ كتاب الغسل آخرې باب: غسل ما يصيب من رطوبة فرج المرأة كښې راځى. خودَ منى اورطوبت فرج سره متعلق بحث كتاب الوضوء باب غسل المنى وفركه وغسل ما يصيب من المرأة كښې تير شوې دې.

**تنبيه:** دَ ابن العربي استدلال دَدې حديث نه صحيح دې كه نه؟ داخبره په واقع كښې دَ تامل قابل ده. ځكه چه دَ غسل دَپاره ناپاكى ضرورى نه ده ليكن په عام توګه باندې په داسې مواقع كښې چه كوم غسل كيږى هغه هم دَ نجاست دَ وجې نه كيږى خودَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم دَمنى په ازاله باندې دائمى اهتمام دَدې دَناپاكه كيدو طرف ته اشاره ده. بهر حال ابن العربى دَ منى په ناپاكوالى باندې استدلال كړې دې او امام بخارى رحمه الله په حديث باب كښې "دلك" په نظافت باندې محمول كړې دې.

**قوله : ثم دلك بها الحائط:** بيا حضورپاك خپل (ګس لاس) په ديوال پورې اومږلو. امام بخارى رحمه الله دَحضرت ميمونه رضي الله عنها دا روايت په خپل صحيح كښې دَ الفاظو دَ اختلاف سره په نهه ځايونو كښې راوړلې دې. اودَ صحاح سته باقى ائمه حضراتو هم دَدې روايت تخريج كړې دې. دَحديث باب نه علاوه امام بخارى وغيره صراحت كړې دې چه حضورپاك په خپل ښى لاس باندې په ګس لاس اوبه اوبهيولې او په ګس لاس باندې ئې خپل شرمګاه اووينځلو بعض روايتونو كښې دى چه بيا حضورپاك خپل ګس لاس په ديوال باندې اومږلو اوبعض روايتونوكښې په زمكه يا خاوره باندې دَ

---

(۱) شرح الترمذى لابن العربى: ۱/۱۵۶-۱۵۵.

(۲) فتح البارى: ۲/۴۷۸.

(۳) تعليقات البذل: ۲/۲۵۷.

(۴) عمدة القارى: ۳/۲۸۸.

مړلو ذکر دي. دَ بخاری په يو روايت کښې دَ دوو يا دريو وارو مړلو ذکر دې خودَ امام مسلم رحمه الله او نسائی په روايت کښې «فدلکها دلکاً شديداً» الفاظ راغلی دی اودَ ابوداؤد اونسائی په روايت کښې په خاوره سره دَ مړلو نه پس په اوبو سره دَ وينځلو ذکر هم دې.(۱) ابن رجب حنبلی رحمه الله فتح الباری کښې دَدې ټول طرق حديث تخريج کړې دې. (۲)

**حضورپاک ﷺ په ديوال يا خاوره باندې لاس ولې اومړلو؟:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی «فمسحها بالتراب، يدل أنه كان فيها أذى، وإلا فلو لم يكن فيها أذى، لاكتفى بصب الماء وحده عليها، كما فعل غير مرة» (۳)

دَ نبی کريم ﷺ په خاوره پورې لاس راښکل او مړل په دې خبره باندې دلالت کوی چه دَ حضورپاك په لاس پورې څه نجاست لګيدلې وو ګنی حضورپاك به صرف په اوبو سره وينځلو باندې اکتفا کوله لکه چه څو واره ئې داسې کړی دی.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله ليکلی دی چه په دې حديث سره دا نه متعين کيږی چه حضورپاك عليه السلام دَ نجاست دَ ختمولودَپاره داسې کړی وی بلکه دَدې خبرې احتمال دې چه دا يوځل وينځل هم دَ تنظيف وی چه په عدم اکتفاء بمرة باندې دلالت کوی او په زمکه باندې لاس مړل دَ صفائی دَ مبالغه دَپاره وو لکه چه امام بخاری رحمه الله فرمائيلی دی. (۴)

**دَ شيخ الحديث رحمه الله ابن بطال رحمه الله باندې نقد:** حضرت شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله دَ ابن بطال رحمه الله کلام نقل کولوسره په هغه باندې نقد کولوسره فرمائی: «وأنت خبير بما فيه» يعنی دَ ابن بطال کلام سره به دَ نبی کريم ﷺ فضلات مبارکه نجس کيدل لازم راشی چه دَ تحقيق خلاف دی. (۵)

**دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله تحقيق:** حضرت ګنګوهی رحمه الله «دلك اليد بالحائط والأرض» باندې فرمائيلی چه لاس په خاوره باندې مړل او راښکلو سره وينځل په تنظيف کښې دَ مبالغه دَپاره وو: چه دَ ازاله عين نجاست نه پس که غوړوالې يا بوئی وغيره اثر پاتې شی نوهغه دې لرې کړې شی دې دَپاره چه په دغه لاس باندې دَ بدن نور اندامونه وينځل خاص کر مضمضه او استنشاق کښې کراهت او کرکه باقی پاتې نه شی.(۶)

**دَعلامه سهارنپوری رحمه الله تحقيق:** علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائيلی چه زما په نيز دَحضورپاك دا فعل يعنې خاورې پورې لاس مړل اوپه اوبوباندې وينځل دَامت دَتعليم دَپاره وو چه يوامتی استنجاء اوکړې اودهغه لاس نجاست سره ککړشی يا دَ نجاست اثر په لاس باندې باقی پاتې شی نوهغه دې دغه شان دَاستنجاء نه پس په خاوره باندې مړلو سره لاس صفا کړی. په دې وجه دَ حضورپاك دَ فضلات باره کښې دَعلماؤ تحقيق دادې چه هغه طاهر اوپاك وو. نودا محال دی چه دَ حضورپاك په لاس مبارك

---

(۱) قدمر تخريج هذه الطرق كلها في الباب السابق.
(۲) ۱/۱۵۷-۱۵۶.
(۳) شرح ابن بطال: ۱/۳۸۶.
(۴) فتح الباری: ۲/۴۷۸.
(۵) تعليقات البذل: ۲/۲۶۳.
(۶) الكوكب الدری: ۱/۱۴۰-۱۳۹.

باندې دَ استنجاء نه پس دَ خرابۍ هوا څه اثر وی. بیشکه رسول الله ﷺ خو په دې دنیاکښې او دَدې ځائی نه پرده کولو نه پس هم طیب او صفا ستره دې. (١)

**دَ حضورپاک دَ فضلات دَ پاکوالی مسئله:** فضلات بول وبراز او وینې باره کښې دَ حضرت انبیاء کرام علیهم السلام او رسول الله ﷺ بدنونه مقدسه او اجسام مطهره دَ نورو عامو انسانانو په بدنونو او جسمونو باندې قیاس کول صحیح نه دی. ځکه چه الله تعالی په خپل ټول مخلوقات کښې بې شمیره داسې عجائبات پیداکړی دی په کوم باندې پوهیدل چه زمونږ دَپاره ډیر ګران دی. دَ الله تعالی قدرت کامله ته اوګورئی چه هغه دَ مچې فضلات دَ شاتو په شان قیمتی نعمت کښې بدلوی اودَ یوچینجی دَ لعاب نه ریښم تخلیق کوی اودَ غریز چیلی (هوسئی) وینه دهغې په نوم کښې جمع کولوسره دهغې نه ښکلې خوشبوئی پیداکوی. بالکل هم دغه شان دغه قدیر ذات انبیاء کرام علیهم السلام خاص کر دَرسول الله ﷺ بدن مبارك ته داخصوصیت ورکړې دې چه غذا وغیره دهغوی په طیب بدنونوکښې ورګډیدو نه پس نجس کیږی نه بلکه دَ هغې نه چه کوم فضلات بول وبراز او وینه وغیره جوړیږی هغه هم پاك اوطاهر وی. دا دَ رسول الله ﷺ دَ امتیازی خصوصیاتو نه دی. علامه سیوطی رحمه الله الخصائص الکبری کښې دغه ټول امتیازی خصوصیات راجمع کړی دی او په هغې کښې ئې باقاعده یو عنوان "باب اختصاصه صلی الله علیه وسلم بطهارة دمه وبوله وغائطه" قائم کولوسره غطریف، طبرانی، ابونعیم، ابن حبان، دارقطنی، بزار، ابویعلی، ابن ابی خیثمه، بیهقی، حاکم اوامام بخاری رحمهم الله په حواله سره مختلف روایات نقل کړی دی کوم چه حضورپاك وینه او بول وبراز وغیره په طهارت باندې دلالت کوی. (٢)

**دَ فضلات نبوی پاکوالی اومذاهب اربعه:** علامه بنوری رحمه الله معارف السنن کښې لیکلی دی چه دَمذاهب اربعه علماؤ دَ فضلات انبیاء کرام علیهم السلام دَ پاکیدو تصریح کړې ده. (٣)

امام نووی رحمه الله المجموع شرح المهذب کښې په دې حواله سره دَ شوافع دوه قوله نقل کړی دی او فرمائی چه قاضی حسین رحمه الله ټول فضلات طاهر کیدل اصح ګرځولی دی. (٤)

علامه شامی رحمه الله لیکلی دی چه بعض ائمه شافعیه دَ حضورپاك دَ بول او باقی ټولو فضلاتو دَ طهارت قول صحیح ګرځولی دې او امام ابوحنیفه رحمه الله هم دَدې قائل دې. (٥) ملاعلی قاری رحمه الله جمع الوسائل فی شرح الشمائل باب ماجاء فی تعطر رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې دَټولو فضلاتو دَ طهارت قول نقل دې اودائی دَ حضورپاك دَ خصوصیاتو نه شمیر کړی دی. (٦)

---

(١) بذل المجهود: ٣١١/١.

(٢) الخصائص الکبری: ٢٥٣/٢-٢٥٢.

(٣) معارف السنن: ٩٨/١.

(٤) المجموع: ٢٣٤/١.

(٥) ردالمختار: ٢٣٣/١.

(٦) جمع الوسائل: ٣٠٢/٢.

علامه عينى رحمه الله عمدة القاري كتاب الوضوء باب الماء الذي يغسل به شعر الإنسان كښې د بعض شوافع د فضلات نبى كريم ﷺ د نجس كولو په قول باندې راګيرونه كولوسره فرمائي چه دا د حضورپاك خصوصيت دې دا مسئله په عامو خلقو باندې قياس كول د عقل نه لرې خبره ده.(۱)

**د فضلات په پاكوالى باندې تكاثر ادله:** حافظ ابن حجر رحمه الله فتح الباري كښې ((كتاب الوضوء باب الماء الذي يغسل به شعر الإنسان)) لاندې فرمائي: ((وقد تكاثرت الأدلة على طهارة فضلاته وعد الأئمة ذلك في خصائصه فلا يلتفت إلى ما وقع في كتب كثير من الشافعية مما يخالف ذلك، فقد استقر الأمر بين أئمتهم على القول بالطهارة)). (۲)

يعنى د حضورپاك د فضلاتو د پاكيدو دلائل د كثرت د حد پورې رسيدلى دى اوائمه كرامو دا د حضورپاك په خصوصياتو كښې شمير كړې دى. لهذا د ډيرو شوافع په كتابونو كښې كوم چه د دې خلاف (د نجاست قول) مونډلې شى هغه قابل د التفات نه دې. تحقيق دادې چه دهغوى په ائمه كښې معامله د طهارت په قول باندې راغلې ولاړه ده. د حضورپاك د فضلات په پاكوالى باندې دلائل اوتفصيلى بحث كتاب الوضوء باب الماء الذي يغسل به شعر الإنسان لاندې اوګورئ.

**قوله: ثم غسلها ثم توضأ وضوءه للصلاة:** يعنى حضورپاك ګس لاس په ديوال باندې اومږلو بيائى دا اووينځلو بيائى د مونځ والا اودس په شان اودس اوكړو.

**د حنابله په نيز مس فرج په غسل جنابت كښې غيرمؤثردې:** امام احمد رحمه الله فرمائيلى چه د استنجاء نه پس به درې ځل د لاسونو وينځل كيږى ليكن دا د غسل جنابت نه علاوه د يوبل غسل د اودس حكم دې ځكه چه په حدث اصغرسره كړې شوې اودس په مس فرج سره ماتيږى. په غسل جنابت كښې خو چه يوځل لاسونه درې ځل اووينځلې شى بيا شرمګاه اووينځى نو بيا د لاسونو دوباره د وينځلو ضرورت نشته دې. ځكه چه مس فرج په غسل جنابت كښې غيرمؤثردې يعنى ناقض وضوء نه دې. ځكه چه كله يو سړى د جنابت د غسل نيت اوكړو بسم الله ئې اووئيله او خپل دواړه لاسونه ئې درې ځل اووينځل نو يقيناً هغه د جنابت غسل شروع كړې دې. هم دغه وجه ده چه په غسل جنابت كښې د بدن وينځلوسره په دويم ځل شرمګاه وينځل ضرورى نه دى بلكه د استنجاء كولو وخت كښې دې وينځلې وو نوهم هغه كافى دى. (۳)

جعفر بن محمد رحمه الله دامام احمد رحمه الله نه نقل كړې دى كه چرې جنبى د اوده كيدو نه وړاندې اودس اوكړو بيا د خوب نه بيدارشو غسل ئې اوكړو دوباره ئې اودس اونه كړو نو د هغه غسل صحيح شو. ابن رجب رحمه الله فرمائي چه كيدې شى د امام احمد بن حنبل رحمه الله مراد دادې چه د اودس اندامونه يوځل وينځل كافى دى په غسل جنابت كښې به دا په دويم ځل نه شى وينځلې. يا دامام احمد رحمه الله دامراد كيدې شى چه غسل جنابت به بغيرد اودس نه هم صحيح شى (كه چرې اول ئې استنجاء كړې وى نو) دې سره حدث اصغر او اكبر دواړه به زائل شى. (۴)

**د جنابت په غسل كښې دحدث اصغر لاحق كيدو حكم:** كه چرې د جنابت په غسل كښې چاته حدث اصغر اولګى نود ابن سيرين رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيز په دويم ځل به اودس كوى اود نوى سر نه به

---

(۱) عمدة القاري: ۳/۵۲.

(۲) فتح البارى: ۲/۳۶۲-۳۶۱.

(۳) فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱/۱۵۸.

(۴) فتح البارى لابن رجب الحنبلى: ۱/۱۵۹-۱۵۸.

غسل کوی دی دَپاره چه دَغسل سنت دَ کمال په درجه سره اداشی. دَ امام حسن رحمه الله او سفیان ثوری رحمه الله په نیز به دَدغه غسل تکمیل کولې شی. البته که دَ مونځ وغیره حاجت وی نو دوباره به اودس کولې شی.

ابن منذر رحمه الله عطاء رحمه الله او عمرو بن دینار رحمه الله هم دَدې په شان نقل کړی دی. (۱)

**دَ امام شافعی رحمه الله قول:** امام شافعی رحمه الله «کتاب الأم: کتاب الطهارة باب من نسی المضمضة والاستنشاق فی غسل الجنابة» کښې فرمائی که چرې جنبی اودس اوکړو بیائی غسل دَ جنابت شروع کړواو په دې دوران کښې هغه ته حدث لاحق شو نوهغه به دا غسل هم په دې حالت کښې پوره کویٔ البته روستو به دَ مانځه دَپاره اودس کوی. (۲)

**دَعلامه شامی رحمه الله رائې:** علامه شامی رحمه الله اوفرمائیل چه دَغسل دوران کښې حدث لاحق شی نودَ اودس راګرځول بهتردی لیکن ضروری نه دی. (۳)

**دَمالکیه رائې:** دَ مالکیه په نیزچه دوران غسل حدث لاحق شو یا غسل کونکی خپل شرمګاه ته لاس اولګولو نو دوباره دَنوی سر نه دَغسل کولوضرورت نشته بلکه هم دَدغه غسل پوره والې به کوی خکه چه دَمعتمدقول مطابق دَهراندام پلیتی دَهغې وینځلوسره ختمیږی. دَهراندام دَ پلیتئی ختمولو دَپاره کمال طهارت ضروری نه دې. که چرې دَ دغه غسل نه پس دَ مونځ اراده وی نوبیا دَ اودس اندامونه دَ اودس په نیت سره به یویوځل دوباره وینځل به ضروری وی. (۴)

**دَ غسل جنابت دوران کښې حدث لاحق کیدو باندې دَغسل دوباره کولوحکم:** ابن رجب الحنبلی رحمه الله فرمائی په دې مسئله کښې اختلاف مناسب نه دې ځکه چه دَغسل دوران کښې حدث لاحق کیدو سره دَ غسل دوباره کولوچه چاهم حکم ورکړی دې هغه استحباباً دې دې دَپاره چه اودس دَغسل نه وړاندې واقع شی لکه چه امام احمدبن حنبل رحمه الله دَهغه حائضه باره کښې فرمائیلی دی کومې چه صرف په اوبوسره غسل اوکړو بیائی سدر اوموندلو نو هغې له پکاردی چه په اوبواوسدر سره د دغه غسل اعاده اوکړی دې دَپاره چه هغه علی وجه الکمال دَ غسل والاشی. (۵)

**خروج من الخلاف مستحب دې:** علامه ابن نجیم رحمه الله دَ حدیث میمونه رضی الله عنها لاندې لیکلی دی چه شرمګاه (که روستو وی اوکه مخکښې وی) دَ غسل نه اول وینځل مستحب دی. لکه څنګه چه اودس په باقی غسل باندې مقدم کول مستحب دی که هغه ته حدیث لاحق وی اوکه نه وی ځکه چه دَ شرمګاه وینځل مقدم کول دَهغه دَ نجاست والاکیدو کښې منحصرنه دی بلکه کله دَنجاست دَ وجې نه اوکله دَدې دَپاره هم اول وینځل مستحب دی چه که چرې اثناء غسل اووینځلې شی نو مس فرج سره دَ اودس دَ نقض دَ قائلینو په نیزبه طهارت منتقض شی. لکه چه قاضی عیاض رحمه الله دَدې طرف ته اشاره فرمائیلې. او زمونږ په نیز خروج من الخلاف مستحب دې. لهذا دَ ائمه دَ دې اختلاف نه دَ بچ کیدو

---

(۱) فتح الباری لابن رجب الحنبلی: ۱۵۹/۱-۱۵۸.

(۲) کتاب الأم موسوعة الإمام الشافعی: ۱۶۷/۱.

(۳) ردالمختار: ۱۱۷/۱.

(۴) حاشیة الدسوقی علی الشرح الکبیر: ۲۳۰/۱.

(۵) فتح الباری لابن رجب الحنبلی: ۱۵۹/۱.

دپاره به د شرمگاه وینځل مقدم کول مستحب وی.(۱) د خپو وینځلو روستو کول او وراندې کول وغیره متعلق باقی مباحث وراندې تیر شوی دی.

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت اومطابقت «ثم دلك بها الحائط» الفاظونه ثابتیږي چه په ترجمه کښې لاس په خاوره باندې مږلو تذکره ده دې دپاره چه ښه صفاشی او په حدیث کښې د حضرت میمونه رضي الله عنها خودل چه حضورپاك شرمگاه وینځلونه پس خپل لاس په دیوال باندې اومږلو (په هغه زمانه کښې دیوال د خاورې کیدل ښکاره دی).(۲)

**دحدیث باب نه مستنبط شوی امور:** دحدیث باب نه علماء کرامو دا لاندینی امور مستنبط کړی دی:

① د استنجاء نه پس په دیوال یا خاوره (اشنان یا صابون) سره لاس راخکل او مږل او بیا په اوبوسره وینځل مستحب دی. (۳)

② که چرې اوبه په څه لوټه وغیره یا یولوښی کښې وی نو د شرمگاه وینځل د لاسونو په وینځلو باندې مقدم کول اولی دی. دې دپاره چه د اودس اندامونه وار په وار اووینځلې شی.(۴)

③ د ضرورت په وخت دفرج (شرمگاه) تذکره کول جائز دی لکه چه د ضرورت په وخت د شرمگاه طرف ته کتل جائزدی. په وخت د ضرورت د فرج تذکره د فحش وینا کولونه مستثنی دی. (۵)

دحدیث نه مستنبط نور احکام او امور وراندې تیر شوی دی. (۶)

## ۹- باب: هَلْ يُدْخِلُ الْجُنُبُ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ قَبْلَ أَنْ يَغْسِلَهَا إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَى يَدِهِ قَذَرٌ غَيْرُ الْجَنَابَةِ

## ایا جنبی سړي خپل لاس دوینځلونه وړاندې په لوښی کښې داخلولې شی، کوم وخت چه دهغه په لاس باندې د جنابت نه علاوه نوره څه گندگی نه وی لګیدلې؟

**دترجمة الباب مقصد:** په دې ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله د جنابت او قذر الفاظ راوړلی دی. د قذر معنی د نجاست او ناپاکی اودا نجاست حسی او حقیقی دې. خو په جنابت کښې چه کوم نجاست دې هغه حکمی او معنوی دې. ددې تمهیدنه پس دا اوګنړئی چه دامام بخاری رحمه الله غرض اومقصد د ترجمې نه څه دې؟ په دې کښې مختلف اقوال دی چنانچه ابن بطال رحمه الله د مهلب رحمه الله نه نقل کړی دی چه دامام بخاری رحمه الله مقصد دترجمه نه دا خودل دی که د جنبی لاس نظیف وی نودهغه دپاره جائز دی چه خپل لاس د وینځلونه وراندې د اوبو په لوښی کښې وهلې شی. (په دې سره به هغه اوبه ناپاکه

---

(۱) البحرالرائق: ۱/۹۴-۹۳.

(۲) عمدة القاري:۳/۳۰۷.

(۳) فتح الباري:۲/٤٧٨عمدة القاري:۳/۲۸۸شرح النووی: ۳/۲۲۱.

(٤) فتح الباري: ۲/٤٧٩.

(۵) شرح ابن العربي على الترمذي: ۱/۱۵۵.

(۶) عمدة القاري: ۳/۳۰۷.

کیږی نه، ځکه چه د جنبی کیدوسره دهغه اندامونه ناپاکه کیږی نه (اودا ځکه چه جنابت نجاست حکمی اومعنوی دې حسی اوحقیقی نه دې).حضورپاک ﷺ فرمائیلی «المؤمن لاینجس» (۱)یعنی مؤمن ناپاك نه وی(۲)دابن رجب حنبلی هم دغه رائې ده.(۳)

علامه ابن ملقن رحمه الله علامه کرمانی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم دغه پورته ذکرشوې توجیه ذکرکړې ده.(۴)

دعلامه عینی رحمه الله په نیز دامام بخاری رحمه الله غرض ددې مسئله حکم بیانول دی.(۵) دعلامه قسطلانی رحمه الله په نیز دامام بخاری رحمه الله مقصد ددې مسئلې جواز بیانول دی. (۶)په متاخرینوکښې د مولانا ادریس کاندهلوی رحمه الله هم دغه رائې ده.(۷)

**دحضرت شاه ولی الله رحمه الله او حضرت گنگوهی رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه دامام بخاری رحمه الله غرض ددې باب نه د جنبی په لاس باندې چه د جنابت نه علاوه نور نجاست نه وی لګیدلې نوبغیرد وینځلو په لوښی کښې د لاس وهلو جواز بیانول دی، سره ددې چه سنت دادې چه دوینځلونه پس دې په لوښی کښې لاس وهی. (۸)حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد جواز بیانول دی سره ددې چه اولی هم دادې چه اول دې اووینځی.(۹)

**دعلامه کشمیری رحمه الله توجیه:** علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی امام بخاری په دې ترجمة الباب کښې دمنی د نجس کیدو صراحت کړې دې اودائی په قذر (نجاست) کښې شمیرکړې ده اوداخبره ئې اختیارکړې ده چه ماء مستعمل طاهر یعنی پاکې وی هم ددې طرف ته جمهور ائمه تلې دی البته امام مالك رحمه الله فرمائیلی چه ماء مستعمل طاهر کیدوسره مطهر هم وی.(۱۰)

**د شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله رائې:** دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله نه ددې ترجمة الباب درې توجیهات نقل دی:

---

(۱) الحديث أخرجه البخاري في كتاب الغسل باب عرق الجنب وأن المسلم لاينجس، رقم: ۲۸۳وباب الجنب يخرج ويمشي في السوق رقم: ۲۸۵ ومسلم في صحيحه كتاب الحيض باب الدليل على أن المسلم لاينجس رقم: ۳۷۱وأبوداؤد في سننه كتاب الطهارة باب في الجنب يصافح رقم: ۲۳۱ والترمذي في جامعه أبواب الطهارة باب ماجاء في مصافحة الجنب رقم: ۱۲۱ والنسائي في سننه، كتاب الطهارة باب مماسة الجنب ومجالسته، رقم: ۲۶۹-۲۷۰ راجع جامع الأصول رقم: ۵۳۵۲.

(۲) شرح ابن بطال: ۳۸۸/۱.

(۳) فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۱۵۹/۱.

(۴) التوضيح: ۵۷۲/۴ شرح الكرماني: ۱۲۶/۳فتح الباري: ۴۹۱/۲.

(۵) عمدة القاري: ۳۰۸/۳.

(۶) إرشادالساري: ۴۹۹/۱.

(۷) الأبواب والتراجم لمولانا إدريس الكاندهلوي ص: ۲۶۳.

(۸) شرح تراجم أبواب البخاري ، ص۱۸، الأبواب والتراجم ص:۶۱،الكنز المتواري: ۲۰۵/۳.

(۹) الكنزالمتواري مع اللامع: ۲۰۴/۳الأبواب والتراجم ص:۶۱.

(۱۰) فيض الباري: ۴۶۰/۱.

① رومبی توجيه: كومه چه شيخ الحديث رحمه الله اوجه گرځولي ده هغه دا ده: «أن غرض المصنف بيان جواز إدخال المحدث اليد أعلى ما روي عن ابن عمر -رضي الله عنهما- أنه قال: من اغترف من ماء وهو جنب فما بقي فهو نجس و أخرجه ابن أبي شيبة»
امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې لاس دَ وينځلونه بغير په لوښي کښې دَوهلو جواز بيانولوسره مصنف ابن ابی شيبه کښې روايت کړې شوې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په اثر باندې ردکوی په کوم کښې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چاچه دَ جنابت په حالت کښې دَ اوبو نه لپه ډك کړو نوباقی پاتې اوبه ناپاکه دی.[1]

② دويمه توجيه: داده که دَيو جنبی سړی په لاس باندې نجاست حقيقی «بول وبراز وغيره» لګيدلې وی او هغه په اوبو کښې لاس اووهی نودَټولو په نيز هغه اوبه ناپاك کيږی اوکه چرې نجاست حقيقی نه وی لګيدلې اوصرف نجاست حکميه وی نوهغه اوبه به ناپاکه وی که نه؟ په دې کښې اختلاف دې. دَ ظاهريه په نيز ناپاکه کيږی اودَ جمهور په نيز نه ناپاکه کيږی. نو امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې لفظ هل راوړلوسره دَاختلاف طرف ته اشاره اوکړه. چونکه دَامام بخاری رحمه الله ذکرکړې شوې روايات دَ عدم غسل يد باره کښې صريح نه دی په دې وجه دَ لفظ هل په ذريعه سره ئې په دې اختلاف باندې تنبيه اوکړه. په عام توګه شراح او مشائخ لفظ هل سره څه تعارض نه دې کړې.[2]

③ دريمه توجيه: داده چه دَترجمه نه دَامام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی چه دَلاس دَ داخلولونه وړاندې دَلاسونو وينځل ايجابی نه دی بلکه استحبابی دی.[3]

**دَ ترجمة الباب دَ الفاظو وضاحت: باب:** بابٌ تنوين سره مبتداء محذوف دَ هذادَ پاره خبردې.[4]

**هل:** امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې لفظ هل کوم چه په تردد باندې دلالت کوی ولې ذکر کړې دې؟

**دَ شيخ الحديث رحمه الله جواب:** شيخ الحديث مولانا زکريا رحمه الله فرمائيلی چه شراح او مشائخ لفظ هل باره کښې تعرض نه دې کړې. چونکه امام بخاری رحمه الله کوم آثار او روايات ذکر کړی دی هغه په عدم غسل يد باره کښې صريح نه دی بلکه محتمل دی نو په دې باندې تنبيه کولودَپاره په ترجمه کښې لفظ هل ذکرکړو.[5]

دَدې اعتراض درې جوابونه نور هم دی: ①رومبې جواب خودادې چه دا هل استفهاميه دې دَتردد دَپاره نه دې. دَدې استفهام جواب په روايات الباب کښې معلوم شو چه او داخلولې شو ځکه چه په اکثرو رواياتوکښې دَ لاس وينځلو ذکر نشته دې. ② دويم جواب دادې چه امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې لفظ هل ځکه ذکرکړو چه په دې باب کښې څلور روايات راوړلی دی په هغې کښې صرف په دويم حديث کښې دَغسل تصريح ده او دَ باقی نه په ظاهره باندې عدم غسل معلوميږی. نولکه چه په

---

[1] الأبواب والتراجم ص:٦١ الكنز المتواري: ۲۰٤/۳.

[2] الأبواب والتراجم ص:٦١ الكنز المتواري: ۲۰٥/۳ تقرير بخاري: ۸٤/۲ سراج القاري: ۲۰۱/۲-۲۰۰ والأثر أخرجه أبي شيبة فی مصنفه كتاب الطهارة باب فی الرجل يدخل يده فی الماء وهو جنب: ۱۰٥/۱ رقم: ۷۹۷ ولفظه: "من اغترف من ماء وهو جنب فما بقي منه نجس".

[3] تقرير بخاري: ۸٤/۲ سراج القاري: ۲۰۱/۲.

[4] إرشاد الساري: ٤۹۹/۱.

[5] الكنز المتواري: ۲۰٥/۳ الأبواب والتراجم ص ٦١.

روایاتوکښې اختلاف اوشو په دې اختلاف باندې تنبیه کولوډپاره ئې لفظ هل ذکرکړو. ③ دریم جواب دادې چه لفظ هل نه امام بخاری رحمه الله ددې مسئله باره کښې دتفصیل طرف ته اشاره کړې ده چه که چرې لاس نظیف وی په هغې باندې څه ګندګی او نجاست نه وی یا د نجاست شک ئې وی نو بغیر وینځلو دې لاس په اوبو کښې نه وهی. لهذا حدیث ثانی به په نجاست یا شبه د نجاست باندې محمول کولې شی اودعدم تصریح غسل والا روایات به په نظافت ید یعنی د لاس په پاکوالی باندې محمول کولې شی.لیکن دا توجیه د تامل قابل ده ځکه چه امام بخاری رحمه الله پخپله په ترجمه کښې «إذا لم یکن علی یده قذر غیر الجنابة» قیدلګولې دې دکوم نه چه معلومیږی چه دهغوی نظر په دې تفصیل باندې نه دې ګنې دا قید به ئې نه لګولو.

**قوله: :هل یدخل الجنب یده فی الإناء:** الإناء نه مراد هغه لوښې دې په کوم کښې چه دغسل اوبه کیخودې وی.(۱)

**قوله: :قبل أن یغسلها، أي: خارج الإناء:** یعنی دغسل کونکی اوبود لوښی نه بهروینځلو نه بغیر لاس په هغه لوښی کښې داخلول.(۲)

**قوله: :إذا لم یکن علی یده قذر:** قَذَرٌ په وزن د حَسَنٌ صیغه صفت مشبه دې د نظافت ضد خیرې ګندګی بول و براز او هرهغه څیز ته وائی کوم چه ناخوښه کړې شی او طبیعت چه د کوم نه کرکه خوری ددې جمع أقذارٌ راځی.(۳)

**په حدیث کښې د قَذَرٌ نه څه مراد دی؟:** اکثرشراح لیکلی دی چه د قَذَرٌ نه شيء مستکره من نجاسة وغیره مراددې. یعنی هرهغه څیز مراددې په کوم سره چه کرکه راشی اوکوم چه ناخوښه کړې شی که هغه پلیتې «بول وبراز اومنی وغیره» د قبیل نه وی یا دغیر نجاست «خیری وغیره» د قبیل نه وی. (۴)دلته ددې نه مراد نجاست حقیقی او حسی یعنی بول وبراز وغیره دی ځکه چه دجنابت په مقابله کښې استعمال شوې دې کوم چه نجاست معنوی اوحکمی دې.(۵)

**قوله: :غیر الجنابة:** په حدیث کښې د جنابت نه څه مراددې؟ په دې باره کښې د شراح حدیث په آراء کښې اختلاف دې.

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د جنابت نه مراد حکم د جنابت دې ځکه چه ددې په اثر کښې اختلاف دې اوهغه دامام بخاری په قول قذر کښې داخل دې.(۶)

---

(۱) فتح الباری: ۴۹۱/۲أعمدة القاری: ۳۰۸/۳إرشاد الساری: ۴۹۹/۱.
(۲) فتح الباری: ۴۹۱/۲إرشادالساری: ۴۹۹/۱.
(۳) لسان العرب: ۳۷/۱۱الصحاح ص: ۸۴۳النهایة: ۴۲۷/۲ شرح الکرمانی: ۱۲۴/۳.
(۴) فتح الباری: ۴۹۱/۲عمدة القاری: ۳۰۸/۳ إرشادالساری:۴۹۹/۱تحفة الباری: ۲۲۵/۱.
(۵) الکوثرالجاری: ۴۱۸/۱تقریر بخاری: ۸۴/۲.
(۶) فتح الباری: ۴۹۱/۲.

**دَعلامه عينى رحمه الله رائې:** علامه عينى رحمه الله ليكلى دي چه دَامام بخارى رحمه الله دَ صنيع نه معلوميږى چه جنابت نجس دې حالانكه داسې نه ده ځكه چه هم دَبخارى دَ روايت نه ثابت دې چه مؤمن نجس نه وى.(١)

**په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې نقد:** دَدې نه پس په دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په توجيه باندې نقد كولوسره علامه عينى رحمه الله فرمائى چه جنابت په اصل كښې په قذر كښې داخل نه دې ځكه چه جنابت امر معنوى (نجاست معنوى اوحكمى) دې په حقيقت كښې دا په قذر سره نه شى تعبيركولې (ځكه چه قذر خودَ نجاست حسى او حقيقى دَپاره استعمالولې شى) حافظ صاحب خودَ جنابت وضاحت "حكمها" سره كړې دې. علامه عينى رحمه الله فرمائى كه چرې دَهغه مراد حكم دَ جنابت نه اغتسال دې نودَدې دَ زير بحث مسئلې سره هيڅ تعلق نشته دې. كه چرې دَدې نه نجاست مراد دې نوموږ خودلى دى چه مؤمن نجس نه وى اوكه ددې نه مراد منى ده نوهغه خوددوى دَ گمان مطابق طاهر ده هغه په قذر كښې څنګه داخليږى؟ (٢)

**تعليق:** وَأَدْخَلَ ابْنُ عُمَرَ وَالْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ يَدَهُ فِي الطَّهُورِ وَلَمْ يَغْسِلْهَا، ثُمَّ تَوَضَّأَ. وَلَمْ يَرَ ابْنُ عُمَرَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ بَأْسًا عِمَا يَنْتَضِحُ مِنْ غُسْلِ الْجَنَابَةِ.

**ترجمه:** اوعبدالله بن عمر او براء بن عازب رضي الله عنهم دلاس وينځلو نه بغير (دَغسل) په اوبوكښې لاس اووهلو اوبيائې اودس اوكړو.

**تراجم رجال تعليق: ابن عمر رضي الله عنه:** دادَ خليفه ثانى حضرت اميرالمؤمنين عمربن خطاب رضي الله عنه جليل القدر خوئى اودَ ام المؤمنين حضرت حفصه رضي الله عنها سكه رور عبدالله رضي الله عنه دې. دَهغوى دَ مور نوم زينب بن مظعون رضي الله عنها ده. دَهغوى رضي الله عنه حالات كتاب الايمان باب الايمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم: (بنى الاسلام على خمس) لاندې ليكلې شوى دى. (٣)

**البراء بن عازب رضي الله عنه:** دا مشهور صحابى حضرات براء بن عازب بن الحارث بن عدى انصارى حارثى اوسى رضي الله عنه دې. ابوعماره، ابوعمرو يا ابوالطفيل دَدوى كنيت دې. دَدوى احوال كتاب الايمان باب: الصلاة من الايمان لاندې بيان شوى دى.(٤)

**تخريج تعليق: دَ اثر ابن عمر اتخريج:** امام بخارى رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مذكوره اثر دَترجمة الباب دَپاره په توګه دَتعليق ذكركړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله (٥)علامه عينى رحمه الله(١)او علامه

---

(١) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الغسل باب عرق الجنب وأن المسلم لاينجس، رقم: ٢٨٣وباب الجنب يخرج ويمشى فى السوق رقم: ٢٥٨ ومسلم فى صحيحه كتاب الحيض باب الدليل على أن المسلم لاينجس رقم: ٣٧١وأبوداؤد فى سننه كتاب الطهارة باب فى الجنب يصافح رقم: ٢٣١ والترمذى فى جامعه أبواب الطهارة باب ماجاء فى مصافحة الجنب رقم: ١٢١ والنسائى فى سننه، كتاب الطهارة باب مماسة الجنب ومجالسته، رقم: ٢٦٩-٢٧٠ راجع جامع الأصول رقم: ٥٣٥٢.

(٢) عمدة القارى: ٣٠٨/٣.

(٣) كشف البارى: ٦٣٨/١-٦٣٧.

(٤) كشف البارى: ٣٤٦/٢-٣٤٥.

(٥) تغليق التعليق: ١٤٥/٢فتح البارى: ٤٩١/٢.

قسطلانی رحمه الله (۲) فرمائیلی دی چه امام سعید بن منصور په خپل سنن کښې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثر دَمعنې په شان اثر موصولاً نقل کړې دې. (۳)

دَدې په شان دَمعنی اثر ابن ابی شیبه رحمه الله هم په مصنف کښې موصولاً ذکر کړې دې. (۴)

**دَ اثر براء بن عازب رضي الله عنه تخریج:** امام بخاري رحمه الله دَ براء بن عازب رضي الله عنه اثر دَ ترجمة الباب دَپاره په توګه دَ تعلیق نقل کړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله اوعلامه قسطلانی رحمه الله فرمائیلی چه دَ حضرت براء بن عازب رضي الله عنه اثر ابن ابی شیبه په مصنف کښې موصولاً نقل کړې دې. (۵)

**غرض تعلیق:** دَامام بخاری رحمه الله غرض دَدې تعلیق یعنی حضرت ابن عمر او حضرت براء بن عازب رضي الله عنهم دَاثر نه ترجمه مؤید کول دی. علامه عینی رحمه الله فرمائیلی په دې اثر اوترجمه کښې علی وجه الکمال مطابقت نه شی موندلې په داسې توګه چه ترجمه مقید ده چه په لاس باندې قذر نه وی ولې اثر مطلق دې په دې کښې دا قید ذکر نه دې. (۶)

**دَامام بخاری رحمه الله دقت نظر:** دَ تراجم باره کښې دَ امام بخاری رحمه الله دقت نظر مشهور اومعروف دې. دَترجمه په منعقد کولو کښې دَهغوی یومخصوص انداز دې. چنانچه کله تَرجمه مقیدراوړی او روایت مطلق وی اومقصد هغه طرف ته اشاره کول وی چه په روایت کښې دَ ترجمه قید ملحوظ دې دَدې اطلاق مرادنه دې لکه څنګه چه شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله دَامام بخاری رحمه الله دا عادت مقدمه لامع او الأبواب والتراجیم کښې بیان کړې دې. دکوم وضاحت چه کشف الباري مقدمة الکتاب کښې راغلی دې. غرض دا چه زیر بحث ترجمه هم دَدغه قبیل نه ده مقصددې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه په ترجمه کښې موجود «إذا لم یکن علی یده قذر» قید په اثر کښې ملحوظ دې.

**شرح اثر: وأدخل ابن عمر والبراء بن عازب:** علامه عینی رحمه الله لیکلی دی وأدخل کښې واؤ استفتاحیه یعنی ابتدائیه دې په کوم سره چه دکلام شروع کیږی. (۷)

---

(۱) عمدة القاری:۳/۳۰۸.

(۲) إرشادالساری: ۱/ ٤٩٩.

(۳) قال الحافظ فی تغلیق التعلیق (۲/ ١٥٤)"أما أثرابن عمر، فقال سعید بن منصور، حدثنا سفیان، ثناإبراهیم بن میسرة، سمع طاوساً، یقول: رأیت ابن عمرو ابن عباس، إذا خرجا من الغائط، یلتقیان بتور فیه ماء، فیغسلان وجوههما، وأیدیهما".

(٤) الأثر أخرجه ابن أبی شیبة فی مصنفه، کتاب الطهارة باب فی الرجل یکون فی أرض الفلاة فیحدث: ۲/ ٤۳رقم: ۱۱۳۱ولفظه:"حدثنا ابن عیینة، عن إبراهیم بن میسرة، عن طاوس قال: کلاهما رأیت: ابن عمرو ابن عباس، إذا خرجا من الغائط تلقیا بتور، فیغسلان وجوهما وأیدیهما".

(٥) تغلیق التعلیق: ۲/ ١٤٥فتح الباری: ۲/ ٤٩١ عمدة القاری:۳/ ۳۰۸ إرشادالساری: ۱/ ٤٩٩، الأثر وصله ابن أبی شیبة فی کتاب الطهارة باب فی الرجل یخرج من المخرج فیدخل یده فی الإناء: ۲/ ۲۹رقم الحدیث: ١٠٦٥ولفظه: "حدثنا ابن نمیر، عن الأعمش، عن إسماعیل بن رجاء، عن أبیه عن البراء:أنه أدخل یده فی المطهرة قبل أن یغسلها"، وقال الأعمش: "هذا حرف أستحسنه". انتهی.

(٦) عمدة القاری: ۳/ ۳۰۸.

(۷) عمدة القاری:۳/ ۳۰۸.

يده: دَيده ضمير ابن عمر او براء بن عازب رضي الله عنهم دواړو طرف ته دې. په دې تاويل ((أدخل كل واحد منهما يده)) يعنى دې دواړو حضراتوخپل لاس په اوبوكښې اووهلو. دَ ابوالوقت په روايت كښې "يديهما" الفاظ راغلى دى په دې كښې دَ تاويل حاجت نشته دې.(١) علامه كرمانى رحمه الله اوعلامه برماوى رحمه الله فرمائى چه بعض نسخوكښې "يديهما"، "لم يغسلهما" او "توضأ" دريواړه تثنيه نقل دى.(٢)

**الطهور:** لفظ طهور په دوه شان سره لوستلې كيږى دَ طاء په ضمه اوفتحه دواړه شان سره لوستل صحيح دى الطُّهور (په ضمه دَطاء) تطهريعنى پاكوالى په معنى كښې راخى اوالطَّهور (په فتح دطاء) فعُول په وزن باندې دمبالغه صيغه ده هرهغه صفا اوبوته وائى په كوم سره چه طهارت حاصل كړې شى.(٣)

**حديث كښې الطَّهور په فتح دَ طاء دې:** علامه كرمانى رحمه الله اوشيخ الاسلام علامه زكريا انصارى رحمه الله وغيره فرمائى چه دلته الطَهور دَمشهور لغت مطابق دَ طاء فتحه سره دې. هغه اوبوته وائى په كوم سره چه تطهر يعنى پاكى حاصله كړې شي.(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى چه مراد دَغسل دپاره تيارې كړې شوې اوبه دى.(٥) خوعلامه عينى رحمه الله فرمائيلى دى مراد هغه اوبه دى په كوم سره چه په اودس اوغسل كښې پاكى حاصله كړې شى.(٦)

**قوله: :ولم يغسلها ثم توضأ:** يعنى دې دواړو حضراتو بغيردَ لاسونو وينځلو نه په اوبوكښې لاسونه اووهل بيائى اودس اوكړو.(٧) نولكه چه امام بخارى رحمه الله ضمنًا اودس او دَ حدث اصغرمسئله بيان كړې ده.

**دَ ابن عمر نه دَروايت كړې شوى اثاروپه خپل مينځ كښې تعارض:** دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما يواثرخو هغه دې كوم چه امام بخارى رحمه الله په توګه دَتعليق راوړلې دې چه ابن عمر رضي الله عنهما لاسونه بغيردَ وينځلو په اوبوكښې وهلى دى خوهم دَهغوى نه يواثر په ابن ابى شيبه كښې دَ محمدبن فضيل عن أبي سنان ضرار عن محارب په طريق باندې نقل كړې دې په كوم كښې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمائيلى دى ((من اغتراف من ماءٍ وهو جنب فما بقى منه نجس))(٨) يعنى چاچه دَجنابت په حالت كښې دَ څه اوبو نه يولپه ډك كړو نودهغې باقى پاتې اوبه به نجس (ناپاك) وى.

هم دغه شان امام عبدالرزاق رحمه الله په خپل مصنف كښې دَ نافع نه په واسطه ابن جريج دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دَغسل جنابت باره كښې نقل كړى دى چه هغوى به اول په خپلو دواړو لاسونو باندې اوبه

---

(١) شرح الكرمانى:٣/١٢٤فتح البارى: ٢/٤٩١عمدة القارى: ٣/٣٠٨.
(٢) شرح الكرمانى: ٣/١٢٤إرشادالسارى: ١/٤٩٩.
(٣) لسان العرب: ٨/٢١٠النهاية: ٢/١٣٠الصحاح ص:٦٥٠مجمع بحار الأنوار: ٣/٤٧٣.
(٤) شرح الكرمانى: ٣/١٢٤تحفة البارى: ١/٢٢٥إرشادالسارى: ١/٤٩٩.
(٥) فتح البارى: ٢/٤٩١.
(٦) عمدة القارى: ٣/٣٠٨.
(٧) إرشادالسارى: ١/٤٩٩.
(٨) مصنف ابن أبى شيبه كتاب الطهارة باب فى الرجل يدخل يده فى الماء وهو جُنب: ١/١٠٥رقم: ٨٩٧

اړولې او وینځل به ئې بیا به ئې په خپل ښی لاس باندې لپه ډك کولوسره په خپل شرمګاه باندې اړولې بیا به ئې په خپل ګس لاس باندې دا وینځلو....(۱).

د دې آثارو په خپل مینځ کښې تعارض دې. د امام بخاري رحمه الله والا په اثر کښې دی چه ابن عمر رضي الله عنه لاس وینځلونه بغیر په اوبو کښې لاس اووهلو خود مصنف عبدالرزاق د روایت نه معلومه شوه چه د لاس وینځلونه پس ئې په اوبو کښې وهلې وو اود مصنف ابن ابی شیبه په روایت کښې هغه د جنبی د لاس وهلو نه باقی پاتې اوبه د نجس کیدو صراحت کړې دې.

**په آثارو کښې تطبیق:** شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله په دې خپل مینځ کښې متعارض آثاروکښې تطبیق کولوسره فرمائی:

«ولاتعارض بینهما عندي، لأن أثرابن أبي شیبة نص في الجنابة، وأثر البخاري ظاهر في الحدث الأصغر» (۲)

یعنی زما په نیز په دې آثاروکښې هیڅ تعارض نشته ځکه چه د ابن ابی شیبه روایت کړې شوې اثر د جنابت باره کښې صریح دې خود امام بخاری رحمه الله نقل کړې شوې اثر د حدث اصغر باره کښې ظاهر دې.

ابن رجب الحنبلی رحمه الله د امام بخاری رحمه الله د اثر باره کښې «هذا في الوضوء» وئیلو سره دې طرف ته اشاره کړې ده چه دا اثر د حدث اصغر سره متعلق دې او د ابن ابی شیبه والا اثر د جنابت سره متعلق دې.(۳)

**رفع د تعارض:** که چرې د اثر باب تعلق هم د حدث اکبرسره اومنلې شی او «ثم توضأ» نه مراد "ثم توضأ قبل الغسل" واخستلې شی لکه چه د مصنف عبدالرزاق د روایت نه معلومه شوه چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه د جنابت په غسل کښې د لاس وینځلونه پس به بیا په اوبو کښې وهلو نو په دې صورت کښې به بیا د رفع تعارض ضرورت پیښیږی.

**د علامه ابن بطال، ابن ملقن او عینی توجیه:** چنانچه ابن بطال رحمه الله ابن ملقن رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د ابن ابی شیبه نقل کړې شوې اثر «فمابقي منه نجس» به په هغه صورت باندې محمول وی چه کله په اوبو کښې د لاس داخلونکی په لاس باندې څه نجاست (منی بول وبراز) وغیره لګیدلې وی.(۴)

**د حافظ صاحب توجیه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت شوې دا مختلف آثار په دوو مختلف حالتونوباندې محمول کوی اوداسې به وائی چه کوم وخت لاس نظیف وو اود هغوی یقین وو چه په هغې باندې څه نجاست نه دې لګیدلې نوهغه ئې بغیرد وینځلونه په اوبو کښې داخل کړو اوکله چه دا ګمان او یقین وی چه په لاس باندې څه نجاست لګیدلې وی نوهغه ئې اووینځلو او په

---

(۱) کتاب الطهارة باب اغتسال الجنب: ۲۵۹/۱-۲۵۸رقم: ۹۹۰ولفظه "عبدالرزاق عن ابن جریج قال: أخبرني نافع عن اغتسال عبدالله بن عمر من الجنابة قال: کان یفرغ علی یدیه فیغسلهما، ثم یغرف بیده الیمنی فیصب علی فرجه فیغسله بیده الشمال..... الخ"

(۲) الکنزالمتواری: ۲۰۶/۳-۲۰۵الأبواب والتراجم ص: ۶۱.

(۳) فتح الباری لابن رجب الحنبلی: ۱۵۹/۱.

(۴) شرح ابن بطال: ۳۸۸/۱التوضیح: ۵۷۳/۴ عمدة القاری: ۳۰۸/۳.

اوبو کښې ورداخل کړو او بغیرد وینځلوه لاس اچونکی باره کښې اوفرمائیل چه د هغه باقی پاتې اوبه ناپاك دی.[1]

**فائده**: که چرې د ابن عمر رضی الله عنهما هم دغه مقصد اومطلب وو کوم چه شراح حدیث بیان کړې دې نودې نه دا نتیجه راوځی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به منی نجس ګنړلو.

**دحافظ صاحب دویمه توجیه**: حافظ ابن حجر رحمه الله یوه بله توجیه هم ذکر کړې ده هغه دا چه په اوبو کښې د لاس داخلولو نه وړاندې د لاس وینځل په ندب باندې محمول دی (لکه چه د مصنف عبدالرزاق په روایت کښې دی) اوچرته چه وینځل پریخودې دی هغه د جواز په بیان باندې محمول دی (لکه چه د امام بخاری رحمه الله په ذکر کړې شوی اثر کښې دی).[2]

**دعلامه عینی رحمه الله په حافظ صاحب باندې نقد**: علامه عینی رحمه الله د حافظ صاحب رحمه الله په دې توجیه باندې نقد کولوسره فرمائی چه په دې توجیه سره په دغه مختلف آثاروکښې توفیق حاصل نه شوځکه چه که چرې په لاس باندې نجاست (منی، بول وبراز وغیره) لګیدلی وی نوبیا د بیان جواز دپاره د ترك غسل څه معنی؟ اوکه چرې لاس نظیف وی او په هغې باندې څه نجاست نه وی لګیدلې نوبیاهیڅ حرج نشته (یعنی وینځل اونه وینځل برابر وی).[3]

**دماء مستعمل د طهارت اونجاست بحث**: د جمهور ائمه اربعه مختار اومفتی به مسلك د استعمال شوو اوبو باره کښې دادې چه هغه پاکې دی لیکن غیر مطهر دی. البته امام مالك رحمه الله دماء مستعمل مطهرکیدو هم قائل دې.[4] د فقهاء حنفیه سره ددې چه مفتی به قول اود صحیح روایت مطابق د ماء مستعمل باره کښې هم هغه مسلك دې کوم چه د جمهورو دې.[5] لیکن د بعض فقهاء نه د دې نجاست قول هم نقل دې.[6]

خود نجاست والا روایت هم بې بنیاد اوبې دلیل نه دې دنورو دلائلونه علاوه یودلیل دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما هغه اثردې کوم چه ابن ابی شیبه په قوی سندسره روایت کړې دې اود هغې په حواله سره علامه عینی رحمه الله هم نقل کړی دی چه کوم سړې په حالت دجنابت کښې د اوبونه ډکې لوښی نوباقی اوبه به پلیتیږی.[7]

**د نجاست والا قول د حنفیه تفردنه دې**: د احنافو د فقهاؤ نه کوم ائمه حضراتو چه نجاست ماء مستعمل قول اختیارکړې دې هغه په دې کښې تفردنه دې. حضرت علامه انور شاه کشمیری رحمه الله

---

[1]) فتح الباری: ۴۹۱/۲.

[2]) فتح الباری: ۴۹۱/۲.

[3]) عمدة القاری: ۳۰۸/۳.

[4]) المجموع شرح المهذب: ۱۵۱/۱الشرح الکبیر للقزوینی: ۱۱/۱-۱۰حاشیة الدسوقی: ۷۱/۱-۷۰بدایة المجتهد: ۴۵۹/۱ المنتقی: ۳۱۳/۱-۳۱۲المغنی لابن قدامة: ۲۹/۱-۲۸.

[5]) ردالمحتار: ۱۴۸/۱-۱۴۷البحرالرائق: ۱۷/۱-۱۶۹فتح القدیر مع الهدایة: ۷۸/۱-۷۴ انظرلتفصیل المذاهب: الموسوعة الفقهیة، تحت مادة میاه: ۳۶۳/۳۹-۳۵۹.

[6]) ردالمحتار: ۱۴۸/۱-۱۴۷ البحرالرائق: ۱۷۴/۱-۱۶۹فتح القدیر مع الهدایة: ۷۸-۷۴.

[7]) مرتخریج الأثر آنفاً، عمدة القاری: ۳۰۸/۳.

فرمائي چه فتاویٰ ابن تیمیه رحمه الله کښې دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله نه روایت نقل دې چه دَ جنبي په اوبوکښې لاس وهلوسره هغه اوبه نجس یعني پلیتیږي.(۱).

**دَ نجاست والا دَ قول بنیاد:** دَدې نه پس حضرت کشمیري رحمه الله اوفرمائیل چه دا دواړه مسئلې «دَ ابن عمر رضي الله عنهما اثر اودَ امام احمد رحمه الله قول» دَ ماء مستعمل په نجاست باندې دلالت کوی لکه چه دا دواړه دَ نجاست ماء مستعمل دَپاره «دَ نورو دلائلونه علاوه» دَ یوبنیاد حیثیت لري. (۲)

**دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله رائې:** لامع الدراری کښې حضرت ګنګوهي رحمه الله نه نقل دی چه دَامام بخاري رحمه الله غرض دَدې آثار او احادیثونه دلته ماء مستعمل طهارت او طهوریت دواړه بیانول دی اودا غرض ځکه ثابتیدې نه شی چه دَ جمهورو په نیز دَاوبو استعمال هغه وخت منلې شي کله چه هغې سره دَ څه قربت ادائیګي شوې وی. یا یوحدث زائل کړې شوې وی اودَ امام بخاري رحمه الله استدلال دلته په دې دواړو صورتونوکښې په عدم فرق باندې مبنی دې چه یواستعمال په غسل کښې دَ پلیتني دَ لرې کولودَپاره کیږي او یو استعمال بغیردَ ازاله حدث هم وی. دغه شان امام بخاري رحمه الله په طاهر اوطهور کښې هم دَ فرق خیال نه دې ساتلې.(۳)

**دَعلامه کشمیري رحمه الله رائې:** علامه کشمیري رحمه الله اوفرمائیل چه دَامام بخاري رحمه الله غرض په دې احادیثوسره یوخو په اوبوکښې دَ لاس وهلونه وړاندې لاس وینځل ثابت کول دی اوداهم ثابتوی چه په وخت دَ ضرورت دَ لاس وینځلونه بغیرهم اوبوکښې لاس وهل او لپه ډکولې شي سره دَدې چه شرعا دَدې نه بچ کیدل مطلوب دی او دې نه دَ امام بخاري رحمه الله غرض دَماء مستعمل طهارت ثابتول دی.(۴)

**دَ امام بخاري رحمه الله اوجمهور په رائې کښې توافق:** په دې توجیه سره دَ امام بخاري رحمه الله او جمهور ائمه رائې یوکیږي اودَ امام بخاري رحمه الله رائې دَ ائمه احنافو دَ رائې موافق کیږي. په دې وجه مذکوره توجیه زیاته مناسب او بهترده ځکه چه په دې توجیه سره دَ امام بخاري رحمه الله په نیز هم دَ جمهورو په شان به ماء مستعمل طاهر ګڼړلې کیږي. والله اعلم بالصواب.

**دَتعلیق بخاري رحمه الله نه مستفاد حکم:** امام بخاري رحمه الله دَتعلیق په توګه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او براء بن عازب رضي الله عنهما چه کوم اثر ذکرکړې دې دَهغې نه شراح حدیث دَدې حکم استنباط کړې دې چه کله دَ یوجنبي په لاس باندې دَ نجاست حقیقي نه څه لګیدلې نه وی نوهغه خپل لاس دَ وینځلونه بغیر په اوبوکښې وهلې شی دادَهغه دَپاره جائزدی.(۵)امام عبدالرزاق صنعاني رحمه الله دَ معمر عن جابر په طریق سره او امام ابن ابی شیبه رحمه الله دَ سفیان ثوری عن جابر په طریق سره دَحضرت عامر شعبي رحمه الله نه روایت کړې دې: «کان أصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم یدخلون أیدیهم فی الإناء(۶) وهم جنب والنساء وهن

---

۱) فیض الباري: ۴۶۰/۱الأبواب والتراجم ص: ۶۱ وقد روی مثله ابن رجب الحنبلي في فتح الباري: ۱۶۰/۱ وإن قال:"وهوقول شاذ

۲) فیض الباري: ۴۶۰/۱.

۳) لامع الدراری مع الکنز المتواری: ۲۰۵/۳.

۴) فیض الباري: ۴۶۰/۱.

۵) عمدة القاري: ۳۰۹/۳إرشادالساري: ۴۹۹/۱.

۶) وفي مصنف عبدالرزاق لفظ "الماء" مکان "الإناء".

حیض،لایرون بذلك بأساً،(١) یعني قبل أن یغسلوها» (٢)حضرت عامر شعبی رحمه الله فرمائي چه دَ رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم به دَ جنابت په حالت کښې اوښځې (صحابیات) په حالت دَحیض کښې بغیردَ لاس وینځلونه په لوښی (اوبو) کښې لاس وهلو اوهغوی به په داسې کولوسره هیڅ حرج نه ګڼړلو. مصنف عبدالرزاق کښې دی چه په داسې کولوسره به هغه اوبه نه ناپاکه کیدې.حضرت عائشه بنت سعد رضي الله عنها فرمائي: «کان سعد یأمر جاریته فتناوله الطّهور من الجرّة، فتغمس یدها فیها، فیقال: إنها حائض! فیقول: إن حیضتها لیست فی یدها» (٣)یعنی حضرت سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه به خپلې وینځې ته حکم ورکولو نو هغې به په منګی کښې لاس ورکولوسره اوبه ورکولې، حضرت سعد رضي الله عنه ته اوونیلې شو چه هغه خوحائضه ده. هغوی اوفرمائیل دَ وینځې حیض دَهغې په لاس کښې نه دې. دَدې نه علاوه دَ سلف تابعینودَ یو جماعت نه دَدې جواز نقل دې. په کوموکښې چه ابن سیرین، عطاء، سالم، سعیدبن جبیر او سعید بن مسیب رحمهم الله وغیره شامل دی.(٤)

چنانچه هشام دَ ابن سیرین رحمه الله باره کښې نقل کړی دی چه هغه به دَ بیت الخلاء نه راوتلو بیابه نی دَخپل لاس وینځلونه وړاندې په لوښی کښې وهلو.(٥)هم دغه خبره ابن سیرین رحمه الله دَ عبیده باره کښې نقل کړې ده.(٦)

اعمش رحمه الله وائی چه ما ابراهیم (نخعی) اولیدلو چه هغوی متیازې اوکړې بیادَ لاس وینځلونه وړاندې په لوښی کښې داخل کړو.(٧)حضرت شعبی رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړی دی هغوی فرمائي: «فأدخلهما فی الماء وهوجنب قبل أن یغسلهما، فلابأس» (٨)

که چرې سړې په حالت دَ جنابت کښې وی اوهغه دَ لاس وینځلونه اول په اوبوکښې اووهلو نو په دې کښې هیڅ حرج نشته دې.سعیدبن مسیب رحمه الله فرمائي: «لابأس أن یغمس الجنب یده فی الإناء قبل أن یغسلها» که جنبی دَلاس وینځلونه وړاندې دا په اوبوکښې اووهلو نو په دې کښې هیڅ حرج نشته دې.

**قوله: ولم یر ابن عمر، وابن عباس بأساً بما ینتضح من غسل الجنابة:**

یعني ابن عمر رضي الله عنهما او ابن عباس رضي الله عنهما هیڅ مضائقه اونه ګڼړله په هغه اوبوسره غسل کښې په کوم کښې چه دَ غسل جنابت څاڅکی پریوځی.

---

(١) وفیه:"لایُفسدذلک علیهم" "لایرون بذلک بأساً".

(٢) مصنف عبدالرزاق کتاب الطهارة باب الماء یمسه الجنب أو یدخله: ١/٩٢-٩١رقم: ٣١٠مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة باب فی الرجل یدخل یده فی الماء وهو جنب: ١/٥٠٦رقم:٩٠١.

(٣) مصنف ابن أبی شیبة، کتاب الطهارة [باب] فی الرجل یُدخل یده فی الماء وهو جُنبٌ: ١/٥٠٦رقم:٩٠٠.

(٤) التوضیح: ٤/٥٧٣عمدة القاری: ٣/٣٠٩شرح ابن بطال: ١/٣٨٩-٣٨٨.

(٥) مصنف ابن أبی شیبة کتاب الطهارة [باب] فی الرجل یخرج المخرج فیدخل یده فی الإناء: ٢/٢٨رقم: ١٠٦٠.

(٦) مصنف ابن أبی شیبة کتاب الطهارة [باب] فی الرجل یخرج المخرج فیدخل یده فی الإناء: ٢/٢٨رقم: ١٠٥٩.

(٧) مصنف ابن أبی شیبة کتاب الطهارة [باب] فی الرجل یخرج المخرج فیدخل یده فی الإناء: ٢/٢٨رقم: ١٠٦١ وأخرجه ابن أبی شیبة مثله عن سعید بن جبیر رقم: ١٠٦٢عن سالم رقم: ١٠٦٣وعن ابراهیم رقم: ١٠٦٤.

(٨) مصنف عبدالرزاق کتاب الطهارة باب الماء یمسه الجنب أو یدخله: ١/٩١ رقم: ٣٠٩.

دَ تخريج تعليق: دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وحضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثر كوم چه امام بخارى دَ ترجمة الباب دِپاره په توګه دَتعليق راوړلې دې. په دې كښې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثر په شان اثر عبدالرزاق صنعانى په مصنف كښې په واسطه دَ ابن جريج دَحضرت نافع نه (١)او په واسطه دَ عبدالله بن عمر دَ نافع نه (٢) موصولاً نقل كړې دې.(٣)خو ابن ابى شيبه په خپل مصنف كښې دا په طريق عبدالله بن عمر، نافع نه موصولاً ذكر كړې دى.(٤)

دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثر كوم چه امام بخارى رحمه الله دَ تعليق په توګه راوړلې دې هغه روايت بالمعنى دې. امام عبدالرزاق صنعانى رحمه الله په خپل مصنف كښې سفيان عن العلاء ابن المسيب عن رجلٍ عن إبراهيم په طريق سره دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړې دې چه دَ هغوى نه تپوس اوكړې شو دَهغه سړى باره كښې چه په اوبو سره غسل يا اودس كوى او په هغه اوبو كښې څاڅكى پريوځى (نو دَ دې څه حكم دې؟) ابراهيم رحمه الله وائى چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دې كښې هيڅ حرج اونه ګنړلو. (٥)

امام ابن ابى شيبه هم دا روايت په خپل مصنف كښې حفص عن العلاء بن المسيب، عن حماد عن إبراهيم په طريق دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړى دى او په هغې كښې حضرت ابن عباس فرمائيلى "لابأس به" يعنى په دې كښې هيڅ حرج نشته دى.(٦)

ابن ملقن رحمه الله او علامه عينى رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما مذكوره اثر منقطع ګرځولو سره فرمائى: ((وهو منقطع فيما بين إبراهيم وابن عباس رضى الله عنهما)).(٧) يعنى په دې اثر كښې دَ ابراهيم رحمه الله او ابن عباس رضي الله عنهما په مينځ كښې انقطاع ده.

**شرح تعليق: بما ينتضح من غسل الجنابة:** په لغت كښې ينتضح دَ اوبو څڅيدو او دَ څاڅكو الوتو اوپريوتو ته وائى. (٨)

---

(١) كتاب الطهارة باب مايستنضح فى الإناء من الوضوء والغسل: ٩٢/١رقم: ٣١٤ولفظه: "عن ابن جُريج قال: قلت لنافع: أين كان ابن عمر يجعل إناءه الذى يتوضأفيه؟ قال: إلى جنبه. انتهى"

(٢) كتاب الطهارة باب قطر البول، ونضح الفرج إذا وجدبللاً: ١٥١/١رقم: ٥٨٨ولفظه: "كان ابن عمر إذا توضأ لايغسل أثر البول ولكنه كان ينضح" اهـوأخرجه مثله عن الثورى عن الحسن بن عبيدالله عن أبى الضحىٰ رقم: ٥٨٩وكذلك عن ابن عيينه عن الحسن بن عبيد الله عن مسلم بن صبيح رقم: ٥٩٠.

(٣) تغليق التعليق: ١٥٥/١فتح البارى: ٤٩١/٢عمدة القارى: ٣٠٩/٣ إرشادالسارى: ٤٩٩/١.

(٤) كتاب الطهارة [باب]من كان إذا توضأ نضح فرجه: ٢٠٢/٢رقم: ١٧٨٦ولفظه: "كان ابن عمر إذا توضأ نضح فرجه، قال عبيدالله، وكان أبى يفعل ذلک" اهـوعنه بمعناه عن وكيع عن ابن أبى ذئب عن مولى لابن أزهر، رقم: ١٧٨٨.

(٥) كتاب الطهارة باب ما ينتضح فى الإناء من الوضوء والغسل :٩١/١رقم:٣١٥ولفظه: "عن إبراهيم عن ابن عباس: أنه سئل عن رجل يغتسل أو يتوضأمن الماء وينتضح فيه، قال: فلم يربه بأساً" اهـ

(٦) كتاب الطهارة [باب] فى [الرجل] الجنب يغتسل وينضح من غُسله فى إنائه: ٤٨٢/١رقم: ٧٨٩ انظر تغليق التعليق: ١٥٥/١فتح البارى: ٤٩١/٢عمدة القارى: ٣٠٩/٣إرشادالسارى: ٤٩٩/١.

(٧) التوضيح: ٥٧٤/٤عمدة القارى: ٣٠٩/٣والظاهر أن إبراهيم هوالنخعى، لأن حماد لم يرو إلا عنه، راجع: تهذيب الكمال: ٢٧٠/٧رقم الترجمة: ١٤٧٣والرواية منقطع لأنه لم يثبت لإبراهيم رواية عن ابن عباس رضى الله عنهما ولا لقاء هما" انظر ترجمة ابن عباس رضي الله عنهما فى تهذيب الكمال: ١٥٤/١٥رقم: ٣٣٥٨وترجمة إبراهيم النخعى فيه: ١٠٤/٢رقم: ١٨١.

(٨) لسان العرب تحت مادة: نضح: ١٧٤/١٤ النهاية: ٧٥٤/٢الصحاح ص: ١٠٤٧شرح الكرمانى: ١٢٤/٣.

مطلب دادې چه ابن عباس رضي الله عنهما او ابن عمر رضي الله عنهما د غسل جنابت کونکی د بدن څاڅکی اوڅتیدل او د غسل په اوبو کښې پریوتل خو په دې کښې هغوی هیڅ حرج نه ګڼړلو ځکه چه د دغه څاڅکو نه ځان ساتل ډیر سخت او په مشقت کښې اچونکی کاردې.(۱)

**د تعلیق غرض:** د دې اثرنه د امام بخاری رحمه الله غرض دا ثابتول دی چه د غسل جنابت کونکی خپل تظیف د لاس وینځلو نه بغیر د غسل په اوبو کښې لاس واچولو نو په دې سره د اوبو په اثر کښې هیڅ اثر نه پریوځي. امام بخاری رحمه الله خپله مدعیٰ داسې ثابته کړه چه کله د غسل جنابت کونکی د بدن نه اوڅتیدونکی څاڅکی په اوبو باندې هیڅ اثر نه شی غورزولې اودا نجس کولې نه شی. نودغه شان که چرته مغتسل د لاس وینځلو نه وړاندې لاس په اوبو کښې واچوی نو په دې سره به هم اوبه ناپاکه او نجس کیږی نه. ځکه چه د غسل مکمل کیدونه وړاندې د سړی بدن جنب وی او جنابت نجاست حکمیه وی که چرې د مغتسل د بدن نه الوتونکی څاڅکو اوبه ناپاکه کولې نو په دغه اوبو سره به غسل کول منع کیدل خو چه په دې سره دغه حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم په غسل کولوکښې څه حرج اونه ګڼړلو نوبیا که مغتسل چرته پاك لاس بغیر د وینځلونه په اوبو کښې وهی نو په دې سره به هم په اوبو باندې څه اثر نه کیږی یعنې نه به ناپاکه کیږی.(۲) علامه عینی رحمه الله د ترجمه او اثر په مینځ کښې دا تطبیق تعسف ګرځولې دې.(۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دې دا توجیه هم ممکن ده چه ابن عمر رضي الله عنهما اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دې کښې حرج ځکه نه دې ګڼړلې ځکه چه د دې نه بچ کیدل ډیر زیات ګران او د مشقت والاکار دې نو په دې وجه سره لکه چه هغه شرعًا معفو دی لکه څنګه چه ابن ابی شیبه رحمه الله د حضرت بصری رحمه الله نه نقل کړی دی هغه فرمائی: «ومن يملك انتشار الماء، إنا لنرجو من رحمة الله ما هو أوسع من هذا» یعنی د اوبو د «دغه» څاڅکو نه د بچ کیدو څوك طاقت لرلې شی مونږ خو د الله تعالی د رحمت نه د دې نه هم د زیات وسعت امیدلرو.(۴)

علامه ابن بطال رحمه الله علامه ابن ملقن رحمه الله علامه ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله اود دوی نه نقل کولوسره محشی بخاری علامه سهارنپوری رحمه الله «إنا لنرجو من رحمة الله ما هو أوسع من هذا» د حسن بصری رحمه الله مقوله شمیر کړې ده.(۵) حالانکه د دې قول نسبت حسن بصری رحمه الله ته کول صحیح نه دی. ځکه چه د مصنف ابن ابی شیبه هغه نسخه کومه چه شیخ عبدالفتاح ابوغده رحمه الله یو قابل شاګرد محقق او محدث عصری شیخ محمدعوامه شامی رحمه الله تحقیق او تعلیق سره چهاپ شوې ده په دې کښې په صراحت سره ذکر دی چه «ومن يملك انتشار الماء» د حسن بصری رحمه الله قول دې او «إنا لنرجو من رحمة ربنا ما هو أوسع من هذا» د ابن سیرین رحمه الله قول دې.(۶)

---

(۱) إرشادالساری: ۴۹۹/۱ تحفة الباری: ۲۲۵/۱.
(۲) فتح الباری: ۴۹۱/۲ عمدة القاری: ۳۰۹/۳.
(۳) عمدة القاری: ۳۰۹/۳.
(۴) فتح الباری: ۴۹۱/۲.
(۵) شرح ابن بطال: ۳۸۹/۱ التوضیح: ۵۷۴/۴ فتح الباری: ۴۹۱/۲ عمدة القاری: ۳۰۹/۳ صحیح البخاری ص: ۴۰.
(۶) کتاب الطهارة باب فی الجنب یغتسل ـ وینضح من غسله فی إنائه: ۴۸۲/۱ رقم: ۷۹۶ راجع حاشیة التوضیح: ۵۷۴/۴.

دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما وحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په شان قول دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه ابن سيرين رحمه الله ابراهيم نخعي رحمه الله اوحسن بصري رحمه الله وغيره نه هم نقل دې لکه څنګه چه ابن التين رحمه الله وغيره ذکر کړې دي.(۱)

ابن ابی شيبه رحمه الله په مصنف کښې دَدې ټولو حضراتو دَ آثارو تخريج کړې دې.(۲) خو امام عبدالرزاق صنعاني رحمه الله په خپل مصنف کښې دَدوی نه علاوه عطاء بن ابی رباح رحمه الله او انس بن مالک رحمه الله نه دَ بخاری رحمه الله دَ تعليق په شان قول نقل کړې دې.(۳)

**احتياطی لارخ:** معمر دَ جعفر بن برقان نه نقل کړې دی چه ميمون بن مهران رحمه الله به غسل کولووخت کښې لوښې په اوچت ځائی باندې کيخودلو دې دَ پاره چه په دې کښې دَ بدن دَغسل دَ اوبو څاڅکی پرينوځی.(۴). ښکاره خبره ده چه دَهغوی دا عمل په انتهائی درجه احتياط باندې مبنی وو.

**دَامام ابويوسف رحمه الله قول:** علامه عينی رحمه الله فرمائيلی دی چه دَ بخاری رحمه الله تعليق سره نيزدې دَ امام ابويوسف رحمه الله هغه قول هم دې په کوم کښې چه هغوی دَهغه مونځ ګذارباره کښې اوفرمائيل په چا باندې چه دَ يودرهم نه زيات دَ متيازو څاڅکی پريوتی وی نو په دې سره به مونځ نه فاسد کيږی. بلکه هغه له پکار دی چه هغه دې لاړشی اوهغه متاثره ځائی دې اووينځی او واپس دې راشی په خپل مونځ دې بنا اوکړی.(۵)

## الحديث الأول

۲۴۱- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، أَخْبَرَنَا أَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنِ القَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، تَخْتَلِفُ أَيْدِينَا فِيهِ» [حديث باب](۶)

(۱) شرح ابن بطال: ۲۸۹/۱التوضيح: ۵۷۴/٤عمدة القاري: ۳۰۹/۳فتح الباری لابن رجب الحنبلی: ۱۶۲/۱.

(۲) مصنف ابن أبی شيبة كتاب الطهارة باب فی الجنب يغتسل وينصح من غسله فی إنائه: ۴۸۴/۱-۴۸۲رقم: ۷۸۹إلی ۷۹۶.

(۳) كتاب الطهارة باب ما ينتضح فی الإناء من الوضوء والغسل: ۹۳/۱-۹۲رقم: ۳۱۳-۳۱۲، ۳۱۶.

(۴) كتاب الطهارة باب ما ينتضح فی الإناء من الوضوء والغسل: ۹۳/۱-۹۲رقم: ۳۱۷.

(۵) عمدة القاري: ۳۰۹/۳.

(۶) الحديث أخرجه البخاری أيضاً فی كتاب الغسل باب غسل الرجل مع امرأته رقم الحديث: ۲۵۰ وفی باب تخليل الشعر حتى إذا ظن أنه قدأروى بشرته أفاض عليه رقم: ۲۷۳وفی كتاب الحيض باب مباشرة الحائض رقم: ۲۹۹وفی كتاب اللباس باب ما وطئ من التصاوير رقم: ۵۹۵۶ وفی كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة باب ما ذكر النبی صلى الله عليه وسلم وحضّ على اتفاق أهل العلم وما اجتمع عليه الحرمان: مكة والمدينة وما كان بهما من مشاهد النبی صلى الله عليه وسلم والمهاجرين والأنصار ومصلى النبی صلى الله عليه وسلم والمنبر والقبر رقم: ۷۳۳۹وأخرجه مسلم فی صحيحه فی كتاب الحيض فی باب القدر المستحب من الماء فی غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة فی إناء واحد فی حالة واحدة، وغسل أحدهما بفضل الآخر رقم: ۳۱۹وأبوداؤد فی الطهارة فی باب مقدار الماء الذی يجزئ به

**ترجمه**: مونږ ته عبدالله بن مسلمه بيان اوکړو چه وئې وئيل مونږ ته افلح هغه دَ قاسم بن محمد نه هغوی دَ حضرت عائشه ﷺ نه نقل کړل چه حضرت عائشه ﷺ اوفرمائيل چه ما اونبی اکرم ﷺ «دواړو يوځائی» په يولوښې سره داسې غسل کولو چه زمونږ لاس به وار په وار په هغې کښې ورتللو.

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمه**: دادَ موطاامام مالك رحمه الله راوی عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبی، حارثی، بصری رحمه الله دې. دَ دوی کنيت ابوعبدالرحمن دې اودَدوی جلالت شان او توثيق باندې ټول ائمه متفق دی. دَدوی مختصر حالات **کتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن** دَ ړومبی حديث په ذيل کښې بيان کړې شوی دی.(١)

**قوله :أفلح**:دا دَ صحيحين او سنن ابی داؤد او نسائی راوی افلح بن حميد بن نافع مدنی انصاری مجاری رحمه الله دې. (٢)ابوعبدالرحمن دَدوی کنيت دې هم دغه معروف دی.(٣)

خوعلامه عبدالغنی مقدسی رحمه الله ابومحمد کنيت نقل کړې دې.(٤)علامه مزی رحمه الله علامه عبدالغنی مقدسی باندې نقد کولوسره فرمائی چه ابومحمد خودَ دوی نه پس دَ کوم راوی ترجمه چه ذکر کړې شوې ده دَهغه کنيت دې اوهغه افلح بن سعيد انصاری رحمه الله دې دَ هغوی کنيت هم ابوعبدالرحمن دې.(٥) دوی ته ابن صفيرا هم وئيلې شی دَ صفون بن اوس دَ موالی نه دې.(٦)

**شيوخ حديث**: افلح بن حميد رحمه الله چه دکوم شيوخ او محدثين کرام نه احاديث مبارکه روايت کړې دی په هغوی کښې دهغوی والد ماجد حميد بن نافع، سليمان بن عبدالرحمن بن جندب انصاری، عبدالرحمن بن قاسم بن محمد، قاسم بن محمد بن ابوبکرصديق او ابوبکر ابن محمد بن عمرو بن حزم رحمهم الله وغيره شامل دی.(٧)

**تلامذه**: دَهغوی رحمه الله نه حديث مبارك نقل کونکوکښې اسحاق بن سليمان رازی، حاتم بن اسماعيل، حماد بن خالد الخياط، حماد بن زيد، خالد بن عبدالله واسطی، سفيان ثوری، عبدالله بن نمير،

---

الغسل رقم: ٢٣٨ والترمذی فی سننه فی کتاب اللباس ماجاء فی الجمة واتخاذ الشعر رقم: ١٧٥٥، والنسائی فی الطهارة فی باب ذکر القدر الذی يکتفی به الرجل من الماء للغسل رقم: ٢٢٩ وأيضاً فيه، باب ذکر الدلالة علی أنه لاوقت فی ذلک رقم: ٢٣٢ وأخرجه ابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة باب الرجل والمرأة يغتسلان من إناء واحد رقم: ٣٧٦وانظر جامع الأصول فی أحاديث الرسول رقم: ٥٣٣٣.

(١) کشف الباری: ٨٠/٢

(٢) الإصابة: ١١٠/١الطبقات: ٨٦/٥ کتاب الثقات لابن حبان: ٨٣/٦ الجرح والتعديل: ٢٥٠/٢، تهذيب الکمال: ٣٢١/٢تاريخ الإسلام: ٣٩٧/٢ ميزان الاعتدال: ٢٧٤/١ التاريخ الکبير: ٥٢/٢تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١.

(٣) تهذيب الکمال: ٣٢١/٣ميزان الاعتدال: ٢٧٤/١.

(٤) تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١تعليقات تهذيب الکمال: ٣٢١/٣.

(٥) تعليقات تهذيب الکمال: ٣٢١/٣.

(٦) تهذيب الکمال: ٣٢١/٣تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١.

(٧) تهذيب الکمال: ٣٢١/٣تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١الجرح والتعديل: ٢٥٠/٢.

عبدالله بن وهب، عبدالكبير بن عبدالحميد حنفي، عبدالملك بن عمرو عقدی، عثمان بن عمر بن فارس، عمر بن ايوب موصلی، ابونعيم فضل بن دكين، قاسم بن يزيد جرمی، محمدبن اسماعيل بن ابوفديك، محمدبن عمر واقدی، معافی بن عمران موصلی، وكيع بن الجراح، يحيی بن ازهر مصری، يحيی بن زكريا بن ابی زائده او ابوالقاسم بن ابوزناد رحمهم الله وغيره شامل دی. [1]

علامه مزی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه عبدالله ابن مسلمه قعنبی رحمه الله دَهغوی هغه شاګرد دې چاچه دَ ټولونه په آخره کښې حديث روايت کړی دی يعنی قعنبی رحمه الله دَهغوی آخری شاګرد دې. [2]

**دَ ائمه جرح اوتعديل توثيقی احوال:** ابن حبان رحمه الله په ثقات کښې دَهغوی تذکره فرمائيلې ده. [3] او امام بخاری رحمه الله التاريخ الکبير کښې دَ هغوی تذکره کړې ده. [4]

عبدالله بن احمدبن حنبل رحمه الله وائی چه ما دَخپل پلار امام احمدبن حنبل رحمه الله نه دَافلح بن حميدباره کښې پوښتنه اوکړه نوهغوی اوفرمائيل **صالح**. [5]

ابن ابی حاتم رحمه الله وائی چه ما دَخپل پلار امام ابوحاتم رحمه الله نه دَافلح بن حميدباره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائيل "**ثقة لابأس به**" [6]

امام نسائی رحمه الله اوفرمائيل "**ليس به بأس**" [7]

ابن سعد رحمه الله فرمائی "**كان ثقة قليل الحديث**" [8]

ابواحمدبن عدی دَ يحيی بن محمدبن ساعد نه نقل کړی دی چه امام احمد رحمه الله دَ افلح بن حميد رحمه الله دَ روايت په دې الفاظو «**لأهل العراق ذات عرق**» سره منکر ګرځولو. [9]

ابن عدی رحمه الله فرمائی چه دَافلح بن حميد رحمه الله نه ثقه خلق روايت کوی هغه زما په نيز صالح الحديث دې. زما اميد دې چه دهغوی ټول احاديث مستقيم دی البته دَ مذکوره حديث، معافی بن عمران تفرددې. [10]

ابن عدی رحمه الله نور فرمائی چه اما احمد رحمه الله دَ افلح بن حميد رحمه الله دَ مذکوره روايت صرف دا لفظ «**ولأهل العراق ذات عرق**» منکر ګرځولې دې خو دَ دې حديث باقی متن او سندباندې هيڅ کلام نه دې کړې اونه ئی دا منکر ګرځولی دی. [11]

---

[1] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲-۳۲۱تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷الجرح والتعديل: ۲/۲۵۰.

[2] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۱تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[3] كتاب الثقات: ۶/۸۳.

[4] التاريخ الكبير: ۲/۵۲.

[5] الجرح والتعديل: ۲/۲۵۰تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲ تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[6] الجرح والتعديل: ۲/۲۵۰تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲ تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[7] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[8] الطبقات الكبرى: ۵/۸۶حافظ ابن حجر رحمه الله قليل په ځائی كثير الحديث نقل كړي دي تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[9] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷ميزان الاعتدال:۱/۲۷۴.

[10] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۲تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷.

[11] تهذيب الكمال: ۳/۳۲۳تهذيب التهذيب: ۱/۳۶۷. إليک نص الحديث: "وقّت رسول الله صلى الله عليه وسلم لأهل المدينة ذا الحليفة، ولأهل الشام ومصر الجحفة ولأهل اليمن يلملم ولأهل العراق ذات عرق ـ

معافى بن عمران ﷫ ثقه راوي دې لکه څنګه چه پخپله دامام احمد ﷫ نه روايت دې.(١) اومعروف قاعده ده چه دَ ثقه زياتوالي مقبول وى.(٢) په دې وجه دا الفاظ منکر ګرځولو په ځائې دَ ثقه دَ زياتوالي په رنړاکښې به مقبول ګنړلې شي. چنانچه علامه ذهبي ﷫ ميزان الاعتدال کښې دابن عدي ﷫ دَمعافي بن عمران ﷫ دَ تفرد والا قول نقل کولونه پس فرمائي: «هو صحيح غريب» يعني مذکوره روايت صحيح غريب دې (٣)امام ابوداؤد ﷫ دَمعافى بن عمران په واسطه سره دَ حضرت عائشه ﵂ نه دا زيادت نقل کړې دې.(٤) او امام بخاري ﷫ په خپل صحيح کښې «باب: ذات عرق لأهل العراق» په الفاظوسره ترجمه قائمه کړه، دَ حضرت عمر ﵁ نه دَ اهل عراق دَ پاره ذات عرق ميقات مقررکول نقل کړې دى په کوم سره چه دَمعافى بن عمران دَدې زيادت تائيد کيږي. (٥)

**وفات:** ابن حبان ﷫ فرمائيل چه افلح بن حميد ﷫ نابينا شوې ووڅ ۸۰کالو په عمرکښې ۱۴۰هجري کښې وفات شوې وو.(٦)

حافظ ابن حجر﷫ وغيره دَ ابن حبان طرف ته منسوب کولوسره دَ وفات کال ۱۶۵هجري نقل کړې دې(٧)علامه واقدي ﷫ فرمائي چه ۸۰کالو په عمرکښې ۱۵۸هجري کښې وفات شوې.(٨) اودَ ابن حبان ﷫ والا ۱۵۸هجري قول ئې قيل سره نقل کړې دې. (٩)علامه مزي ﷫ ۱۵۶هجري هم يوقول نقل کړې دې. (١٠)

**القاسم:** دامشهور محدث وفقيه قاسم بن محمد بن ابوبکرصديق ﷫ دې. دَدوى تفصيلي احوال باب من بدأ بالحلاب أو الطيب دَ رومبي حديث په ذيل کښې بيان شوى دى.(١١)

**عائشة رضي الله عنها:** دا دَ حضورپاك دَ ټولو نه زياته محبوبه زوجه محترمه ام المؤمنين طيبه طاهره اوصديقه کائنات سيده عائشه صديقه بنت سيدناحضرت صديق اکبر ﵄ ده. دَهغوى ﵂ مختصرحالات بدء الوحى دَ دويم حديث لاندې بيان کړې شوى دى.(١٢)

## شرح حديث

---

(١) تعليقات تهذيب الكمال: ٣٢٢/٣.

(٢) دَتفصيل دَپاره اوګورئى النكت على كتاب ابن الصلاح: ٦٧٦-٧٠١/٢.

(٣) ميزان الاعتدال: ٢٧٤/١.

(٤) وقدأخرج أبوداؤد فى سننه بسنده عن المعافىٰ بن عمران عن أفلح، يعنى ابن حميد، عن القاسم بن محمد، عن عائشة: "أن رسول الله صلى الله عليه وسلم وقّتَ لأهل العراق ذات عرق" (كتاب المناسک باب فى المواقيت رقم الحديث: ١٧٣٩.)

(٥) كتاب الحج باب ذات عرق لأهل العراق رقم الحديث: ١٥٣١.

(٦) كتاب الثقات: ٨٣/٦.

(٧) تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١تعليقات تهذيب الكمال: ٣٢٣/٣.

(٨) تهذيب الكمال:٣٢٣/٣تهذيب التهذيب: ٣٦٧/١.

(٩) كتاب الثقات: ٨٣/٦

(١٠) تهذيب الكمال: ٣٢٣/٣.

(١١) اوګورئى ص: ٤٣٩.

(١٢) كشف البارى: ٢٩١/١.

**قوله: كنت أغتسل أنا والنبي صلى الله عليه وسلم:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما او نبى كريم ﷺ به دواړو په يوځائى غسل كولو. لفظ النبي مرفوع او منصوب دواړه شان لوستلې كيدې شى.(١) دَمرفوع كيدو په صورت كښې به دَدې عطف دكنت په ضميرياندې مرفوع وى. دَ صحت عطف دَپاره أنا ضمير منفصل راوړلې شوې دې. دَ نصب په صورت كښې به مفعول وى او واؤ به دَ پاره دَ مصاحبت وى. (٢)معنى به داشى چه ما به دَ نبى كريم په مصاحبت كښې غسل كولو(٣)من إناءواحد يعنى مونږ دواړو به هم دَ يولوښى نه لپې ډكول. (٤)

**قوله: تختلف أيدينا فيه:** يعنى زمونږ لاسونه به نمبر په نمبر په دغه لوښى كښې پريوتل. تختلف أيدينا فيه دا جمله محلاً منصوب ده ځكه چه دا "إناءواحد" نه حال واقعه كيږى. نحوى قاعده ده چه جمله معرفه نه پس واقع وې نو حال جوړيږى او نكره نه پس چه واقع شى نو صفت جوړيږى. خو لفظ إناء دلته موصوف كيدو دَ وجې نه معرفه دې په دې وجه دَ مابعد جمله به دَدې نه حال جوړيږى.(٥)

دَ اختلاف ايدى نه مراد ادخال او اخراج دې يعنى كله به حضرت عائشه رضي الله عنها خپل لاس په لوښى كښې اچولودَ لپې دكولودَپاره. كله چه به هغې خپل لاس بهر راويستلو نوحضورپاك به خپل لاس مبارك په لوښى كښې اچولو اوكله به دَدې برعكس كيدل.(٦)

**دَ حديث باب دَمختلف طرق وضاحت:** دَحديث باب متن زهرى عن عروة عن عائشة رضي الله عنها په طريق سره «باب غسل الرجل مع امرأته» په رومبى حديث كښې تيرشوى دى البته دَدې په آخره كښې «من قدح يقال له الفرق» اضافه ده او «تختلف أيدينا فيه» په دې كښې نقل نه دى. (٧)

امام مسلم رحمه الله كتاب الحيض كښې افلح بن حميدعن القاسم بن محمد عن عائشة رضي الله عنها په طريق سره داحديث نقل كړې دې اودَدې په آخره كښې «من الجنابة» الفاظو زيادت نقل دى. (٨)

امام مسلم رحمه الله معاذة عن عائشة رضي الله عنها په طريق سره دا روايت نقل كړې دې دَدې په آخره كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى «فيبادرني حتى أقول: دع لى، دع لى» (يعنى حضورپاك به په اوبواخستلوكښې زما نه مخكښې والې كولو نومابه هغوى ته وئيل اول ما اخستو ته پريږده.

---

(١) شرح الكرمانى: ۱۲٤/۳.
(٢) عمدة القارى: ۳۱۰/۳إرشادالسارى: ٤٩٩/١.
(٣) إرشادالسارى: ٤٩٩/١.
(٤) إرشادالسارى: ٤٩٩/١.
(٥) عمدة القارى: ۳۱۰/۳إرشادالسارى: ٤٩٩/١.
(٦) شرح الكرمانى: ۱۲٤/۳فتح البارى: ٤٩٢/٢عمدة القارى: ۳۱۰/۳الكوثر الجارى: ٤١٨/١.
(٧) رقم الحديث: ۲۵۰.
(٨) باب القدر المستحب من الماء فى غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة فى إناء واحد فى حالة واحدة وغسل أحدهما بفضل الآخر، رقم الحديث: ۷۳۱.

دَ امام نسائي رحمه الله په روايت كښې دي: «يبادرني وأبادره حتى يقول: دعي لي» (۱)
يعنى حضورپاك به زمانه رومبې كيدلو كوشش كولو اومابه دَهغوى نه دَ وړاندې كيدلو كوشش كولو نوحضورپاك به ماته فرمائيل چه اول ما پريږده چه اوبه واخلم.
**"تلتقي" دَ راوى ادراج دې:** ابوعوانه او ابن حبان رحمه الله حديث باب دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه «ابن وهب عن أفلح أنه سمع القاسم» په طريق سره نقل كړې دې په دې كښې «تختلف أيدينا فيه» نه پس "تلتقي" اضافه ده يعنى كله چه به مونږ نمبر په نمبر دَ اوبو اخستلودَپاره په لوښى كښې لاس وركولو نوكله به په كښې زمونږ لاسونه جنګيدل.(۲)
واضحه دې وى چه دَ تلتقي الفاظ دَحديث حصه نه ده بلكه دَ راوى دَطرف نه ادراج دې لكه چه راوى دَ وتلتقي نه دِ تختلف أيدينافيه تفسير او وضاحت كړې دې. چنانچه امام اسماعيلي هم دغه روايت افلح نه دَ اسحاق بن سليمان په واسطه سره نقل كړې دې په دې كښې «وتختلف أيدينا فيه» نه پس يعنى وئيلوسره "حتى تلتقي" الفاظ راوړلى دى يعنى زمونږ لاسونه به په خپل مينځ كښې جنګيدل.(۴)
هم دغه شان امام بيهقي رحمه الله حديث باب په خپل سندسره نقل كولونه پس فرمائي «رواه ابن وهب عن أفلح وزاد في الحديث "وتلتقي" وقال إسحاق بن سليمان الرازي عن أفلح يعني وتلتقي» (۵)
يعنى داحديث ابن وهب دَ افلح نه نقل كړې دې او په دې كښې ئې وتلتقي اضافه هم كړې ده. خو اسحاق بن سليمان رازي دَ افلح نه روايت كولوسره يعني وئيلوسره وتلتقي الفاظ اضافه نقل كوي.
حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عيني رحمه الله په دې طرق دَحديث باندې بحث كولوسره ليكلي دي چه ددې نه معلوميږي چه وتلتقي دَ راوى دَ طرف نه ادراج دې.(۶)
**دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت په دې توګه دې چه په ترجمة الباب كښې راغلي دي چه دَ جنبي په لاس باندې تركومې پورې څه نجاست نه وي لګيدلې نوهغه دَ وينځلو نه اول دَ غسل دَاوبو په لوښى كښې وهلې شي. په دې باندې دَ حديث باب الفاظ «تختلف أيدينافيه» دلالت كوي. ښكاره خبره ده چه اختلاف الأيدي خو په ادخال يعنى دَ لاسونو په لوښى كښې هم وهلوسره متحقق كيدې شي. دې نه معلوميږي چه دا عمل اوبه نه فاسد كوي. دادَ علامه

---

(۱) باب القدر المستحب من الماء في غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة في إناء واحد في حالة واحدة وغسل أحدهما بفضل الآخر، رقم الحديث: ۷۳۲.
(۲) كتاب الطهارة باب الرخصة فى ذلك رقم: ۲۴۰وكتاب الغسل والتيمم باب الرخصة في ذلك، رقم: ۴۱۴.
(۳) مسندأبي عوانة، كتاب الطهارة باب الإباحة للرجل أن يغتسل بفضل المرأة: ۳۲۹/۱رقم: ۸۱۲صحيح ابن حبان بترتيب ابن بلبان، باب نواقض الوضوء، ذكر خبرفيه كالدليل على أن الملامسة للرجل من امرأته لايوجب الوضوء عليها رقم: ۱۱۱۱.
(۴) فتح الباري: ۴۹۲/۲عمدة القاري: ۳۱۰/۳.
(۵) السنن الكبرى كتاب الطهارة باب الدليل على طهارة عرق الحائض والجنب رقم: ۸۸۵
(۶) فتح الباري: ۴۹۲/۲عمدة القاري: ۳۱۰/۳.

عینی رحمه الله توجیه ده.(۱) خو علامه قسطلانی رحمه الله بالکل هم دغه توجیه کولونه پس لیکی چه د اوبونه مفسد کیدل به هغه وخت وی کله چه دغسل کونکی په لاس باندې په یقینی توګه څه پلیتی نه وی لګیدلې.(۲)

**دعلامه کرمانی رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله توجیه:** دا حضرات فرمائی چه کله د جنبی دپاره د غسل دوران کښې د تمامیت غسل په ذریعه د پلیتئی د لرې کولونه وړاندې په لوښی کښې لاس داخلول اولپه د کول جائز دی لکه چه د حدیث باب نه معلومه شوه نود غسل جنابت په شروع کښې هم داسې کول جائز دی. باقی پاتې شوه خبره د هغه احادیثو په کوم کښې چه په لوښی کښې د لاس داخلولو نه وړاندې د وینځلو حکم وارد شوې دې نوهغه د جنابت د وجې نه نه بلکه په دې وجه دې چه کیدې شی چه طهارت حاصلونکی په لاس باندې د نجاست یقینی ګمان وی.(۳)

**یواعتراض:** که چرې څوك دا اووائی چه حدیث باب مطلق دې خودّې نه پس چه د هشام رحمه الله کوم روایت دې په هغې کښې خود غسل جنابت نه وړاندې دلاس وینځل ذکر دی نو په دواړو روایتونو کښې به څنګه موافقت کیږی؟ (۴)

**دعلامه کرمانی رحمه الله وغیره جواب:** ددې اعتراض جواب ورکولوسره علامه کرمانی رحمه الله وغیره فرمائی چه د هشام حدیث په ندب باندې محمول دې او حدیث باب په جواز باندې، یا دا چه حدیث باب مطلق دې او حدیث هشام مقید دې. مطلق په مقید باندې محمول کولوسره دواړو خایونوکښې به حکم لګولې کیږی. رسول الله ﷺ به همیشه د غسل جنابت نه وړاندې لاسونه وینځل.(۵)

که څوك دا اعتراض اوکړی چه په ترجمة الباب کښې خو «إذا لم یکن علی یده قذر» سره مقید دې اوحدیث باب مطلق دې لهذا په دواړو کښې مطابقت پاتې نه شو.(۶)

**دعلامه عینی رحمه الله جواب:** علامه عینی رحمه الله ددې اعتراض جواب ورکولوسره فرمائی چه په ترجمة الباب کښې کوم قید ذکر دې په حدیث باب کښې به هم دهغې رعایت ساتلې شی. په حدیث باب کښې د ترجمة الباب والاد قید رعایت باندې قرینه داده چه چه د حضورپاك او سیده عائشه رضی الله عنها شان ددې نه اوچت دې چه هغوی دې د وینځلونه وړاندې لاس په لوښی کښې داخل کړی اودهغوی په لاس داسې یوشئ لګیدلې وی چه اوبه پلیتې کړی. په دې باندې د ټولو نه زیاته قوی قرینه دحضرت هشام رحمه الله وړاندې راتلونکې روایت دې په کوم کښې چه په صراحت سره ذکر دی چه رسول الله ﷺ به د غسل جنابت نه وړاندې خپل لاس مبارك وینځل هم دغه په دې مقام باندې تحقیقی خبره ده خود علامه کرمانی رحمه الله یو ندب اوبل جواز باندې محمول کول د تحقیق نه لرې خبره ده.(۷)

---

۱) عمدة القاری: ۳۰۹/۳.
۲) إرشادالساری: ۵۰۰/۱.
۳) شرح الکرمانی: ۱۲۶/۳-۱۲۵فتح الباری: ۴۹۲/۲.
۴) شرح الکرمانی: ۱۲۶/۳فتح الباری:۴۹۳/۲إرشادالساری: ۵۰۰/۱.
۵) شرح الکرمانی: ۱۲۶/۳.
۶) عمدة القاری: ۳۰۹/۳.
۷) عمدة القاری: ۳۰۹/۳.

**دَحديث باب نه مستنبط شوى امور:** دَحديث باب نه دا امور مستنبط كړې شوى دى: ① دَدې حديث نه معلومه شوه چه جنبى دَ غسل والالوبنى نه دَ اوبو لپه دِكولې شى او په باقى پاتې اوبو سره پاكوالې حاصلول جائزدى.[1]

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله استنباط:** حافظ صاحب رحمه الله فرمائى چه كله دَحديث باب نه دا معلومه شوه چه دَ ماء قليل نه لپه دِكولې شى او په دغه اوبو اوباقى پاتې اوبوسره پاكى حاصلول جائزدى. نوبيا داپه دې خبره باندې دلالت كوى چه دَ جنبى دَپاره په ماء دائم كښې غوپه لګولونهى دَ اوبودَ ګنده كيدونه دَ بچ كيدلودَپاره دى. په دې وجه سره نه دى چه دَ جنبى په غوپه لګولوسره هغه اوبه پليتيږى ځكه چه دَ جنبى په بدن او لاس كښې هيڅ فرق نشته دې. كله چه صرف په لاس داخلولوسره اوبه نه پليتيږى نو بياپه غوپه لګولوسره به هم نه پليتيږى.[2]

**دَعلامه عينى رحمه الله په حافظ صاحب باندې نقد:** علامه عينى رحمه الله دَحافظ صاحب په دغه پورتنئ توجيه باندې نقد كولوسره فرمائى چه دَ بعض خلقو داكلام على الاطلاق صحيح نه دې ځكه چه كه جنب په ماء دائم كښې غوپه اولګوله نوهغه اوبه به دَ دوو حال نه خالى نه وى يا خوبه هغه ماء كثير وى يا قليل. كه چرې كثير وى نوپه داسې توګه به هغه داسې لوئى تالاب وى دكوم دَ يوطرف اوبو ته چه په حركت وركولوسره بل طرف ته حركت نه كيدلو نودَجنبى په داسې ماء دائم كثير كښې غوپه لګول مفسد نه دى البته كه اوبه لږې وى اوهغه دَ غدير عظيم مقدار ته نه رسيږى نوبيا دَ جنبى په داسې ماء دائم قليل كښې غوپه لګول مفسد للماء دى. باقى دا چه په دې سره به جنبى ته پاكوالې حاصليږى كه نه په دې كښې اختلاف دى.[3]

## الحديث الثاني

٢٣٣ - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ غَسَلَ يَدَهُ»[حديث باب ٢]

---

[1] عمدة القاري: ٣١٠/٣.

[2] فتح الباري: ٤٩٢/٢.

[3] عمدة القاري: ٣١٠/٣.

[4] الحديث أخرجه البخاري أيضاً في كتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل رقم: ٢٤٨وأيضاً في باب تخليل الشعر حتى إذا ظن أنه قد أروى بشره أفاض عليه رقم: ٢٧٢ومسلم في صحيحه كتاب الحيض باب صفة الغسل من الجنابة رقم: ٣١٦وأبوداؤد في سننه في كتاب الطهارة باب في الغسل من الجنابة رقم: ٢٤٢وأخرجه الترمذي في جامعه أبواب الطهارة باب ماجاء في الغسل من الجنابة رقم: ١٠٤ والنسائي في سننه كتاب الطهارة ذكر وضوء

**ترجمه:** مونږ ته مسدد بیان اوکړو وئی وئیل چه اووئیل مونږ ته حماد هغه دَ هشام نه هغه دَخپل پلار عروه نه هغوی دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کړی دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی رسول الله ﷺ چه به کله دَ جنابت غسل کولو نو (اول) به ئی خپل لاس وینځلو.

## تراجم رجال

**حدثنا مسدد:** دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل بن ارندل بن سرندل بن غرندل بن ماسك بن مستورد اسدی دې. داهم وئیلی شی چه دَدوی نوم عبدالملك بن عبدالعزیز دې اومسدد ئی لقب دې. دَدوی مختصر حالات کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه او تفصیلی حالات کتاب العلم باب من خص بالعلم قوماً دون قوم کراهیة أن لایفهموا په ذیل کښې تیرشوی دی. (١)

**حدثنا حماد:** داحماد بن زید بن درهم ازدی بصری رحمه الله دې. په دې وجه امام بخاری رحمه الله دَ حماد بن سلمه نه روایت نه دې نقل کړې. (٢) دَدوی حالات کتاب الإیمان باب ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ فسماهم المؤمنین لاندې بیان کړې شوی دی. (٣)

**عن هشام:** دادَجلیل القدر تابعی عروه بن زبیر خوئی ابوالمنذر هشام بن عروه اسدی مدنی دې. دَدوی مختصر حالات بدء الوحی لاندې اوتفصیلی حالات کتاب الإیمان لاندې لیکلې شوی دی. (٤)

**عن أبیه:** دادَ هشام پلار حضرت عروه بن الزبییر بن العوام رحمه الله دې. دَدوی احوال بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې مختصراً او کتاب الإیمان باب أحب الدین إلی الله لاندې تفصیلاً بیان شوی دی. (٥)

**عن عائشة:** دا حرم نبوت ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه بنت صدیق اکبر رضي الله عنها ده. (٦)

## شرح حدیث

**قوله:** كان رسول الله ﷺ إذا اغتسل من الجنابة غسل یده: رسول الله ﷺ چه به کله دَ جنابت غسل کولو نو (اول) به ئی خپل لاس وینځلو.

**دَ سابقه حدیث تفسیر:** علامه عینی رحمه الله لیکلی دی چه داحدیث یعنی حدیث هشام دَ سابقه حدیث تفسیر کوی. ځکه چه په وړاندې حدیث کښې «اختلاف الأیدي في الإناء» تذکره وه چه دَ خپل ظاهر په اعتبارسره دوه شان احتمال لری. "أیدیهما" کښې ید نه پاك لاس هم مراد اخستې شی اوهغه لاس هم په کوم چه دَ جنابت نه علاوه څه نجاست لګیدلې وی په کوم سره چه اوبه ناپاکه کیدې شی. خود هشام

---

الجنب قبل الغسل رقم: ٢٤٨ راجع تحفة الأشراف مسند عائشة رقم: ١٧١٦٤ وكذلك جامع الأصول كيفية الغسل: ٥٣١٩.

١) كشف الباري: ٤/٥٩٠-٤٨٨.

٢) عمدة القاري: ٣/٣١١.

٣) كشف الباري: ٢/٢١٩.

٤) كشف الباري: ١/٢٩١، ٢/٤٣٦-٤٣٢.

٥) كشف الباري: ١/٢٩١، ٢/٤٣٦.

٦) دَهغوی رضي الله عنها حالات كشف الباري: ١/٢٩٥-٢٩١ بدء الوحی دَدویم حدیث لاندې بیان شوی دی.

رحمه الله په حدیث کښې دا صراحت دې چه حضورپاك به کله دَ جنابت دَ غسل اراده کوله نواول به ئې لاسونه وینځل اوبیابه ئې په لوښی کښې خپل لاس مبارك وهلو. ښکاره خبره ده چه دَ لاس وینځلو نه پس صرف جنابت حکمی دَ وجې نه هغه په لوښی کښې وهل مفسدللماء نه دې. دا ټول تفصیل هغه وخت دې کله چه سابقه حدیث دَ نجاست ظاهری دَ نه لګیدو په یقین باندې محمول کړې شی اودَ حدیث هشام ظاهر ښائی چه حضورپاك په لوښی کښې دَخپل لاس مبارك داخلولونه اول لاس مبارك وینځلې وو حضورپاك ته دَهغې دَ طهارت تیقن نه وو. (١)

**دَ امام مهلب توجیه:** امام مهلب رحمه الله دوارو احادیثوکښې دَ ظاهری تعارض ختمولودَپاره دواړه راجمع کړل اودا توجیه ئې بیان کړه: ((حمل البخاري أحاديث الباب التي لم يذكر فيها غسل اليدين قبل إدخالهما على حال تيقن نظافة اليد وحديث هشام –يعني هذا– على ما إذا خشي أن يكون علق بها شيء)) (٢)

یعنی امام بخاری رحمه الله چه په کوموا حادیثوکښې ادخال الیدفی الاناء نه وړاندې چه دَ لاسونو دَ وینځلو تذکره نه ده کړې هغه ئې دَ لاس دَ نظافت په یقینی حالت باندې محمول کړې اوحدیث هشام رحمه الله یعنی حدیث باب ئې دَ نجاست وغیره څه شي لګیدو دَ ویرې په وینځلو باندې محمول کړې دی. علامه قسطلانی رحمه الله هم دا توجیه اختیارکړې ده. (٣)

**په طرق حدیث باندې بحث:** امام بخاری رحمه الله دا حدیث دلته مختصر ذکرکړې دې او امام ابوداؤد رحمه الله کتاب الطهارة باب في الغسل من الجنابة کښې مسدد او سلیمان بن حرب دواړو طریق سره دَ حمابن زید نه مفصلاً نقل کړې دې. دَ امام ابوداود رحمه الله دَ روایت الفاظ دادی:

((حدثنا سليمان بن حرب الواشحي، ح: وحدثنا مسدد قال: أخبرنا حماد عن هشام بن عروة، عن أبيه، عن عائشة قالت: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا اغتسل من الجنابة –قال سليمان– يبدأ فيفرغ بيمينه وقال مسدد: غسل يديه، يصب الإناء على يده اليمنى، ثم اتفقا: فيغسل فرجه وقال مسدد: يفرغ على شماله –وربما كنت عن الفرج– ثم يتوضأ وضوءه للصلاة ثم يدخل يديه في الإناء فيخلل شعره، حتى إذا رأى أنه قد أصاب البشرة أو أنقى البشرة، أفرغ على رأسه ثلاثاً، فإذا فضل فضلة صبها عليه)) (٤)

یعنی حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ جنابت غسل کولو نو (په قول دَ سلیمان) په خپل ښی لاس باندې به ئې اوبه اچولې، مسدد وائی خپل دواړه لاسونه به ئې وینځل، دَ لوښی (نه به ئې اوبه) په خپل ګس لاس باندې بهیولې، بیا سلیمان اومسدد متفق کیدوسره نقل کوی چه حضورپاك بِه بیا خپل شرمګاه وینځلو، مسدد وائي چه په خپل ګس لاس باندې به ئې اوبه بهیولې، کیدې شی دَ دوی مراد داوی چه دَ شرمګاه وینځلودپاره به ئې په ګس لاس باندې اوبه بهیولې. بیا به حضورپاك دَ مانځه والا اودس په شان اودس کولو. بیابه ئې دواړه لاسونه په لوښی کښې ورداخلول اودَ خپلو ویښتو خلال په ئې کولو ترهغې پورې چه ورته به یقین اوشو چه څرمن لمده شوې ده یا څرمن ئې

---

(١) عمدة القاری: ٣/٣١١.

(٢) فتح الباری: ٢/٤٩٣-٤٩٢.

(٣) إرشادالساری: ١/٥٠٠.

(٤) کتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة رقم: ٢٤٢.

پاکه کړې ده. نو په خپل سر مبارك باندې به ئې درې څل اوبه بهیولې بیا که به څه اوبه پچ شوې نوهغه به ئې په سرباندې بهیولې.
حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی چه دامام داؤد رحمه الله په شان اسماعیلي رحمه الله هم په طرق متعدد د حماد بن زيد نه دا روايت نقل کړې دې ليکن پخپله امام بخاري رحمه الله په طريق د هشام نه د نورو مختلفو وجوهاتو سره دا شان روايت باب تخليل الشعر کښې نقل کړې دی.[1]

## الحديث الثاني

۲۴۳- حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَفْصٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: «كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ مِنْ جَنَابَةٍ» وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ القَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ مِثْلَهُ [حديث باب ][2]

**ترجمه**: مونږ ته بیان اوکړو ابوالولید وئی وئیل مونږ ته بیان اوکړو شعبه هغوی د ابوبکر بن حفص نه هغوی دعروه نه او هغوی د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه نقل کړی دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما او نبی کریم صلی الله علیه وسلم به (په یو څائې) په یولوښی د جنابت غسل کولو.
او عبدالرحمن بن قاسم دخپل پلار نه هغوی د حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم داسې روايت بيان کړې دې.

## تراجم رجال

**حدثنا أبوالوليد**: دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى رحمه الله دې. ددوی مختصر احوال كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار لاندې او تفصيلى حالات كتاب العلم، باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم لاندې ليکلی شوی دی.[3]

**حدثنا شعبة**: دا اميرالمؤمنين فى الحديث شعبه بن حجاج بن ورد عتكى بصرى رحمه الله دې. ددوی مختصر حالات كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده په ذيل کښې بيان کړې شوی دی.[4]

**عن أبي بكر بن حفص**: دا ابوبكر عبدالله بن حفص بن عمر بن سعد بن ابى وقاص قرشى زهرى مدنى رحمه الله دې.( )

---

[1]) فتح البارى: ۴۹۲/۲.

[2]) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الغسل باب الوضوء قبل الغسل رقم: ۲۴۸وأيضاً فى باب تخليل الشعر حتى إذا ظن أنه قد أروى بشرته أفاض عليه رقم: ۲۷۲ومسلم فى صحيحه كتاب الحيض باب صفة الغسل من الجنابة رقم: ۳۱۶وأبوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة. رقم: ۲۴۲وأخرجه الترمذى فى جامعه، أبواب الطهارة باب ماجاء فى الغسل من الجنابة رقم: ۱۰۴ والنسائى فى سننه كتاب الطهارة ذكر وضوء الجنب قبل الغسل رقم: ۲۴۸راجع تحفة الأشراف مسند عائشة رقم: ۱۷۱۶۴وكذلك جامع الأصول كيفية الغسل رقم: ۵۳۱۹.

[3]) كشف البارى: ۳۸/۲، ۱۶۱/۴-۱۵۹.

[4]) كشف البارى: ۶۷۸/۱.

**عروة عن عائشة:** دَحضرت عروه رحمه الله او حضرت عائشه رضي الله عنها احوال هم وړاندې تیرشوی دی.[٢]

## شرح حدیث

دَ حدیث دَ اکثر الفاظو شرح وړاندې تیره شوې ده.

**قوله: :من جنابة:** دکشمیهني په روایت کښې «من الجنابة» لفظ "الجنابة" الف لام سره معرفه وارد شوې دې.[٣] هم دغه دَ امام مسلم رحمه الله دَ روایت الفاظ دی چه هغوی دَ افلح بن حمید په سند سره روایت کړی دی.[٤]

**دَ لفظ منْ سره متعلق بحث:** په دې حدیث کښې لفظ من دوه ځل راغلې دې یو «من إناء واحد» کښې اوبل«من الجنابة» کښې ،دَ اول والادَپاره به متعلق محذوف راویستلې شی نوتقدیری عبارت به داسې شی «آخذين الماء من إناء واحد» یعنی دَ یولوښی نه اوبه اخستلوسره. یا ړومبې ظرف مستقر وی او دویم لغو وی اودواړه حروف جاره یوفعل یعنی دَ اغتسل متعلق هم کولې شی خو چه کله دواړه دَمختلف معنودَپاره راغلل نو بیا هم دَ یوفعل متعلق کول جائز دی. چنانچه دلته ړومبې من صرف دَ شروع دَ پاره دې اودویم په معنی دَ لام تعلیل دې یعنی «لأجل الجنابة» چه ما اورسول الله صلی الله علیه وسلم به هم په یولوښی سره دَ جنابت غسل کولو.[٥]

**قوله: :عن عبدالرحمن بن القاسم عن أبيه عن عائشة مثله:** یعنی عبدالرحمن بن قاسم دَخپل پلار نه هغوی دَ عائشه صدیقه رضي الله عنها نه هم دغه شان روایت بیان کړې دې.

## تراجم رجال

---

[١]) دَ دوی حالات کتاب الغسل باب الغسل بالصاع ونحوه دَ ړومبی حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی.

[٢]) دَحضرت عروه رحمه الله مختصر حالات بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې کشف الباري: ٢٩١/١ اوتفصیلی حالات کتاب الإیمان باب أحب الدین إلی الله په ذیل کښې کشف الباري: ٤٣٦/٢کښې اوګورئی. دَحضرت عائشه رضي الله عنها احوال بدء الوحی دَ دویم حدیث لاندې کشف الباري: ٢٩٥/١-٢٩١ کښې اوګورئی.

[٣]) فتح الباري: ٤٩٣/٢عمدة القاري: ٣١١/٣إرشادالساري: ٥٠٠/١.

[٤]) کتاب الحیض باب القدر المستحب من الماء فی غسل الجنابة وغسل الرجل والمرأة فی إناء واحد فی حالة واحدة وغسل أحدهما بفضل الآخر رقم الحدیث: ٧٣١.

[٥]) شرح الکرماني:١٢٥/٣عمدة القاري: ٣١١/٣.

**عن عبدالرحمن بن القاسم:** دا دَ خانواده صديقى چشم وچراغ مشهور فقيه اومحدث عبدالرحمن بن القاسم بن محمد بن ابى بكرصديق قرشى تيمى بكرى مدنى رحمه الله دي.(1) دَ هغوى كنيت ابو محمد دې (2)

ابن حبان رحمه الله دَدوى دَ مور نوم قريبه بنت عبدالرحمن بن ابى بكر صديق ليكلې دې.(3) علامه مزى رحمه الله هم دَ ابن سعد او مصعب بن عبدالله زبيرى په حواله سره هم دغه نوم نقل كړې دې.(4) خو علامه نووى رحمه الله اسماء بنت عبدالرحمن بن ابى بكر صديق رضي الله عنه ليكلې دې.(5) هم دغه قول علامه مزى رحمه الله دَ خليفه بن خياط اوحاكم ابواحمد نه نقل كړې دې.(6)

**شيوخ حديث:** دَهغوى په شيوخ حديث كښې دَهغوى پلار قاسم بن محمد، سالم بن عبدالله بن عمر، سعيد بن مسيب، عبدالله بن عامر بن ربيعه، عبدالله بن عبدالله بن عمر، محمدبن جعفر بن زبير، نافع مولى ابن عمر اواسلم مولى عمر بن خطاب رحمهم الله وغيره شامل دى. (7)

**دَهغوى نه روايت كونكى محدثين:** دَهغوى نه حديث نقل كونكو يولوئى شمير دې. په هغوى كښې يو څو دادى: اسامه بن زيدليثى، ايوب سختيانى، دَ على بن مدينى نيكه جعفر بن نجيح، حجاج بن حجاج، حميدالطويل، سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، سماك بن حرب، شعبه بن حجاج، عبدالله بن عمر عمرى، عبدالعزيز عبدالله ماجشون، عمرو بن حارث مصرى، ليث بن سعد، مالك بن انس، محمدبن عجلان، ابن شهاب زهرى، منصوربن زاذان، موسى بن عقبه، هشام بن عروه، يحيى بن سعيد انصارى، يزيد بن عبدالله بن الهادرحمهم الله اجمعين.(8)

**دَ ژوند حالات:** حضرت عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله دَحضرت امير معاويه رضي الله عنه په دورخلافت كښې دَ ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها په ژوند مبارك كښې پيداشو. (9)دَهغوى رحمه الله دَ حضرت جعفر صادق رحمه الله سره دَماما خورئى رشته ده. (10)

دَحضرت عبدالرحمن شمير دَخپلې زمانې دَاهل مدينه په ساداتو كښې كيدلو. چنانچه ابن حبان رحمه الله فرمائى چه هغوى فقه علم ديانت فضيلت اودحديث په حفظ او اتقان كښې دَ اهل مدينه سادات (سردارانو) نه وو.(11)

---

1) دَ تفصيل دَپاره اوګورئى: تهذيب الكمال: ۴۳۷/۱۷رقم الترجمة: ۳۹۳۱التاريخ الكبير: ۳۳۹/۵رقم: ۱۰۸۶الجرح والتعديل: ۳۳۹/۵رقم: ۱۳۲۴كتاب الثقات: ۶۲/۷تهذيب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱سيرأعلام النبلاء: ۵/۶تذكرة الحفاظ: ۱/۱۲۶تهذيب التهذيب: ۶/۲۵۴رقم: ۵۰۱

2) تهذيب الكمال: ۳۴۸/۱۷تهذيب التهذيب: ۶/۲۵۴تذكرة الحفاظ: ۱۲۶/۱.

3) كتاب الثقات: ۶۲/۷

4) تهذيب الكمال: ۳۴۹/۱۷.

5) تهذيب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

6) تهذيب الكمال: ۳۵۰/۱۷.

7) تهذيب الكمال: ۳۴۸/۱۷تهذيب ا لتهذيب: ۶/۲۵۴سيرأعلام النبلاء: ۵/۶الجرح والتعديل: ۳۳۹/۵.

8) تهذيب الكمال: ۲۴۹/۱۷-۲۴۸سيرأعلام النبلاء: ۵/۶تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶تذكرة الحفاظ: ۱۲۶/۱.

9) سرأعلام النبلاء: ۵/۶تهذيب التهذيب الكمال: ۳۴۸/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵۴/۶.

10) سيرأعلام النبلاء: ۵/۶تذكرة الحفاظ: ۱۲۶/۱.

11) كتاب الثقات: ۶۲/۷.

مصعب بن زبير وائى چه هغوى رحمه الله دَ خپلې زمانې دَ بهترين اهل ايمان نه وو دَ اهل مشرق په نيزدَ هغوى لوئى مقام وو.(۱)

ابن ابى حاتم په خپل سند سره دَعلى بن مدينى نه نقل كړى دى هغه فرمائى چه ما دَ هشام بن عروه رحمه الله نه اوريدلى دى يا دا خبره دَهغوى نه ماته رسيدلې ده چه هغوى دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه يوحديث نقل كړو كوم چه هغه دَ خپل پلار قاسم بن محمد رحمه الله نه اوريدلې وو او نوعروه رحمه الله اوفرمائيل چه داحديث ما دَ داسې سړى نه اوريدلې دې چه دَ علم اوتقوى.نه ډك وو او هغه دَ داسې سړى نه روايت كوى چه دَعلم اوتقوى نه ډك دې. يعنى دَ عبدالرحمن نه چه دَخپل پلار قاسم نه روايت كوى.(۲)

ابن عيينه رحمه الله فرمائى چه مونږ ته حديث بيان كړو عبدالرحمن بن قاسم اوهغه دَ خپلې زمانې دَټولو نه غوره سړې وو يائى دا اوفرمائيل چه په هغه ورځ دَهغوى نه په فضيلت كښې په مدينه كښې څوك هم نه وو.(۳) يائى دا اوفرمائيل چه په مدينه منوره كښې دَعبدالرحمن بن قاسم نه زيات خوښ كړې شوې بل څوك نه وو.(۴)

**دَامام بخارى رحمه الله دَ روايت عجيبه انداز:** امام بخارى رحمه الله چه به كله دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه روايت كولو نودَ عام معمول نه به ئې اسلوب بدلولو سره داسې فرمائيل: «حدثنا عبدالرحمن بن القاسم، وكان أفضل أهل زمانه أنه سمع أباه وكان أفضل أهل زمانه».(۵)

هارون بن موسى فروى دَخپل پلار نه نقل كړى دى هغه فرمائى چه مونږ به دَمالك بن انس رحمه الله په مجلس كښې كيناستو اودَهغوى څوئى يحيى به تلو راتلو مگر مونږ سره به نه كيناستو. امام مالك بن انس رحمه الله به زمونږ طرف ته متوجه كيدوسره داسې خبرې اترې كولې لكه چه دَهغوى دَ څوئى هيڅ مقام نه وى. بيا به هغوى فرمائيل چه علم اومسندعلم داسې څيزدې چه دا په ميراث كښې چاته نه ملاويږي هيڅوك دَخپل پلار دَعلمى مجلس خليف رشيدنه شى جوړيدې سوادَ عبدالرحمن بن قاسم.(۶)

**دَائمه جرح اوتعديل توثيقى اقوال:** ابوطالب وائى چه امام احمدبن حنبل رحمه الله اوفرمائيل چه عبدالرحمن ثقه دې ما تپوس اوكړو ثقه دې؟ نوهغوى په جواب كښې دوه ځل اوفرمائيل ثقة ثقة.(۷)

امام احمدبن عبدالله عجلى رحمه الله امام ابوحاتم رحمه الله اوامام نسائى رحمه الله دَعبدالرحمن بن قاسم رحمه الله باره كښې فرمائى ثقة.(۸)

---

(۱) تهذيب الكمال: ۳۵۰/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵٤/۶.

(۲) الجرح والتعديل: ۳٤۰/۵تهذيب التهذيب: ۲۵٤/۶.

(۳) تهذيب الكمال: ۳۵۰/۱۷تهذيب التهذيب: ۲۵٤/۶.

(۴) الجرح والتعديل: ۳٤۰/۵تهذيب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

(۵) كتاب الحج باب الطيب بعد رمى الجمار والحق قبل الإفاقة وتمامه رقم: ۱۷۵٤ التاريخ الكبير: ۳٤۰/۵.

(۶) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷.

(۷) الجرح والتعديل: ۳٤۰/۵تهذيب التهذيب: ۲۵٤/۶تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷.

(۸) تهذيب الكمال: ۳۵۱/۱۷الجرح والتعديل: ۳٤۰/۵تهذيب التهذيب: ۲۵٤/۶.

حافظ ابن حجر رحمه الله دَ واقدی رحمه الله نه دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله باره کښې نقل کړی دی «کان ورعاً، کثیر الحدیث» [۱]

ابن طهمان رحمه الله دَ یحیی بن معین رحمه الله نه دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله باره کښې نقل کړی دی چه هغوی فرمائی: «ثقة لا یسأل عنه» ابن شاهین رحمه الله هم مذکوره قول نقل کړې دې. [۲]

حافظ ابن حجر رحمه الله تقریب التهذیب کښې فرمائی «ثقة جلیل» [۳]، علامه ذهبی رحمه الله سیر أعلام النبلاء کښې فرمائی «کان إماماً، حجة، ورعاً، فقیه النفس، کبیر الشأن» [۴] او تذکرة الحفاظ کښې فرمائی «الفقیه الحجة» [۵] او الکاشف کښې فرمائی «الفقیه ابن الفقیه» [۶]

**په جالت شان باندې دَائمه اتفاق:** علامه نووی رحمه الله فرمائی «اتفقوا علی جلالته وإمامته وفضیلته وصلاحه» یعنی ټول ائمه دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله دَ جلالت شان امامت فضیلت او دَهغوی په بزرګئی باندې متفق دی. [۷]

**وفات:** دَعبدالرحمن بن قاسم رحمه الله دَ وفات کال اومقام وفات باره کښې اختلاف دې. دَ وفات باره کښې دوه اقوال دی: ① محمد بن سعد، ابوعبید قاسم بن سلام خلیفه بن خیاط ابن حبان علامه ذهبی اوحافظ ابن حجر رحمهم الله نه ۱۲۶هجری کښې انتقال کیدل نقل دی. [۸]

② عمرو بن علی هیثم بن عدی ابن نافع او یوقول دَ خلیفه بن خیاط دې چه ۱۳۱هجری کښې انتقال شوې دې. [۹] علامه مزی رحمه الله دا قول وهم ګرځولې دې. [۱۰]

دَعمرو بن علی رحمه الله نه روایت دې چه دهغوی رحمه الله انتقال دَ بنوامیه آخری حکمران مروان بن محمد په زمانه کښې شوې اوهغه څلورکاله اولس میاشتې حکومت کولونه پس ۱۳۱هجری کښې وفات شوې وو لیکن دا قول هم دَوهم په شان کوم طرف ته چه علامه مزی رحمه الله اشاره کړې ده. دمشهور اومعروف قول مطابق مروان دَ بوصیر په علاقه کښې پنځه کاله لس میاشتې اولس ورځې حکومت کولونه پس ذی الحجه په آخر کښې ۱۳۱هجری کښې قتل کړې شوې وو. [۱۱]

---

[۱] تهذیب التهذیب: ۲۵۵/۶.

[۲] تعلیقات تهذیب الکمال: ۳۵۲/۱۷.

[۳] تقریب التهذیب: ۵۸۷/۱.

[۴] سیر أعلام النبلاء: ۵/۶.

[۵] تذکرة الحفاظ: ۱۲۶/۱.

[۶] الکاشف: ۱۷۶/۲.

[۷] تهذیب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

[۸] تهذیب الکمال: ۳۵۱/۱۷الثقات: ۲/۷سیر أعلام النبلاء: ۵/۶تذکرة الحفاظ: ۱۲۶/۱تقریب التهذیب: ۵۸۷/۱تهذیب التهذیب: ۲۵٤/۶تهذیب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

[۹] تهذیب التهذیب: ۲۵۵/۶تهذیب الکمال: ۳۵۰/۱۷تهذیب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

[۱۰] تهذیب الکمال: ۳۵۱/۱۷.

[۱۱] تهذیب الکمال وتعلیقات: ۳۵۱/۱۷-۳۵۰.

**مقام وفات:** دَ وفات دَمقام باره کښې څلور اقوال نقل دی: ① علامه نووی رحمه الله دَ ابن سعد نه دَ مقام وفات بیت المقدس نقل کړي دي.([1]) ② علامه مزی رحمه الله دَ خلیفه بن خیاط رحمه الله نه دَ انتقال ځائی مدینه منوره نقل کړي ده.([2]) هم دا ابن حبان رحمه الله اختیارکړي دې. ([3]) ③ حافظ ابن حجر رحمه الله دَعلامه واقدی رحمه الله په حواله سره دَ ابوالزناد نه نقل کړی دی چه عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله دَ ولید بن یزید دَ ملاقات په غرض سره تللو چه دَ سفردوران کښې دَ شام په علاقه فدین کښې وفات شو. ([4]) ④ علامه ذهبی رحمه الله لیکلی دی چه ولید بن یزید هغوی رحمه الله شام ته غوښتې وو نوپوې قافله سره دَ شام طرف ته په سفرکښې حوران په مقام باندې دَهغوی مرګ راغلو.([5])

**قوله:: عن أبيه:** دادَحضرت عبدالرحمن پلار مشهور فقیه ومحدث حضرت قاسم بن محمدبن ابی بکرصدیق تیمی مدنی رحمه الله دې. دَدوی تفصیلی حالات«کتاب الغسل باب من بدأبالحلاب أو الطيب عندالغسل» رومبی حدیث په ذیل کښې بیان شوی دی. ([6])

**قوله:: عن عبدالرحمن بن القاسم عن أبيه عن عائشة: مثله**

**دا مذکوره عبارت تعلیق دې که مسند روایت؟:** دادَ امام بخاری دَ طرف نه تعلیق دې که مسند اومتصل روایت دې؟ علامه کرمانی رحمه الله لیکلی دی سره دَدې چه دَتعلیق احتمال لری مګر داتعلیق نه دې بلکه دا مسند او متصل روایت دې. دَدې عطف «دَدریم حدیث په سند کښې ذکر» ابوبکر بن حفص باندې دې. نولکه چه ابوالولید اووئیل چه مونږ ته حدیث بیان کړو شعبه هغوی دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه نقل کړي دي. ([7])

**دَ جمهور شراح حدیث رائې:** په شراح حدیث کښې حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله دَدې خبرې وضاحت کولوسره اوفرمائیل چه سند تعلیق ګڼړل وهم دې بلکه مسند اومتصل روایت دې. دَعن عبدالرحمن عطف په عن ابی بکربن حفص باندې دې. امام شعبه رحمه الله په دوو سندونوسره دا روایت دَحضرت عائشه رضي الله عنها نه نقل کړي دې. په یوسندکښې د هغوی شیخ ابوبکر بن حفص رحمه الله دې اوپه دویم سندکښې دَهغوی شیخ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله دې. ابونعیم رحمه الله او امام بیهقی رحمه الله دَ ابوالولید په طریق سره دَدوارو سندونو موصولاً تخریج کولونه پس فرمائی «أخرجه

---

[1]) تهذیب الأسماء واللغات: ۳۰۳/۱.

[2]) تهذیب الکمال: ۳۵۱/۱۷.

[3]) کتاب الثقات: ۶۲/۷.

[4]) تهذیب التهذیب: ۲۵۵/۶.

[5]) سیر أعلام النبلاء: ۶/۶-۵.

[6]) اوګورئ ص: ۴۳۹.

[7]) شرح الکرمانی: ۱۲۵/۳.

«رواه البخاري (في الصحيح) عن أبي الوليد بالإسنادين جميعاً»[1] يعنی امام بخاری رحمه الله دَ ابوالوليد په طريق سره دَغه دواړوسندونو تخريج کړې دې.
ابومسعود وغيره په اطراف کښې هم دغه شان فرمائيلی دی.[2]

**مثله:** مثله مرفوع او منصوب دواړه شان لوستل جائز دی. مطلب دادې چه شعبه دَ ابوبکر بن حفص نه دَ روايت په شان دا روايت هم دې هغوی دَ عبدالرحمن بن قاسم رحمه الله نه نقل کړې دې.[3]
امام اصيلی بمثله ابتداء کښې دَ باء موحده زياتی سره نقل کړې دې.[4] دَ امام بيهقی رحمه الله روايت هم مثله په ځائی بمثله راغلې دې.[5]

## الحديث الرابع

۲۴۳ - حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَبْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: «كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالمَرْأَةُ مِنْ نِسَائِهِ يَغْتَسِلاَنِ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ» زَادَ مُسْلِمٌ، وَوَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ شُعْبَةَ «مِنَ الجَنَابَةِ»

**ترجمه:** مونږ ته ابوالوليد بيان اوکړو وئی وئيل چه اووئيل مونږ ته شعبه هغوی دَ عبدالله بن عبدالله بن جبر نه هغوی اووئيل چه ما دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه واوريده هغوئی فرمائی چه رسول اکرم صلی الله عليه وسلم او دَهغوی دَ بيبيانونه يوه بی بی دواړو به په يوځائی يولوښی سره غسل کولو. مسلم بن ابراهيم او وهب بن جرير دَ شعبه نه په روايت کښې "من الجنابة" اضافه نقل کړې ده.

**دَحديث تخريج:** علامه ابن ملقن رحمه الله علامه عينی رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله ليکلی دی چه دا حديث دَامام بخاری رحمه الله دَ افراد نه دې.[6] دَ امام بخاری رحمه الله نه علاوه نور ائمه حديث امام مسلم رحمه الله وغيره دَحضرت انس رضی الله عنه نه په دې باره کښې هيڅ يو روايت نه دې نقل کړې.[7]

**تراجم رواة أبوالوليد، شعبة:** دَدې دواړو حضراتو احوال اول بيان کړې شوی دی.[8]

---

[1] رواه البيهقى فى السنن الكبرى، كتاب الطهارة باب فى فضل الجنب: ۲۸۹/۱رقم الحديث: ۸۹۲ولفظه: "وأخبرنا أبوعبدالله، نا أبوبكر أحمد بن إسحاق، أنا أبوالمثنى، ثنا الوليد، ثنا شعبة، عن عبدالرحمن بن القاسم عن أبيه عن عائشة: بمثله رواه البخارى فى الصحيح عن أبى الوليد بالإسنادين جميعا. فتح البارى۴۹۳/۲إرشادالسارى: ۵۰۰/۱.

[2] التوضيح: ۵۷۶/٤فتح البارى: ۴۹۳/۲عمدة القارى: ۳۱۱/۳.

[3] عمدة القارى: ۳۱۱/۳إرشادالسارى: ۵۰۰/۱.

[4] عمدة القارى: ۳۱۱/۳إرشادالسارى: ۵۰۰/۱.

[5] وقدمر تخريجه آنفاً.

[6] التوضيح لشرح الجامع الصحيح: ۵۷۷/٤عمدة القارى: ۳۱۲/۳إرشادالسارى: ۵۰۱/۱.

[7] التوضيح: ۵۷۷/٤.

[8] دَابوالوليد حالات كشف البارى: ۳۸/۲كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار په ذيل کښې او کشف الباري: ۱۶۱/۴-۱۵۹كتاب العلم باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم لاتدې اوګورئ. دَ امام شعبه حالات كشف البارى: ۶۸۷/۱ كتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاتدې تير شوی دی.

**عبدالله بن عبدالله بن جبر** : دادَ صحیح بخاری مسلم ترمذی اونسائی راوی عبدالله بن عبدالله بن جبر یا جابر رحمه الله دي.[1]

**أنس بن مالك**: دادَ رسول الله ﷺ خادم خاص اومشهور صحابی حضرت انس بن مالك بن نضر بن ضمضم بن زيد بن حرام بن جندب بن عامر خزرجی انصاری رضي الله عنه دي.[2]

**مسلم**: دادَ امام بخاری رحمه الله شیخ مسلم بن ابراهيم القصاب ازدی فراهیدی بصری رحمه الله دي. شحام په نوم باندې هم مشهوردې.[3]

**وهب**: دا وهب بن جرير بن حازم بن زيد بن عبدالله ابن شجاع ازدی بصری رحمه الله دي. دَدوی کنیت ابوالعباس دې.[4]

## دحديث شرح

**قوله: كان النبي ﷺ والمرأة من نساءه يغتسلان من إناء واحد**: یعنی حضورپاك اودهغوی دَ بیبیانو نه یوه بی بی په یوځائی یولوښی سره غسل کولو. والمرأة مرفوع اومنصوب دواړه شان لوستل صحیح دی. دَمرفوع لوستلو په صورت کښې دَماقبل لفظ النبي باندې عطف وی اومنصوب لوستلو په صورت کښې به مفعول معه جوړیږی.[5]

**قوله: زاد مسلم ووهب بن جرير عن شعبة: من الجنابة**: مسلم بن ابراهيم او وهب بن جرير دَامام شعبه نه "من الجنابة" اضافه نقل کړې ده.

**دَحديث باب تعليق**: علامه کرمانی رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه ښکاره خبره ده چه دادَ اما بخاری رحمه الله دَ طرف نه دَحديث باب تعليق دې ځکه چه دَوهب بن جرير رحمه الله دَ انتقال په وخت دَ امام بخاری رحمه الله عمر دولس کاله وو اوداهم ممکن دی چه امام بخاری رحمه الله دا روايت دَهغوی نه اوريدلی وی. وهب بن جرير مسلم بن ابراهيم سره یوځائی کول او راوړل دَدې تائيدکوی. په دې صورت کښې دَ امام شعبه شیخ په سابقه سند کښې ذکرشوې عبدالله بن عبدالله بن جبر رحمه الله وی.[6]

---

[1]) دَدوی مختصر حالات كشف الباري: ۳۹/۲ كتاب الإيمان باب علامة الإيمان حب الأنصار رومبی حدیث په ذیل کښې تیرشوی دی.

[2]) دهغوی رضي الله عنه حالات كشف الباري: ۴-۵/۲ كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه رومبی حدیث لاندې بیان شوی دی.

[3]) ددوی حالات كشف الباري: ۴۵۵-۴۵۶/۲ كتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه دَ رومبی روايت لاندې تیرشوی دی.

[4]) تهذيب الكمال: ۱۲۱/۳ دَدوی احوال كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين القبل والدبر وقول الله تعالى ﴿ أَوْجَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ ﴾ پنځم حدیث لاندې تیرشوی دی.

[5]) فتح الباري: ۴۹۳/۲ إرشادالس[5]) شرح الكرماني: ۱۲۵/۳ إرشادالساري: ۵۰۱/۱. هم دا علامه عینی رحمه الله هم ذکر کړې دې. عمدة القاري: ۳۱۲/۳.

اری: ۵۰۱/۱.

[6]) شرح الكرماني: ۱۲۵/۳ إرشادالساري: ۵۰۱/۱. هم دا علامه عینی رحمه الله هم ذکر کړې دې. عمدة القاري: ۳۱۲/۳.

**وهب:** اصيلي او دَ ابوالوقت په روايت كښې دَوهب نه پس ابن جرير بن حازم اضافه ده ابونعيم وغيره هم دَدې جزم كړې دى. دَ ابوذر په روايت كښې دَ وهب په ځائې وهيب تصغيرسره راغلې دې.([1])

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله توجيه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَ ابوذر په روايت كښې چه كوم وهيب راغلې دې زما په خيال كښې هغه وهم دې. ځكه چه دَ تتبع كثير نه پس دَدې حديث وهب بن جرير نه كيدل موندلې شوى دى. «دَ لټون نه باوجود» مونږ دا وهيب بن خالد نه نه دې موندلې، دې نه علاوه وهيب بن جرير دَ امام شعبه نه روايت كونكونه دې خو وهيب دَ هغه اقران «دَ زمانې» نه دې.([2])

**دَعلامه عينى رحمه الله توجيه اوحافظ صاحب باندې نقد:** علامه عينى رحمه الله وهيب دكاتب غلطى كرخولې ده او په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې نقد كولو فرمائى چه بعض خلقو دَ وهب په ځائې وهيب وهم كرځولې دې اودَ دې په اثبات كښې ئې دا دليل وركړې دې چه وهب دَ شعبه نه روايت كوى او وهيب دَهغوى دَ زمانې دَ خلقو نه دې حالانكه دَ چا دَ زمانې دَ خلقو نه كيدل دَهغه نه په روايت كښې مانع نه دې. دا جدا خبره ده چه دلته روايت دَ وهب دې وهيب نه دې. ([3])علامه ابن ملقن رحمه الله ليكلى دى چه ابومسعود اوخلف په اطراف كښې مسلم بن ابراهيم دَ سند نه ساقط كولوسره صرف وهب باندې اتقصار كړې دې يعنى دا روايت ئې صرف دَ وهب نه نقل كړې دې.([4])

**دَ تعليق غرض:** دَ امام بخارى رحمه الله غرض په دې تعليق سره په دې خبره باندې تنبيه كول دى چه ځنګه ابوالوليد دَ امام شعبه نه په دې سندسره مذكوره روايت نقل كړې دې هم دغه شان مسلم بن ابراهيم او وهب بن جرير هم دَامام شعبه نه هم په دغه سندسره دا روايت نقل كړې دې اودَدې په آخره كښې من الجنابة الفاظو اضافه كړې ده.([5])

**دَمحدث اسماعيلى په روايت كښې من الجنابة اضافه نشته دې:** محدث اسماعيلى رحمه الله دَ وهب بن جرير دَ روايت تخريج كړې دې ليكن په دې كښې دَ من الجنابة اضافه نشته دې. دَهغوى سند دادې «قال: أخبرني ابن ناجية، حدثنا زيد بن أخزم، حدثنا وهب بن جرير، حدثنا شعبة»([6]) امام اسماعيلى دَ ابن مهدى او بهز په طريق سره هم دا روايت من الجنابة دَ اضافه نه بغير تخريج كړې دې.([7])

**دَ احاديث باب ترجمه سره مناسبت:** په دې حواله سره څه خبرې اترې دَ باب حديث اول اودويم لاندې تيرې شوى دى. اوس دلته نور پيش خدمت دى:

**يواعتراض:** كه چرته څوك دا اووائى چه سوا دَ حديث هشام نه باقى احاديث باب كښې په لوښى كښې دَ لاس داخلولونه وړاندې دَ لاس دَ وينځلو څه ذكر نشته دې؟

**دَابن بطال رحمه الله توجيه:** علامه ابن بطال دَدې جواب وركولوسره فرمائى چه په حديث هشام او ترجمة الباب كښې مناسبت موجود دې او په دې سره دَترجمة الباب دَمعنى وضاحت هم كيږى. هغه داسې چه

---

[1]) فتح البارى: ۴۹۳/۲عمدة القارى: ۳۱۲/۳ارشادالسارى: ۵۰۱/۱.

[2]) فتح البارى: ۴۹۴/۲-۴۹۳.

[3]) عمدة القارى: ۳۱۲/۳.

[4]) التوضيح: ۵۷۷/۴.

[5]) فتح البارى: ۴۹۴/۲عمدة القارى: ۳۱۲/۳.

[6]) التوضيح: ۵۷۷/۴عمدة القارى: ۳۱۲/۳فتح البارى: ۴۹۴/۲.

[7]) التوضيح: ۵۷۷/۴عمدة القارى: ۳۱۲/۳.

امام بخاري حدیث هشام په کوم کښې چه په لوښي کښې دَ لاس داخلولونه وراندې دَ لاس دَ وینځلو ذکر دې دائی په دې خبره باندې محمول کړی دی چه کله په لاس باندې دَمنې اونجاست دَ لګیدو ویره وی او نور روایات په کوم کښې چه دَلاس دَ وینځلو ذکر نشته دې هغه ئی دَ لاسونو په یقینی طهارت حالت باندې محمول کړې دې.[1]

**دَ امام مهلب رحمه الله توجیه:** ابن بطال رحمه الله دَ امام مهلب نه نقل کړی دی چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې اوفرمائیل «هل یدخل الجنب یده فی الإناء قبل أن یغسلها إذا لم یکن علی یده قذر غیر الجنابة» دې نه مراد دَهغه جنبی لاس دې چه دَمنی وغیره ټولو نجاساتونه پاك وی نوبیا دَ دغه جنبي دپاره خپل لاس دَ وینځلونه وراندې په لوښی کښې داخلول جائزدی. دَدې دپاره چه صرف دَ جنابت حکمی دَ وجې نه دَ سړی یو اندام نجس کیږی نه ځکه چه نبي کریم ﷺ فرمائی "مؤمن نجس نه وی".[2]

هم دا توجیه علامه کرمانی رحمه الله او ابن ملقن رحمه الله دَ ابن بطال رحمه الله په حواله سره نقل کړې ده.[3]

**دَابن منیر اسکندرانی توجیه:** علامه ناصرالدین احمدبن محمد المعروف ابن المنیر اسکندرانی رحمه الله شارح بخاری ابن بطال رحمه الله توجیه بعیدګرځولې ده اودَ احادیث اوترجمة الباب په حواله سره ئی فرمائیلی چه دَلاس وینځل به یا دَ حدث حکمی دَ وجې نه وی یادَ حدث عینی دَ وجې نه او په ترجمه کښې دا منلې شوی دی چه دلته خبرې اترې دَهغه سړی باره کښې دی دَ چا په لاس باندې چه دَ څه قسم قذر نجاست حقیقی نه وی لګیدلې نواوس دا احتمال باقی پاتې نه شوچه دَغسل کونکی په لاس باندې نجاست حکمی وی کوم چه په لوښی کښې دَلاس داخلولونه مانع وی لیکن داخبره مسلم ده چه نجاست حکمی مانع نه دې ځکه چه دَ نجاست حکمی اثر په اوبوکښې ښکاره شوې وې نوبیادَ جنبی دَپاره دَ تکمیل غسل نه وراندې به په لوښی کښې لاس داخلول جائزنه وو. لیکن اثناء غسل دخول ید جائز دې نومعلومه شوه چه په اوبوکښې لاس لګولو سره جنابت یعنی نجاست حکمی اثر په دې کښې نه ظاهریږی لهذا دَغسل په شروع کښې هم لاس په لوښی کښې داخلولوسره څه مانع نه دی لکه چه په دوران غسل کښې داسې کولوسره څه څیز مانع نه دې. په دې سره داخبره ثابته شوه چه دَجنبی دَ بدن نه دَ اوبوڅاڅکی پریوځی نوهغه پاك دی دَهغې دَغسل والاپه لوښی کښې پریوتلوسره دَغسل اوبوته هیڅ نقصان نه رسیږی یعنی هغه ناپاکه کیږی نه.[4]

**دَ ابن ملقن رحمه الله توجیه:** ابن ملقن رحمه الله پنځه توجیهات ذکر کړی دی.

**رومبې اودویمه توجیه:** یودَ ابن بطال رحمه الله او دویمه دَ ابن منیر رحمه الله دغه دواړه تیرې شوې.

**دریمه توجیه:** ابن ملقن رحمه الله دریمه توجیه دا بیان کړې ده چه په حدیث ثانی اوترجمه کښې مناسبت ښکاره دې باقی پاتې شوه خبره دَ حدیث اول نوکه چرې حضورپاك اوحضرت عائشه رضی الله عنها اول لاسونه وینځلې وې نوحضرت عائشه رضی الله عنها به تختلف أیدینا فیه په ځائی باندې تختلف أیدینا منه فرمائیل یا دا چه

---

[1] شرح ابن بطال: ۳۸۸/۱.

[2] شرح ابن بطال: ۳۸۸/۱وقدمر تخریج الحدیث.

[3] شرح الکرمانی: ۱۲۶/۳التوضیح: ۵۷۷/٤.

[4] المتواری علی تراجم أبواب البخاری ص: ۷۶.

هغوی چرته تختلف أيدينا فيه فرمائيلي وی اوکله ئې منه فرمائيلي اوباقي احاديث هم په دې باندې محمول دی.(¹)

**څلورمه توجيه:** څلورمه توجيه ئې دا بيان کړې ده چه په دې کښې دا احتمال هم دې چه کله امام بخاری رحمه الله اکثر احاديث هغه ذکر کړی دی په کوم کښې چه د لاس وينځل ذکر نه دی نو دې نه معلومه شوه چه بغيرد لاسونو وينځلو نه هم په لوښی کښې لاس داخلول په غسل جنابت کښې جائز دی. ځکه چه که چرې داسې کول جائز نه وې نو بيا به په ټولو احاديثوکښې د وينځلو ذکر کولو.(²)

**پنځمه توجيه:** پنځمه توجيه ئې داذکرکړې ده چه امام بخاری رحمه الله د خپل عادت مطابق په بعض طرق کښې د لاس وينځل ذکر کړی دی او باقی کښې معنی مقصودی مستنبط کيدونکې لفظ ترک کړو دې دپاره چه قاری د نور طرق حديث په ذريعه د امام بخاری رحمه الله د مقصود استخراج اوکړې شي. چنانچه امام مسلم رحمه الله د حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه نقل کړی دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم به کله غسل شروع کولو نو په خپل ښی لاس باندې به ئې اوبه اچولوسره خپل دواړه لاسونه وينځل. د دې روايت په آخره کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی «كنت أغتسل أنا وهو من إناء واحد» نو د دې نه معلومه شوه چه په کومو احاديثوکښې د لاس وينځل موجود نه دی هلته هم د لاسونو وينځل مراد دی لکه چه نورو طرق حديث نه معلوميږی.(³)

# ١٠- باب: تَفْرِيقِ الْغُسْلِ وَالْوُضُوءِ

## په غسل اواودس کښې فصل کول

د کشف الباری د متن دپاره منتخب نسخه (⁴)مصری نسخه شرح الکرمانی فتح الباری عمدة القاری فتح الباری لابن رجب الحنبلی ارشاد الساری الکوثر الجاری او التوشيح کښې «باب: تفريق الغسل والوضوء» مقدم کړې شوې دې اود دې وړاندينې باب «باب من أفرغ بيمينه على شماله» روستوکړې شوې دې. خو په هندوستانی نسخه اصيلی او ابن عساکر روايت شرح ابن بطال التوضيح اوتحفة البای کښې د دې برعکس باب کښې "أفرغ بيمينه على شماله" مقدم اومذکوره باب مؤخر کړې شوې دې. دلته په ترتيب کښې د کشف الباری د متن والانسخې رعايت ساتلې شوې دې.

**ماقبل سره مناسبت:** علامه عينی رحمه الله اوفرمائيل چه په دواړو ابوابوکښې مناسبت په دې حيثيت سره دې چه دواړه د يوفعل جائز په بيان باندې مشتمل دی. دې نه وړاندې «هل يدخل الجنب يده في الإناء قبل أن يغسل إذا لم يكن على يده قذر غير الجنابة» کښې چه کله لاس پاك وی نو بغيرد وينځلو ئې د اوبو په لوښی کښې د داخلولو جواز بيان کړې شوې وو خو په دې باب کښې په غسل او اودس کښې د تفريق جواز بيانولې شی.(⁵)

---

¹) التوضيح: ٥٧٨/٤.

²) التوضيح لابن الملقن: ٥٧٩/٤.

³) التوضيح: ٥٧٩/٤.

⁴) دا نسخه د ډاکټر مصطفی ديب البغاء صاحب تحقيق او تخريج سره چهاپ شوې ده.

⁵) عمدة القاری:٣١٣/٣.

**دَترجمة الباب مقصد:**

**دَ شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله رائې:** شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله اوفرمائيل چه دَامام بخاري رحمه الله غرض دَدې ترجمه نه وجوب موالات في الوضوء والغسل باندې رد كول دي دَ تولو شراح حديث كلام هم په دې باندې مبنى دې. (۱)يعنى دَ امام بخاري رحمه الله مقصد ددې ترجمه نه دا ثابتول دي چه په اودس او غسل كښې وار په وار وينځل واجب نه دي بلكه دَ اول نه وينځلې شوې اندامونه دَ اوچيدونه پس هم باقى اندامونه اووينځلې شي او لاَمده كړې شي نو اودس اوغسل به صحيح شى. په دې تفريق سره به په اودس اوغسل باندې هيڅ فرق نه پريوځى.

**دَعلامه كرماني رحمه الله رائې:** دَعلامه كرماني رحمه الله رائې داده چه دَدې ترجمه په غرض كښې دوه احتمالات دي. يو دا چه عدم وجوب موالات بيانول دي اودويم دا چه په غسل كښې دَ اودس نه داخليدل بيانول دي. تردې پورې چه كه چاته دواړه حدث لاحق شى نودَهغه دَ طهارت دپاره به صرف غسل نه كافى كيږي. (۲)

دَدې دواړو احتمالاتو دَ ذكركولونه پس علامه كرماني رحمه الله رومبې احتمال ظاهر گرځولې دې. (۳)

دا مشهوره اختلافى مسئله ده چه په اودس اوغسل كښې موالات واجب دي كه نه؟ دَغسل مسئله خو امام بخاري رحمه الله اصالتاً ذكركړې ده او اودس ئې تبعاً ذكر كړې دې.

**موالات في الوضوء:** چنانچه په اودس كښې موالات ضروري دي كه نه؟ دې كښې اختلاف دې. امام ابوحنيفه رحمه الله (۴)امام شافعي رحمه الله دَ قول جديد مطابق (۵)او په يوروايت كښې امام مالك رحمه الله (۶)او امام احمد رحمه الله فرمائى چه په اودس كښې موالات واجب نه بلكه سنت دي. (۷)

امام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله دَخپل مشهورقول مطابق چه دَدوى نه ډيرو كسانو نقل كړې دې دَموالات دَ وجوب قائل دي. (۸) دَ امام شافعي رحمه الله قول قديم هم دَ وجوب موالات دې. (۹) هم دَغه سيدنا حضرت عمر رضي الله عنه حضرت قتاده رحمه الله او امام اوزاعي رحمه الله هم قول دې. (۱۰)

**دَ موالات وضاحت:** په عاموحالاتوكښې كله چه مزاج او موسم معتدل وى نودَ يو اندام دَ اوچيدونه وړاندې دَ بل اندام وينځلو موالات وئيلى شى. چنانچه امام مالك رحمه الله فرمائى: «إن كان ترك ذلك ناسياً بنى على وضوءه، وإن تطاول ذلك، قال: وإن كان ترك ذلك عامداً استأنف الوضوء» كه څوك په قصد سره موالات ترك كړى نودَهغه په ذمه دَ اودس استيناف او راگرځول واجب دي. كه چرې عمداً ئې ترك نه كړى بلكه

---

(۱) الكنز المتواري: ۲۰۷/۳الأبواب والتراجم ص: ۶۱حاشية اللامع: ۲۲۱/۲.

(۲) شرح الكرماني: ۱۲۷/۳.

(۳) شرح الكرماني: ۱۲۷/۳.

(۴) ردالمحتار مع الدرالمختار: ۹۰/۱بدائع الصنائع: ۲۱۱/۱البحرالرائق: ۵۵/۱.

(۵) المجموع شرح المهذب: ۴۵۳/۱الشرح الكبير: ۱۳۱/۱السراج الوهاج ص:۱۹.

(۶) حاشية الدسوقي: ۱۵۴/۱.

(۷) الإنصاف: ۱۳۹/۱.

(۸) المدونة الكبرى: ۱۵/۱حاشية الدسوقي:۱۵۱/۱المغنى لابن قدامة:۹۲/۱الإنصاف: ۱۳۹/۱.

(۹) المجموع: ۴۵۳/۱السراج الوهاج ص:۱۹.

(۱۰) الأوسط لابن منذر:۴۲۰/۱.

هيرشي نو استيناف او راګرځول واجب نه دى صرف متروكه اندام به وينځى سره دَدې چه په دې كښې زيات وخت تيرشوې وى هم دغه قول دَ ليث بن سعد رحمه الله هم دې. (١)

دَ امام مالك رحمه الله په يوروايت كښې دى چه كه چرې فصل يسير وى نوهيڅ بديت نشته دې اوكه فصل كثيروى نو بيا په دغه صورت كښې به راګرځول واجب وى. (٢)

**دَ فصل يسير اوكثير حكم:** علامه نووى رحمه الله ليكلى دى چه شيخ ابوحامد او محاملى په دې خبره باندې دَمسلمانانو اجماع نقل كړې ده چه دَ اودس دَ اندامونو په وينځلوكښې تفريق يسير مضرنه دې. (٣)

دَتفريق كثيرباره كښې دَامام شافعى رحمه الله دوه اقوال دى. په دې كښې صحيح قول په كوم چه دَ ټول اصحاب شوافع اتفاق دې چه تفريق كثير هم مضرنه دې. هم په دې باندې امام شافعى رحمه الله په قول جديد كښې نص فرمائيلې دې. (٤) هم دغه قول دَ سيدنا عمر رضي الله عنه ابن عمر رضي الله عنه سعيد بن مسيب عطاء طاؤس حسن بصرى نخعى سفيان ثورى او ابن المنذر رحمهم الله او په يو روايت كښې دَ امام احمد رحمه الله هم قول دې. (٥)

**فصل يسير اوفصل كثير څه څيزدې؟:** دَ حنفيه او حنابله مذهب اودَ امام شافعى رحمه الله دَ قول صحيح او مشهور حاصل دادې چه دَزمان اومكان او متوضى په مزاج كښې اعتدال نه باوجود كه چرې يوځائى اوچ شى نودا فصل طويل اوكثيردې اوكه چرې پخپله نه اوچيږى نودا فصل يسيردې. (٦)

كه دَاودس كونكى دَمزاج ګرمى يا يخنى او په غيرمعتدل موسم كښې دَ خشك هوا چليدو دَ وجې نه يواندام اوچ شى نودَدې اعتبارنشته دې. (٧)

بعض شافعيه حضرات وائى چه دَتفريق كثير نه مراد طويل متفاحش دې. (٨)

دَ شوافع يو روايت داهم دې چه دَ يسير اوكثير دارومدار په عرف اوعادت باندې دې. (٩) هم دغه شان قول دَ ابن عقيل نه حنابله هم نقل كړې دې. (١٠)

علامه رافعى رحمه الله نقل كړې دى كه چرې دومره وخت تيرشي په كوم كښې چه دوباره پوره طهارت حاصليدې شى نودا فصل طويل دې ګنې يسير اوقليل دې. (١١)

دَ تفريق دَ مودې اعتبار دَ اودس دَ افعال نه دَ آخرى فعل نه كولې شى ترديې چه كه چا مخ او لاسونه اووينځل بيا فصل واقع شى اودَ لاسونودَ اوچيدونه وړاندې دَ سرمسح اوكړه نودا فصل مضرنه دې

---

(١) المدونة الكبرى: ١/١٥حاشية الدسوقى:١/١٥١الاوسط:١/٤٢٠.

(٢) حاشية الدسوقى:١/١٥١.

(٣) المجموع شرح المذهب: ١/٤٥٢.

(٤) المجموع : ١/٤٥٢.

(٥) المجموع: ١/٤٥٤.

(٦) ردالمحتار مع الدرالمختار:١/٩٠البحرالرائق:١/٥٥ بدائع الصنائع:١/٢١١المغنى:١/٩٤الإنصاف:١/١٤٠المجموع: ١/٤٥٣.

(٧) المجموع: ١/٤٥٣الشرح الكبير:١/١٣٢.

(٨) المجموع: ١/٤٥٣.

(٩) المجموع شرح المهذب: ١/٤٥٣.

(١٠) المغنى لابن قدامة: ١/٩٤الإنصاف: ١/١٤٠.

(١١) الشرح الكبير: ١/١٣٢المجموع: ١/٤٥٣.

سره دَدې چه مخ اوچ شوې وي. که چرې اندامونه ئي درې څل اووينځل نودَ آخرى څل وينځلو به اعتبار کيږي.[1]

## د قائلين وجوب دلائل

**رومبې دليل:** قائلين وجوب موالات فى الوضوء يودليل دادې چه ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ﴾[2] کښې دَ الله تعالى مطلق حکم دَ اودس دَ تعجيل او وار په وار دَ اودس تقاضا کوى. هم دغه امر دَ تعجيل دَ تفريق دَپاره مانع دې.[3]

**دويم دليل:** دويم دليل رسول الله ﷺ وار په وار اودس کړې بيانى ارشاد اوفرمائيلو «هذا وضوء لا يقبل الله الصلاة إلا به»[4] يعنى الله تعالى دَ دغه وار په وار اودس کولونه بغير مونځ نه قبلوى.[5]

**دريم دليل:** دريم دليل دَ حضرت انس ﷺ نه روايت دې چه يوسړې دَ حضورپاك په خدمت کښې اودس کولوسره راغلو په داسې حالت کښې چه هغه په خپه کښې دَ يونوك برابر ځائى نه وو وينځلې. نوحضورپاك هغه سړى ته اوفرمائيل «ارجع فأحسن وضوءك»[6] لاړ شه او اودس په ښه شان سره اوکړه.

دَ ابوداؤد رحمه الله په روايت کښې دى حضورپاك يوسړې په مونځ کولوباندې اوليدلو اودَهغه دَخپې څه حصه په اندازه دَ يودرهم اوچه پاتې شوې وه نو حضورپاك دغه سړى ته دَ اودس اومونځ دواړو راګرځولو حکم اوکړو.[7]

**دَحضرت عمر رضی الله عنه اثر:** دغه شان يواثردَحضرت عمر رضی الله عنه نه هم نقل دې. چنانچه ابوسفيان دَ جابر نه نقل کړى دى هغه وائى: «رأى عمر بن الخطاب رضى الله عنه رجلاً يتوضأ فبقى فى رجله لمعة، فقال: أعد الوضوء»[8] يعنى حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه يوسړې اوليدلو چه اودس ئى کولو (بيا چه کله هغه اودس اوکړو) نودَهغه دَ خپې څه حصه اوچه پاتې شوه اوهلته دَ اودس اوبه نه وې رسيدلې نوحضرت عمر رضی الله عنه دغه سړى ته اوفرمائيل چه اودس راؤګرځوه يعنى دَ نوى سر نه دوباره اودس اوکړه.

---

[1] الشرح الکبير: ۱۳۲/۱.

[2] المائدة:۶

[3] الحاوى الکبير:۱۶۵/۱.

[4] الحديث رواه ابن ماجه فى سننه کتاب الطهارة باب ا لوضوء ثلاثا ثلاثاً رقم: ٤١٩ والبيهقى فى سننه کتاب الطهارة باب فضل التکرار فى الوضوء رقم: ۳۸۰-۳۷۹.

[5] الحاوى الکبير: ۱۶۵/۱.

[6] رواه مسلم فى صحيحه فى کتاب الطهارة باب وجوب استيعاب جميع أجزاء محل الطهارة رقم: ۲٤۳ وأبوداؤد فى سننه فى کتاب الطهارة باب تفريق الوضوء رقم: ۱۷۳وقال أبوداؤد: هذا الحديث ليس بمعروف عن جرير بن حازم ولم يروه إلا ابن وهب وحخده وقد روى عن معقل بن عبيدالله الجزرى عن أبى الزبير عن عمر عن النبى صلى الله عليه وسلم نحوه قال: ارجع فأحسن وضوءک. انظر جامع الأصول رقم: ۵۱۵۶-۵۱۵۵.

[7] الحديث رواه أبوداؤد فى سننه کتاب الطهارة باب تفريق الوضوء رقم: ۱۷٤راجع جامع الأصول رقم: ۵۱۵۷.

[8] الأثر أخرجه البيهقى فى السنن الکبرى فى کتاب الطهارة باب تفريق الوضوء: ۱۳۶/۱رقم الحديث: ۳۹۵.

## د قائلين عدم وجوب دلائل

**رومبي دليل:** دَقائلين عدم وجوب موالات يودليل هم هغه دَ سورت مائده آيت ﴿ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ ﴾ (١) دي چه الله تعالى په خپل كتاب كښې (مطلقًا) دَ اودس دَ اندامونو دَ وينځلو حكم وركړې دې. نوچاچه دغه اندامونه اووينځل هغه په مامور به باندې عمل اوكړو كه په وينځلو كښې تفريق اوكړې اوكه يو بل پسې اووينځي. (٢)

**دويم دليل:** دويم دليل دَابن عمر رضي الله عنهما اثر دې كوم چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې نقل كړې دې چه هغه خپلې خپې دَ اودس دَ اوچيدو نه پس اووينځلې.

**دريم دليل:** هم دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما اثر دې امام مالك رحمه الله اوامام شافعى رحمه الله نقل كړې دې. «أن عبدالله بن عمر بال في السوق، ثم توضأ، فغسل وجهه، ويديه، ومسح رأسه، ثم دُعِيَ لجنازة ليُصلّي عليها حين دخل المسجد فمسح على خُفّيه ثم صلّى عليها» (٣)

يعنى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما بازاركښې «دَ قضاحاجت دَپاره جوړشوى يوخانى» متيازې اوكړې هغه اودس اوكړو په كوم كښې چه مخ او لاسونه اووينځل او په سرئې مسح اوكړه، بيا هغه دَ يوې جنازې كولودپاره راؤغوښتلې شو نوهغوى رضي الله عنهما جمات ته تشريف راوړو او په موزو باندې ئې مسح اوكړه او جنازه ئې اوكړه.

امام بيهقى رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنهما هم دغه اثر نقل كړې دې او په دې كښې ئې دا صراحت كړې چه دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په موزو باندې مسح كولړد اودس دَ اوچيدو نه پس وو. چنانچه دَ بيهقى دَ روايت الفاظ دادى: «فمسح على خفيه بعد ماجف وضوءه وصلى» (٤) يعنى حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ اودس دَ اوچيدونه پس په موزو باندې مسح اوكړه او مونځ ئې وركړو. دَ روايت نقل كولونه پس امام بيهقى رحمه الله فرمائى چه «هذا صحيح عن ابن عمر ومشهور عن قتيبة بهذا اللفظ» (٥)

**دَامام نووى رحمه الله دا دليل حسن گرځول:** امام نووى رحمه الله دَ مذكوره روايت نقل كولونه پس ليكلى دى «هذا دليل حسن» ځكه چه ابن عمر رضي الله عنهما داعمل دَ جنازې دَپاره دَ راتلونكو په مخكښې اوكړو او چاهم په دې باندې نكير اونه كړو. (٦)

**عقلى دليل:** امام طحاوى رحمه الله دَ موالات په عدم وجوب باندې عقلى دليل وركولوسره فرمائى: «جفاف الوضوء ليس بحدث فلا ينقضه، كما أن جفاف سائر الأعضاء لا يبطل الطهارة» (٧) اودس اوچيدل داحدث نه دې چه په دې سره اودس مات شى لكه دَ ټولو اندامونو دَ اودس اوچيدل چه طهارت نه باطل كوى.

---

(١) المائدة: ٦.
(٢) الأوسط فى السنن والإجماع والختلاف: ٤٢١/١.
(٣) أخرجه الإمام مالک فى المؤطأ كتاب الطهارة باب ماجاء فى المسح على الخفين: ٣٧/١-٣٦ رقم الحديث: ٤٣ والإمام الشافعى فى الأم، كتاب، الطهارة باب تقديم الوضوء ومتابعته رقم: ٤٢٣.
(٤) السنن الكبرى كتاب الطهارة باب تفريق الوضوء رقم: ٣٩٧.
(٥) السنن الكبرى كتاب الطهارة باب تفريق الوضوء رقم: ٣٩٧.
(٦) المجموع: ٤٥٥/١ الحاوى الكبير: ١٦٥/١ البحر الرائق: ٥٥/١.
(٧) مختصر اختلاف العلماء: ١٥٣/١ عمدة القارى: ٣١٣/٣ فتح البارى: ٤٩٤/٢.

**دَ قائلین وجوب دَ دلائلو جواب:** دَ قائلین وجوب دَ دلائل جواب دَ رومبی دلیل جواب دادې چه کله تفریق اوفصل فی الوضوء دَالله تعالی ارشاد ﴿ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ ﴾ کښې ورکړې شو دَ امر په انتثال سر مانع نه دې نو دا ضروری دی چه بیا دا آیت دَ عدم موالات دَ پاره هم مانع نه وی.(۱)

**دَ دویم دلیل جواب:** دویم دلیل ((هذا وضوء لایقبل الله الصلاة إلا به)) باره کښې امام نووی رحمه الله فرمائیلی چه دا روایت دَ ابی بن کعب او ابن عمر رضی الله عنهم نه په سند ضعیف سره نقل دې. امام ابوبکر حازمی رحمه الله اوفرمائیل چه دا حدیث دَ یونه زیات صحابه کرامو نه په متعدد طرق سره نقل دې اوهغه ټول طرق ضعیف دی.... خلاصه دا چه دا حدیث ضعیف دې اوقابل دَ احتجاج او استدلال نه دې.(۲)

**په مواظبت سره وجوب نه ثابتیږي:** دویمه خبره دا چه دَ رسول الله ﷺ په موالات باندې مواظبت اختیارول وجوب نه ثابتوی ځکه چه اکثر وختونو کښې دَ مواظبت بیان دَسنت دَپاره کیږی.(۳)

**دَحضرت انس رضی الله عنه دَ روایت جواب:** دَحضرت انس رضی الله عنه دَ روایت جواب دادې چه ((فأحسن وضوءك)) نه په وجوب موالات باندې استدلال صحیح نه دې ځکه چه په دې کښې دَ استیناف حکم نه دې ورکړې شوې بلکه دَاتمام او احسان حکم دې. اوکه چرې دا اومنلې شی چه ددې نه اعاده او راګرځول مراد دی نو بیاهم اتمام اواحسان خو دَهغه اوچ اندام په وینځلوسره حاصلیږی. لهذا په دې حدیث سره په وجوب اعاده باندې هیڅ دلالت نه کیږی البته دَاودس اندامونو وینځلوکښې دَتفریق جواز اوعدم وجوب موالات دَدې نه ثابتیږی.(۴)

دې نه علاوه پخپله دَ امام أبوداؤد ((باب فی تفریق الوضوء)) قائمول او دَدې په ذیل کښې داحدیث راوړل دَ تفریق جواز او عدم موالات باره کښې زیات واضح دې.(۵) لهذا په دې حدیث کښې امر دَ وجوب دَپاره نه دې بلکه دا استحبابی امر دې. دغه شان دَ امام ابوداؤد رحمه الله دَ خالد بن معدان دَ روایت باره کښې امام نووی رحمه الله فرمائیلی چه هغه ضعیف الاسناد دې.(۶) خو امام بیهقی رحمه الله او ابن قطان رحمه الله دا مرسل ګرځولې دې.(۷)

بعض حضراتو دا روایت مرسل ګرځولو باندې رد هم کړې دې.(۸) لیکن علامه سهارنپوری رحمه الله فرمائیلی چه دَبخاری دَ مذهب مطابق دَامام بیهقی رحمه الله او ابن قطان رحمه الله دَ خالد بن معدان روایت مرسل ګرځول صحیح دی. ځکه چه خالد بن معدان دَ بعض صحابه کرامو نه عنعنه سره روایت کوی اودَهغوی سره ئې لقاء هم ثابته نه ده. لهذا په یقینی توګه سره دا نه شی وئیلې چه دا دَ خالد دَ هغه بعض صحابه نه بالمشافهه روایت دې. دَدې احتمال دَ وجې نه دا موصول نه شی ګرځولې کیدې البته

---

(۱) الحاوی الکبیر: ۱۶۵/۱.

(۲) المجموع شرح المهذب: ۴۳۰، ۴۵۵/۱. دَ حدیث په طرق باندې دَ تفصیلی کلام دَپاره اوګورئی تلخیص الحبیر، کتاب الطهارة: ۲۶۸/۱-۲۶۶رقم: ۸۱واُنظر: السعایة: ۱۵۹/۱.

(۳) المبسوط: ۱۷۱/۱.

(۴) بذل المجهود: ۲۶/۲.

(۵) بذل المجهود: ۲۶/۲.

(۶) المجموع شرح المهذب: ۴۵۵/۱.

(۷) السنن الکبری کتاب الطهارة باب تفریق الوضوء رقم: ۳۹۲ (۱۳۵/۱).

(۸) تلخیص الحبیر: ۲۹۲/۱-۲۹۱.

كه حدثني رجل من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم نې ونيلې وې نو بيا به حديث موصول وې خود امام مسلم رحمه الله او جمهورو په نيزدا روايت متصل دې.(١)

**په خبر واحد سره په كتاب الله باندې زياتې صحيح نه دې:**(٢)

علامه لكهنوى رحمه الله فرمائي چه دا روايت خبرواحد دې په دې سره په كتاب الله باندې زياتې جائز نه دې ځكه چه الله تعالى مطلقاً دَغسل اومسح حكم وركړې دې اودائى تفريق سره مقيد كړى نه دى. دَدې نه علاوه دَاعاده په حكم كښې دا احتمال هم دې چه هغه دَاكمال دپاره وى لكه چه بعض رواياتو كښې غيبت كونكوته دَ اودس اومونځ راګرځولو حكم وركړې شوې دې.(٣)

داحديث دَ ضعف نه باوجود په استحباب باندې محمول كولې كيدې شى لكه څنګه چه امام بيهقى رحمه الله دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول په استحباب باندې محمول كړې دې. (سيأتى) يا دَدې دا تاويل هم ممكن دې چه دَ راګرځولو حكم دَ يوناقض دَ اودس په موجود كيدو سره وو نه چه صرف دَ اوچ ځائى دَ وجې نه(٤)

دَ امام دارقطنى رحمه الله په روايت كښې دى چه يوسړى ته رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: ((ارجع فأتمم وضوءك ففعل))(٥) يعنى لاړشه اوخپل اودس مكمل كړه راشه نوهغه داسې اوكړل

په دې حديث كښې دا أتمم وضوءك په دې خبره باندې دلالت كوى چه حضورپاك دَاودس دَ استيناف حكم ورنه كړو (٦)اونه ئې دَ تيرشوى وخت باره كښې پوښتنه اوكړه صرف دَهغه ځائى دَ وينځلو حكم ئې وركړو كوم چه اوچ پاتې شوې وو.

**دَحضرت عمر رضي الله عنه دَ اثر جوابات:** علماء كرامو دَحضرت عمر رضي الله عنه دَ اثر مختلف جوابونه وركړى دى:

**دَ اعاده وضو حكم په تغليظ باندې محمول دې:** دَحضرت عمر رضي الله عنه دَاثر جواب علامه لكهنوى رحمه الله صاحب كشاف نه دا نقل كړې دې چه ((أنه محمول على التغليظ)) يعنى دَحضرت عمر رضي الله عنه دَ اودس دَ اعاده حكم وركول په تغليظ باندې محمول دې.(٧)

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله توجيه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دَحضرت عمر رضي الله عنه ارشاد ((أعد الوضوء)) دَ اطلاق الكل وارادة الجزء دَ قبيل نه دې مراد دې نه صرف دَخپې اوچه حصه وينځل دى.(٨)

---

(١) بذل المجهود: ٣٢/٢.

(٢) قال الإمام نظام الدين الشاشى رحمه الله: "وحكم الخاص من الكتاب وجوب العمل به لا محالة. فإن قابله خبر الواحد، أو القياس، فإن أمكن الجمع بينهما بدون تغيير فى حكم الخاص، يعمل بهما، وإلا يعمل بالكتاب ويترك ما يقابله". (فصل فى الخاص والعام ص:١١. وراجع للتفصيل والمزيد: مبادى علم الحديث وأصوله لمحقق العصر المحدث الشيخ شبير احمد العثمانى مع تعليقات الشيخ عبدالفتاح أبو غدة، ص: ١٩٣-١٦١).

(٣) السعاية: ١٦١/١.

(٤) بذل المجهود: ٣٢/٢.

(٥) سنن الدارقطنى مع التعليق المغنى كتاب الطهارة باب فى فضل الوضوء واستيعاب جميع القدم فى الوضوء بالماء: ١٠٩/١رقم:٦.

(٦) تلخيص الحبير كتاب الطهارة: ٢٩١/١رقم:١٠٢التعليق المغنى على سنن الدارقطنى:١٠٩/١.

(٧) السعاية: ١٦١/١.

(٨) السعاية: ١٦١/١.

**دَامام نووی رحمه الله توجيه:** امام نووی رحمه الله فرمائي چه دَحضرت عمر رضی الله عنه دَ اودس اعاده امر استحباب يا جواز باندې محمول دې. (۱) واجب صرف دَ اوچې حصې وينځل دی ځکه چه عبيد بن عمر ليثی رحمه الله دَ حضرت عمر رضی الله عنه نه داشان واقعه نقل کړې ده په کوم کښې چه حضرت عمر رضی الله عنه صرف دَخپو اوچه حصه وينځلو امر ورکولوسره فرمائيلی «اغسل ماترکت من قدمك» (۲)

**افضليت او سنيت موالات:** دا ټول بحث خودَ وجوب اوعدم وجوب دې. په دې کښې موجود اختلاف سره دَ دلائلو بيان کړې شوې دې. راجح دادی چه موالات فی الوضوء واجب نه دی ليکن دَموالات سنت او افضل کيدو کښې هيڅ اختلاف نشته. چنانچه امام ماوردی شافعی رحمه الله فرمائي چه په اودس کښې دَ تعجل حکم اودَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حکم په رڼاکښې موالات فی الوضوء او انداموته په کامل توګه سره وار په وار وينځل افضل دی. (۳)

امام شافعی رحمه الله فرمائي : «أحب أن يتابع الوضوء، ولا يفرقه: لأن رسول الله صلى الله عليه وسلم جاء به متتابعاً» (۴)

يعنې زه په اودس کښې متابعت اوعدم تفريق خوښوم ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وار په وار اودس فرمائيلی دی. اوکه چرې متوضی داسې اونه کړی نو خوبش عمل دادې چه هغه دې اودس بيا اوکړی، په تفريق کونکی باندې دَ استيناف ضروری کيدل ماته واضح نه دی. (۵)

**موالات فی الغسل:** په غسل کښې موالات واجب دی که نه په دې کښې هم اختلاف دې. ائمه ثلاثه امام اعظم امام ابوحنيفه رحمه الله (۶) امام شافعی رحمه الله (۷) اوامام احمدبن حنبل رحمه الله (۸) فرمائي چه په غسل کښې موالات واجب نه سنت دی هم دغه دامام مالک رحمه الله هم يو قول دې. (۹)

ابن حامد او ابوالخطاب نه يو روايت او امام احمد بن حنبل رحمه الله نه وجوب موالات فی الغسل هم نقل کړې دې ليکن علامه مرداوی رحمه الله فرمائي چه عدم موالات هم دامام احمد رحمه الله صحيح قول او مذهب دې او هم په دې دَ اکثر حنابله اتفاق دې. (۱۰)

دَ امام مالک رحمه الله دويم قول دادې چه دَ اودس په شان په غسل کښې هم موالات ضروری دی. (۱۱) امام ربيعه رحمه الله اوفرمائيل په غسل کښې تفريق دَ ناخوښه امورو نه دې او ترهغه وخته پورې دغه عمل ته غسل نه شی وئيلې کيدې ترکومې چه وار په وار دَ بدن انداموته وينځلې شی. باقی پاتې شوه

(۱) المجموع شرح المهذب: ۴۵۵/۱.

(۲) السنن الكبرى كتاب الطهارة باب تفريق الوضوء: ۱۳۶/۱رقم:۳۹۶.

(۳) الحاوی الكبير: ۱۶۴/۱كتاب الأم:۱۲۵/۱رقم: ۴۱۶.

(۴) كتاب الأم: ۱۲۵/۱رقم: ۴۱۶.

(۵) التوضيح: ۵۸۱/۴عمدة القارى: ۳۱۳/۳.

(۶) ردالمحتار: ۹۰/۱بدائع الصنائع: ۹۷/۱المبسوط: ۱۷۰/۱الأوسط فى السنن والإجماع والاختلاف: ۴۲۱/۱.

(۷) المجموع: ۴۵۳/۱الحاوی الكبير: ۱۶۶/۱كتاب الأم: ۱۲۷/۱.

(۸) المغنی لابن قدامة: ۱۴۰/۱الإنصاف للمرداوی: ۲۵۷/۱، ۱۴۱.

(۹) المدونة الكبرى: ۱۵/۱شرح الكرمانی: ۱۲۷/۳.

(۱۰) الإنصاف لمرداوی: ۲۵۷/۱.

(۱۱) حاشية الدسوقی: ۲۱۹/۱.

خبره دَهغه سړی چه دَ سحرنه ترمابنامه پورې په مينځمې موده کښې قصداً عمداً په غسل کښې تفريق کوی يعنی دَ بدن څه حصه ئې سحر اووينځله بياوقفه کولوسره ئې څه مابنام اووينځله نودا غسل نه دې هم دغه دَامام مالك رحمه الله او امام ليث رحمه الله هم قول دې.(١)

ابن قاسم وائی که چرې تفريق دَنسيان يعنی هيرې دَ وجې نه وی نوجائز دې. دَ امام مالك رحمه الله نه په يوقول کښې نقل دی چه په ممسوح کښې جواز دې نه چه په مغسول کښې. ابن ابی زيد وائی جواز دَ سر سره خاص دې. ابن مسلمه په مبسوط کښې وائی چه ممسوح کښې جواز دې ممسوح که سر وی اوکه موزه.(٢)

دَائمه اربعه نه علاوه امام نخعی، سعيدبن مسيب، طاؤس، امام حسن، سفيان بن سعيد ثوری اومحمد بن عبدالله بن حکم رحمهم الله وغيره هم دَ عدم وجوب موالات فی الغسل قائل دی.(٣)

**دَعدم وجوب موالات فی الغسل دلائل:** قائلين عدم وجوب موالات فی الغسل يودليل خو دَ زير بحث باب حديث ميمونه رضی الله عنها دې دَ کوم نه چه امام بخاری رحمه الله تفريق فی الغسل باندې استدلال کړې دې. وجه دَ استدلال دَحديث ترجمه سره مطابقت اومناسبت په ذيل کښې راځی.

**دويم دليل:** دويم دليل دَ امام طبرانی رحمه الله روايت دې کوم چه جابر بن سيلان دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل کړې دې: «أن رجلاً جاء إلى النبي صلى الله عليه وسلم، فسأله عن الرجل يغتسل من الجنابة فيخطىء بعض جسده الماء، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يغسل ذلك المكان، ثم يصلى»(٤)

يعنی يو سړی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو اودَهغه سړی باره کښې ئې تپوس اوکړو چه غسل دَ جنابت اوکړی اودَهغه دَ بدن څه حصه په اوبو سره لمده نه شی «بلکه اوچه پاتې شوې وی» نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په جواب کښې ارشاد اوفرمائيلو "يغسل ذلك المكان ثم يصلی" يعنی دغه اوچ ځائی دې اووينځی بيا دې مونځ اوکړی.

دَدې روايت ټول راويان ثقه دی. چنانچه حافظ نورالدين علی بن ابی بکر هيثمی رحمه الله مجمع الزوائد کښې دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دا روايت نقل کولونه پس فرمائيلی دی «رواه الطبرانی فی الکبير، ورجاله موثقون»(٥)

**دريم دليل:** دَدې نه علاوه دَ علاء بن زياد په جيدسندسره مرسل روايت نقل کړې دې: «اغتسل رسول الله صلى الله عليه وسلم من جنابة، فخرج فأبصر لمعة عنكبه لم يصبها الماء، فأخذ بجمته فبلها به»(٦)

---

(١) المدونة الكبرى: ١/١٥الأوسط: ١/٤٢٠.

(٢) عمدة القارى: ٣/٣١٣التوضيح: ٤/٥٨٢.

(٣) الأوسط: ١/٤٢١شرح ابن بطال: ١/٣٨٩عمدة القارى: ٣/٣١٣.

(٤) المعجم الكبير مسندعبدالله بن مسعود رضی الله عنه: ١٠/٢٣١رقم الحديث: ١٠٥٦١.

(٥) كتاب الطهارة باب فيمن نسى بعض جسده ولم يغسله: ١/٢٠٩رقم: ١٤٨.

(٦) الحديث أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه عن هشام بن حسان عن العلاء بن زياد، كتاب الطهارة باب الرجل يترك شيئاً من جسده فى غسل الجنابة: ١/٢٦٥رقم: ١٠١٥وأخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه عن إسحاق بن سويد العدوى عنه، كتاب الطهارة [باب] فى الرجل يتوضأ أو يغتسل فينسى اللمعة من جسده: ١/٣٧٥-٣٧٤رقم: ٤٤٧.وقال الشيخ المحقق الفاضل العلامة محمد عوامه حفظه الله:"هذا مرسل بإسناد جيد". (تعليقات مصنف ابن ابى شيبه: ١/٢٧٤).

یعنی رسول الله ﷺ دَ جنابت غسل اوکړو دَغسل نه پس حضورپاك په خپل اوږه مبارکه باندې څه حصه اوچه اولیدله نو په ویښتو باندې موجود اوبوسره نې هغه لمده کړه.

دَعدم وجوب موالات باره کښې ابن رجب الحنبلی رحمه الله فتح الباری:(۱) کښې علامه عبدالرزاق صنعانی رحمه الله مصنف: (۲)کښې او علامه ابن ابی شیبه رحمه الله مصنف: (۳)کښې مختلف روایات آثار صحابه اوتابعین نقل کړی دی چه په تفریق فی الغسل باندې صراحتاً دلالت کوی. چنانچه ابن وهب رحمه الله دَ یحیی بن ایوب نه هغوی دَ ابن حرمله نه نقل کړی دی چه یوسړی دَ سعیدبن مسیب رحمه الله په خدمت کښې راغلو اووئی وئیل: ((إنی اغتسلت الجنابة ونسیت أن اغسل رأسی، قال: فأمر رجلاً من أهل المجلس أن یقوم معه إلی المطهرة، فیصب علی رأسه دلواً من ماء))(۴)

دغه سړی اووئیل چه ماد جنابت غسل اوکړو اوسروینځل مې هیرشوی دی، سعیدبن مسیب رحمه الله دَ اهلِ مجلس نه یو سړی ته حکم اوکړو چه ده سره دَ اوبولوښې (کوهې تالاب وغیره) طرف ته لاړشه اوده په سر باندې یوه ډولچه اوبه اوبهیوه.اعمش رحمه الله دَ ابراهیم نخعی رحمه الله نه نقل کړی دی چه هغوی فرمائی ((لابأس أن یفرق غسله من الجنابة)) یعنی په دې کښې هیڅ حرج نشته دې چه سړې په غسل جنابت کښې تفریق اوکړی.(۵)

امام حسن رحمه الله او ابراهیم نخعی رحمه الله په دې خبره کښې هیڅ حرج نه ګنړلو چه جنبی خپل سر اووینځی اوبیا باقی بدن وینځلِ روستوکړی.(۶)امام لیث رحمه الله دَامام طاؤس رحمه الله نه نقل کړی دی چه کوم سړې دَ جنابت غسل کوی اودهغه دَبدن څه حصه اوچه پاتې شی نوهغه له پکاردی چه صرف هغه اوچ ځائی لوند کړی.(۷)

**دَموالات باره کښې دَ امام بخاری رحمه الله مسلک:** دَامام بخاری رحمه الله رائې او مسلك په دې باره کښې دادې چه موالات نه په اودس کښې واجب دی اونه په غسل کښې. امام بخاری رحمه الله په دې مسئله کښې په مکمل توګه دَاحنافو اوشوافع هم خیال دې. هغوی رحمه الله په عدم موالات فی الوضوء باندې دَ ابن عمر رضی الله عنهما اثرنه استدلال کړې دې او په عدم موالات فی الغسل باندې دَ حضرت میمونه رضی الله عنها دَ روایت نه استدلال کړې دې.(۸)

**تعلیق:** **وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ: أَنَّهُ غَسَلَ قَدَمَيْهِ بَعْدَ مَا جَفَّ وَضُوءُهُ.**

---

۱) ۱۶٤/۱.

۲) ۲۶۵/۱-۲۶٤.

۳) ۳۷۸/۱-۳۷٤.

٤) المدونة الکبری: ۱۵/۱والقصة روی نحوها ابن أبی شیبة فی مصنفه، کتاب الطهارة باب فی الرجل یفرق غسله من الجنابة: ٤۷۹/۱رقم: ۷۷٤.

۵) مصنف ابی شیبة کتاب الطهارة باب فی الرجل یفرق غسله من الجنابة: ٤۷۹/۱-٤۷۸رقم: ۷۷۲.

۶) الأوسط لابن المنذر: ٤۲۱/۱وقد مر تخریج أثر النخعی وأما أثر الحسن أخرجه ابن أبی شیبة فی مصنفه فی کتاب الطهارة باب فی الرجل یفرق غسله من الجنابة: ٤۷۹/۱رقم: ۷۷۳ولفظه: "أنه لایری بأساً أن یغسل الجنب رأسه قبل جسده، أو جسده قبل رأسه".

۷) أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه فی کتاب الطهارة باب الرجل یترک شیئاً من جسده فی غسل الجنابة: ۲۶۵/۱رقم: ۱۰۱۶.

۸) عمدة القاری: ۳۱۲/۳.

**ترجمه**: او دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دى چه هغوى خپلې دواړه خپې دَ اودس اوبه دَ اوچيدو نه پس اووينځلې.

**دَتعليق تخريج**: امام بخارى رحمه الله دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا اثر دلته په صيغه دَتمريض سره ذكر كړې دې. دا امام مالك رحمه الله په مؤطا كښې دَحضرت نافع رحمه الله نه موصولاً نقل كړې دې. دَ دې الفاظ دا دى:
«أن عبدالله بن عمر بال في السوق، ثم توضأ فغسل وجهه، ويديه، ومسح رأسه، ثم دُعي لجنازة ليُصلي عليها حين دخل المسجد فمسح على خفيه، ثم صلى عليها» (1)

يعنى حضرت ابن عمر رضي الله عنهما (په بازار كښې وو) هلته ئى متيازې اوكړې بيائى اودس اوكړو داسې چه مخ او لاسونه ئى اووينځل او دَ سر مسح ئى اوكړه، بياچه كله هغوى په مسجد نبوى كښې داخل شو نو يوې جنازې دَ مونځ وركولو دَ پاره رااوغوښتې شو(نو هغوى هلته) په خفين باندې مسح اوكړه او دَ جنازې مونځ ئى وركړو.

علامه سراج الدين ابوحفص عمر بن على بن احمد شافعى المعروف بابن الملقن رحمه الله (المتوفى: ۸۰۴هجرى) «البدر المنير في تخريج الأحاديث والآثار الواقعة في الشرح الكبير» كښې دا اثر دَ مؤطا امام مالك رحمه الله په حواله سره دَتخريج نه پس دا اصح الاسانيد گرځولوسره فرمائى: «وهذا الإسناد لايشتبه على أحد صحته، ويسمى هذا الإسناد: سلسلة الذهب، مالك عن نافع عن ابن عمر: بل هو أصح الأسانيد" مطلقاً على قول إمام هذا الفن — البخاري رحمه الله — هذا أصح الأسانيد"» (2)

يعنى دَدې سند صحت په چاباندې هم مشتبه نه دې مالك عن نافع عن ابن عمر سند ته سلسله الذهب وئيلى شى بلكه دا سند خو دَدې فن امام بخارى رحمه الله دَ قول مطابق مطلقاً أصح الأسانيد نه دې.

امام شافعى رحمه الله هم په كتاب الأم كښې مالك عن نافع عن ابن عمر په سندسره دا اثر موصولاً نقل كړې دې البته هغوى «ثم دعي لجنازة ليصلي عليها حين دخل المسجد» الفاظو په ځائى «ثم دعي لجنازة، فدخل المسجد ليصلي عليها» الفاظ نقل كړى دى اودَدې په شروع كښې «بال في السوق» تذكره هم نه ده كړې باقى الفاظ هم هغه دى. (3)

امام بيهقى رحمه الله السنن الكبرى كښې دا اثر په خپل سندسره دَ قتيبه بن سعيد په واسطه دَ امام مالك رحمه الله نه موصولاً نقل كړې دې البته هغوى هم په شروع كښې «بال في السوق» الفاظ نه دى نقل كړى خو دَ «فغسل يديه ووجهه» نه پس «فمسح على خفيه» نه پس «وذراعيه ثلاثاً» او «فمسح على خفيه» نه پس «بعد ما جف وضوءه» زيادت هم نقل كړې دې اودَدې اثر نقل كولونه پس فرمائى «وهذا صحيح عن ابن عمر ومشهور عن قتيبة بهذا اللفظ» (4)

---

(1) كتاب الطهارة باب ماجاء في المسح على الخفين: ۱/۳۷-۳۶رقم: ۴۳راجع جامع الأصول، رقم: ۵۲۷۱.

(2) كتاب الطهارة باب الوضوء تحت الحديث: الثامن والخمسون: ۲/۲۶۸،ت:مصطفى أبوالغيط وعبدالله بن سليمان وياسر بن كمال، دارالهجرة للنشر والتوزيع، الرياض السعودية، الطبعة الأولى: ۱۴۲۵هجرى – ۲۰۰۴م.

(3) كتاب الطهارة باب تقديم الوضوء ومتابعته: ۱/۱۲۷رقم: ۴۲۳انظر كذلك، مسندالشافعى، كتاب الوضوء: ۱/۱۴رقم: ۵۱دارالكتب العلمية.

(4) كتاب الطهارة باب تفريق الوضوء: ۱/۱۳۶رقم: ۳۹۷.)

حافظ ابن حجر رحمه الله تغليق التعليق كښې دامام بيهقى رحمه الله مذكوره روايت نقل كولوسره «فما يقال» الفاظوسره دَ قتيبه دَ امام مالك رحمه الله نه تفرد ګرځول ذكركړې او فرمائيلى دى چه دا بعد ما جف وضوءه دَقتيبه تفرد نه دې ځكه چه امام شافعى رحمه الله دَهغوى متابعت كړې دې او امام بيهقى رحمه الله معرفة السنن والآثار كښې دَدې تخريج كړې دى.([1])

دَ تغليق التعليق محقق فتح الباري او كتاب الأم كښې مذكور اثر نقل كولوسره دَ امام شافعى رحمه الله متابعت ګرځولو سره ليكلى دى «والى متابعة الشافعى هذه أشار الحافظ فى الفتح»([2])

واضحه دې وى چه امام شافعى رحمه الله دَ قتيبه ابن سعيد رحمه الله متابعت «بعد ما جف وضوءه» الفاظو كښې نه دې كړې يعنى دَهغوى په روايت كښې دا الفاظ «بعد ما جف وضوءه» نشته دې. لهذا دَ حافظ ابن حجر رحمه الله قول «قد تابعه الشافعى» مطلب به دا شى چه قتيبه بن سعيد رحمه الله اوامام شافعى رحمه الله دَ امام مالك رحمه الله نه نفس روايت نقل كولو كښې متفق دى. هم دې ته دَ اصول حديث په اصطلاح كښې متابعت وئيلى شى. ([3])قطع نظر دَدې نه چه امام شافعى رحمه الله متابعت په پوره الفاظ دَحديث كښې دى يا بعض كښې. البته امام شافعى رحمه الله دَ قتيبه دَ دې تفرد تائيد دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما مذكوره اثر نقل كولونه پس په دې الفاظوسره كړې دې: «ولعله قد جف وضوءه وقد يجف فى مأأقل مما بين السوق والمسجد»([4]) يعنى كيدې شى چه دَ ابن عمر رضي الله عنهما په خفين باندې مسح داودس دَ اوچوالى نه پس وى ځكه چه دَبازار نه دَ جمات پورې چه څومره فاصله ده دَهغې نه هم په كم وخت كښې دَ اودس اندامونه اوچيږى.

امام بيهقى معرفةالسنن والآثار كښې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا اثر په دې سند سره موصولاً نقل كړې دې: «أخبرنا أبوزكريا، وأبوسعيد، وأبوبكر، قالوا: حدثنا أبو العباس قال: أخبرنا الربيع، قال: أخبرنا الشافعى، قال: أخبرنا مالك عن نافع عن ابن عمر..........»([5])

علامه عينى رحمه الله هم عمدة القاري كښې دَ امام بيهقى رحمه الله معرفةالسنن والآثار والا دَ روايت تخريج كړې دې. ([6])حافظ ابن حجر رحمه الله هم په صحيح سند سره دَ ابوالعباس محمدبن اسحاق بن ابراهيم ثقفى رحمه الله په واسطه سره دَ قتيبه بن سعيد نه مذكوره اثر موصولاً روايت كيدل نقل كړې دى.([7])

دا اثر امام ابواحمد بن محمد بن اسحاق نيشاپورى، كرابيسى، المعروف بالحاكم الكبير (المتوفى ۳۷۸هجرى) دَ قتيبه بن سعيد په پورتنى طريق سره «بعد ما جف وضوءه» الفاظ سره نقل كړې دې.([8])

---

[1]) تغليق التعليق: ۱۵۷/۲.

[2]) تعليقات تغليق التعليق: ۱۵۷/۲.

[3]) معرفة أنواع علم الحديث ص: ۱۷۴-۱۷۳.

[4]) كتاب الأم كتاب الطهارة باب تقديم الوضوء ومتابعته: ۱۲۷/۱رقم: ۴۲۴.

[5]) كتاب الطهارة باب متابعة الوضوء: ۱۸۲/۱رقم: ۹۹.

[6]) عمدة القارى: ۳۱۳/۳.

[7]) تغليق التعليق: ۱۵۷/۲.

[8]) عوالى مالك رواية أبى أحمدالحاكم ضمن مجموعة من عوالى الإمام مالك: ۲۲۵/۱رقم:۲۴۸،ت: محمدالحاج الناصر، دارالغرب الإسلامى، الطبعة الثانية: ۱۹۹۸م.

**تنبیه**: ښکاره دې وی چه دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا اثرامام بخاری رحمه الله په یذکر صیغه مجهول سره دَ تعلیق په توګه راوړلې دې. حالانکه دَتخریج تعلیق نه داخبره معلومه شوه چه مذکوره اثر په صحیح سندسره موصولاً نقل دې. هم دغه وجه ده چه علامه کرماني رحمه الله [۱] اوعلامه عیني رحمه الله [۲] لیکلی دی چه که امام بخاری رحمه الله په دې اثرکښې دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما طرف ته دَمسح خفین په ځائی باندې دَغسل قدمین نسبت کړې دې. خو امام مالك رحمه الله امام شافعي رحمه الله اوامام بیهقي رحمه الله په موصول روایاتوکښې مسح خفین وارد شوې دې نه چه غسل قدمین.[۳]

**دَامام بخاری رحمه الله دَ صنیع توجیه**: حافظ ابن حجر رحمه الله فتح الباري[۴] او تغلیق التعلیق[۵] کښې خوعلامه قسطلاني رحمه الله ارشادالساري[۶] کښې دَ امام بخاری رحمه الله دَدې صنیع دا توجیه کړې ده چه هغوی دا اثر دَ روایت بالمعنی په توګه سره بیان کړې دې. په دې وجه په جزم سره ذکر نه دې بلکه په صیغه دَتمریض ئی راوړې دې.علامه ابن رجب الحنبلي رحمه الله فتح الباري کښې دَ امام احمد رحمه الله په حواله سره فرمائی چه هغوی دَ ابن عمر رضي الله عنهما نه دا اثر نقل کړې دې په دې کښې غسل رجلین وارد شوې دې. چنانچه دَهغې الفاظ دادی: «عن ابن عمر: أنه توضأ، ثم غسل رجليه في مكان اخر»[۷]

**فائده**: دلته خویوه داخبره په ذهن کښې ساتنی چه امام بخاری رحمه الله په خپل کتاب الجامع الصحیح کښې دَ ټولو احادیثو راجمع کولو التزام نه دې کړې هم دغه وجه ده چه ډیر زیات صحیح احادیث په بخاری شریف کښې نشته دې چه نورو کتب صحاح کښې په کثرت سره نقل دی. چنانچه هم پخپله امام بخاری رحمه الله ددې خبرې صراحت کړې دې چه هغوی په ویره دَ طوالت ډیر صحیح روایت هم ترك کړې دی او په خپل صحیح کښې نه دی ذکرکړی.[۸] حافظ ابن حجر رحمه الله هم دَدې خبرې صراحت کړې دې چه امام بخاری رحمه الله ټول صحیح احادیث دَ ذکر کولو التزام نه دې کړې.[۹]

**صحیح بخاری ته دَ اصح الکتب وئیلو وجه**: بله داخبره په ذهن کښې ساتل دی چه دَ امام بخاری رحمه الله کتاب ته أصح الکتب بعد کتاب الله وئیلی شوی دی هغه په دې کښې موجود روایات مرفوعه مسنده دَ مجموعی حالت په اعتبارسره دی په جزئی توګه دَ هر یوحدیث متعلق نه دې لګولې شوې. دَدې نه علاوه تراجم ابواب او آثار اوتعلیقات چونکه اصل مضمون او مقصود په کتاب کښې داخل نه دی په دې وجه دَ اصحیت دا اطلاق په دې باندې نه دې شوې خودَ امام بخاری مقصد دَدې تعلیقاتونه صرف په یوه مسئله باندې استشهاد او استیناس کیږی.[۱۰]

---

[۱] شرح الکرماني: ۱۲۶/۳.

[۲] عمدة القاري:۳۱۳/۳.

[۳] الکنزالمتواری: ۲۰۸/۳.

[۴] ۴۹٤/۲.

[۵] ۱۵۷/۲.

[۶] ۵۰۱/۱.

[۷] کتاب الطهارة باب تفریق الوضوء: ۱۶٤/۱ولم أجده في مسندأحمد.

[۸] علوم الحدیث لابن الصلاح ص: ۲٤.

[۹] اختصار علوم الحدیث مع الباعث الحثیث ص: ۲۵.

[۱۰] دَ نورو تفصیل دَپاره اوګورئی: معرفة أنواع علوم الحدیث: ص: ۹۵،ت: الشیخ ماهر یاسین الفحل، دارالکتب العلمیة، قواعد في علوم الحدیث للعلامة المحقق المحدث الشیخ ظفر أحمد العثماني، الفصل الثاني في

**په نقل اثارکښې دَامام بخاري رحمه الله درجه:** دَدې تصريحاتو نه پس داسې وئيلې کيدې شي چه دَ امام بخاري رحمه الله تثبت دَصحابه کرامو آثار نقل کولوکښې دَهغه درجې نه دې کوم چه په احاديث دَ صحيح بخاري نقل کولوکښې دی. چنانچه دَ ابن عمر رضي الله عنهما زير بحث اثر سره دَ دې چه دَ يذکر صيغه تمريض سره ذکرکول يا دَ روايت بالمعنى دَ وجې نه دَهغه ذمه واري کمه شوه خو که په ژور نظرسره اوکتلې شي نودا معمولې خبره نه ده اوددې په خلاف دَامام اعظم رحمه الله اودَ تلامذه او شرکاء تدوين فقه احاديث سره سره دَ صحابه کرامو آثار په ډير اهتمام سره تتبع کړې دی. دَ احنافو دَ کتابونو نه واقف يوطالب علم هم دَدې حقيقت نه انکارنه شي کولې.

**دَ تعليق غرض:** دَامام بخاري رحمه الله غرض په دې تعليق سره دَ تفريق في الوضوء جواز دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما په فعل او عمل سره مؤيد کول دی. (۱)

**دَ تعليق شرح: وضوءه:** دَ واؤ فتح سره هغه اوبوته وائی په کوم سره چه اودس کړې شوې وی (مراد ترې نه په اندامونو باندې لګيدلې دَ اودس اوبه دی). (۲)

علامه قسطلانی رحمه الله دَ فرع اليونينيه په حواله سره دَ واؤ ضمه سره وُضوءه هم نقل کړې دې (دې نه به مراد دَ اودس عمل وی). (۳) تعليق سره متعلق اکثر مباحث بيان شوی دی البته دَ تخريج تعليق دَوران کښې دَ موصول رواياتونه داخبره مخې ته راغلې ده چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په خفين باندې مسح فرمائيلې وه. دې سره متعلق څه وضاحت پکار وو نو لاندې هغه بيانولې شی.

حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په خفين باندې مسح مسجد نبوی کښې دننه کړې وه که بهر؟ که چرې بهرنې کړې وه نو په دې کښې څه دَ اشکال خبره نشته دې که چرې دننه ئې کړې وه نو دَ اوبو دَ نشت والی دَ وجې نه به ئې جائز ګنړلو سره کړې وی. باقی پاتې شوه خبره په جمات کښې دننه دَ اودس نو علامه ابوالوليد باجی رحمه الله په دې باره کښې دَ مالکيه اختلاف نقل کړې دی. دَ موسی بن معاويه دَ روايت مطابق ابن قاسم رحمه الله دا جائزګرځولې دی. خو امام سحنون رحمه الله دَ تلويث مسجد دَ وجې نه مکروه ګرځولې دی. (۴) ابن حبيب مالکی رحمه الله فرمائی چه په جمات کښې دننه اودس کول خو منع دی ليکن دَ جمات په صحن (چه دَشرعی جمات نه بهر وی) اودروازې سره نيزدې په کوم سره چه دَخلقو تګ راتګ نه متاثر کيږی اودس کول جائز دی. (۵)

په احنافو کښې صاحب دَ الدرالمختار په جمات کښې دننه اودس کول منهيات وضوءکښې شميرلې دی. او په جمات کښې دننه څه لوښی کښې (په داسې توګه چه څاڅکی بهر لاړنه شی) يا که دَاودس خانی جوړشوې وی نو په هغې کښې اودس کول جائزدی. (۶)

---

بيان ما يتعلق بالتصحيح والتحسين من قواعد مهمة وأصول، ص: ۶۴-۶۳ هدى الساري للحافظ ابن حجر، ص: ۵۰۲-۵۰۱،ت: عبدالعزيز بن باز، قديمی کتب خانه، تدريب الراوی: ۱۳۳/۱دارطيبه، توضيح الأفكار لمعانى تنقيح الأفكار: ۱۳۲/۱،ت: صلاح محمد بن عويضه، دارالكتب العلمية، بيروت لبنان.

(۱) فتح الباري: ۴۹۴/۲عمدة القاري: ۳۱۲/۳شرح الكرماني: ۳/۱۲۷.

(۲) شرح الكرماني: ۱۲۶/۳فتح الباري: ۴۹۴/۲عمدة القاري: ۳۱۲/۳تحفة الباري: ۲۲۶/۱.

(۳) إرشادالساري: ۵۰۱/۱.

(۴) المنتقى شرح مؤطا مالك: ۳۶۳/۱أوجزالمسالك: ۴۴۸/۱.

(۵) المنتقى: ۳۶۴/۱.

(۶) الدرالمختار ص:۲۳ أوجزالمسالك: ۴۴۹/۱-۴۴۸.

شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله فرمانی په دې سره معلومه شوه چه په جمات کښې دننه صرف په خفین باندې مسح کول په کراهت کښې داخل نه دی.[1]

چونکه امام مالک رحمه الله د مشهور قول مطابق د وجوب موالات فی الوضوء قائل دې (کمامر) او د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دا اثر د دې برعکس په جواز تفریق فی الوضوء باندې دلالت کوی. امام مالک رحمه الله دا په مؤطا کښې نقل کړې خو دی لیکن دا نې د جواز تفریق فی الوضوء په سلسله کښې نه دې اخستې. چنانچه ابن قاسم رحمه الله وائی چه امام مالک رحمه الله د تاخیر مسح په باره کښې د ابن عمر رضی الله عنهما اثر نه دې اخستې.[2]

دا اثر چونکه په صحیح سند سره نقل دې په دې وجه مالکیه د دې مختلف تاویلات بیان کړی دی مگر هغه زیات قوی نه دی. شیخ الحدیث مولانازکریا د دغه توجیهاتونقل کولونه پس لیکلی دی «وأنت خبیر بما فی هذه التوجیهات».[3]

## الحدیث الأول

۲۶۵ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَاحِدِ، قَالَ: حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَتْ مَيْمُونَةُ: «وَضَعْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاءً يَغْتَسِلُ بِهِ، فَأَفْرَغَ [ص:٦٣] عَلَى يَدَيْهِ، فَغَسَلَهُمَا مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا، ثُمَّ أَفْرَغَ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ، فَغَسَلَ مَذَاكِيرَهُ، ثُمَّ دَلَكَ يَدَهُ بِالأَرْضِ، ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، وَغَسَلَ رَأْسَهُ ثَلاَثًا، ثُمَّ أَفْرَغَ عَلَى جَسَدِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى مِنْ مَقَامِهِ، فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ» [حدیث باب][4]

---

[1]) أوجز المسالک إلى مؤطا مالک: ٤٤٩/٢.

[2]) المنتقى: ٣٦٤/١ أوجز المسالک: ٤٤٩/١.

[3]) أوجز المسالک إلى مؤطا مالک: ٤٤٩/٢.

[4]) الحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی نفس الکتاب باب الوضوء قبل الغسل. رقم الحدیث: ٢٤٩ وفی باب الغسل مرة، رقم الحدیث: ٢٥٧ وفی باب الغسل بالصاع ونحوه، رقم الحدیث: ٢٥٣ وفی باب مسح الید بالتراب لتکون أنقی رقم الحدیث: ٢٦٠ وفی باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة رقم الحدیث: ٢٥٩ وفی باب من توضأ فی الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم یعد مواضع الوضوء منه مرة أخری رقم الحدیث: ٢٧٤ وفی باب نفض الیدین من الغسل عن الجنابة رقم الحدیث: ٢٧٦ وفی باب التستر فی الغسل عندالناس بنحوه مختصراً رقم الحدیث: ٢٨١ وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الحیض باب صفة غسل الجنابة رقم الحدیث: ٧٢٢ وابوداؤد فی سننه فی کتاب الطهارة باب فی الغسل من الجنابة رقم الحدیث: ٢٤٥ والترمذی فی سننه فی کتاب الطهارة باب ماجاء فی الغسل من الجنابة بنحوه مختصراً وقال: هذا حدیث حسن صحیح رقم الحدیث: ١٠٣ والنسائی فی سننه فی کتاب الطهارة باب غسل الرجلین فی غیرمکانه الذی یغتسل فیه رقم الحدیث: ٢٥٢ وأیضاً فی کتاب الغسل والتیمم، باب إزالة الجنب الأذی عنه قبل إفاضة الماء علیه بنحوه مختصراً رقم الحدیث: ٤١٨ وأیضاً فی باب مسح الید بالأرض بعد غسل الفرج رقم الحدیث: ٤١٩ وأیضاً فی باب الاستتار عندالغسل رقم الحدیث: ٤٠٨ وأخرجه ابن ماجه فی سننه فی کتاب الطهارة باب المندیل بعدالوضوء رقم الحدیث: ٤٦٧ راجع جامع الأصول رقم: ٥٣٢١ وتحفة الأشراف رقم: ١٨٠٦٤.

**ترجمه**: مونږ ته موسى بن اسماعيل بيان اوكړو وئې وئيل چه اووئيلِ مونږ ته ابوعوانه، اووئيل مونږ ته اعمش، هغوى دَ سالم بن ابى الجعدنه هغوى دَ ابن عباس رضي الله عنهما دَ غلام كريب نه هغوى دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هغوى دَ ميمونه بنت حارث رضي الله عنها نه، هغه فرمائى چه ما دَ رسول الله ﷺ دَ (غسل دَ پاره) اوبه كيخودې دې دَپاره چه رسول الله ﷺ په دې سره غسل اوكړى. حضورپاك (اول) په خپلو دواړو لاسونوباندې اوبه واچولې اوهغه ئې دوه ځل يا درې ځل اووينځل، بيا حضورپاك په خپل ښى لاس سره په ګس لاس اوبه واچولې او (په ګس لاس سره) ئې خپل شرمګاه اووينځلو، بيائې خپل لاس مبارك په زمكه باندې اومږلو بيا حضورپاك خله كښې اوبه واچولې او پوزه كښې اوبه واچولې، بيا مخ (مبارك) اووينځلو اوخپل دواړه لاسونه ئې اووينځل بيائې خپل سر مبارك درې ځل اووينځلو بيائې په خپل پوره بدن باندې اوبه اوبهيولې اوبيا دَهغه ځائى نه اخوا شو اوخپلې دواړه خپې ئې اووينځلې.

## تراجم رجال

**حدثنا محمدبن محبوب**: دامشهور محدث محمدبن محبوب، بنانى بصرى رحمه الله دې.[1] علامه كرمانى رحمه الله اوعلامه عينى رحمه الله قيل سره نقل كړى دې چه محبوب دَدوى لقب دې او نوم ئې حسن دې. حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى چه بعض حضراتو دَدوى ترجمه دَ محمد بن حسن شيبانى رحمه الله ترجمه سره ګډه وډه كړې ده دَ دې غلطنى سبب دادې چه دَ محمدبن حسن لقب محبوب دې او بعضِ رواياتوكښې حدثنا محمد بن الحسن راغلې دې نو دغه خلقو دَمحمد بن حسن لقب ګمان كولو سره دمحمدبن محبوب ترجمه ئې دَ محمد بن حسن سره ګډه وډه كړې ده حالانكه صحيح خبره داده چه دواړه جدا جدا هستئى دى. محمد بن حسن، دمحمدبن محبوب نه زيات مشهور هم دې او په عمركښې هم مشر دې.[2]

**شيوخ حديث**: هغوى رحمه الله چه دَكومو محدثينو حضراتو نه حديث روايت كړې په هغوى كښې حرب بن ميمون، حفص بن غياث، حماد ابن زيد، حماد بن سلمه، سرار بن مُجشر، سلام بن ابى مطيع، عبدالعزيز بن مسلم، عبدالواحد بن زيات، محمدبن دينار، ابوحفص الابار او ابوعوانه رحمهم الله شامل دى.[3]

**تلامذه**: دَهغوى رحمه الله نه دَ حديث پاك روايت كونكوكښې اصحاب كتب سته نه امام بخارى رحمه الله، امام ابوداؤد رحمه الله ابراهيم بن ابى الجُحَيم، احمد بن محمدمقدمى، احمد بن مهدى اصبهانى، احمدبن يوسف سلمى، احمد بن على وراق، عباس بن عبدالعظيم عنبرى، عبدالله بن احمد دورقى،

---

[1] التاريخ الكبير: ۲٤٥/۱رقم الترجمة: ۷۷٥ كتاب الثقات: ۸۰/۹ الجرح والتعديل: ۱۱۸/۸رقم الترجمة ٤٤٠،تهذيب الكمال: ۳۷۰/۲٦ رقم الترجمة: ٥٥۸۲تاريخ الإسلام: ۱۳۹/٦رقم الترجمة: ٤٥۳ميزان الاعتدال: ۲٥/٤رقم الترجمة: ۸۱۱۹ الكاشف: ۷٥/۳رقم الترجمة: ٥۱۹۸تهذيب التهذيب: ٤۲۹/۹رقم الترجمة: ۷۰۰تقريب التهذيب:۱۲۹/۲أرقم الترجمة: ٦۲۸٦ ابوعبدالله دَدوى كنيت دې حواله سابق إكمال تهذيب الكمال: ۳۳۱/۱.

[2] تهذيب التهذيب: ٤٦۹/۹رقم الترجمة: ۷۰۰حافظ ابن حجر رحمه الله دَ امام بخارى رحمه الله كتاب الاحكام كښې چه كله دَ محمد بن محبوب نه روايت نقل كوې نودمحمدپه ځائې محبوب بن الحسن ونيلې ۱ه. دَ لټون نه باوجود په كتاب الاحكام كښې دَدې نوم راوى نه دې ملاؤشوې. ۱۲ ع م.

[3] تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲٦-۳۷۰ تهذيب التهذيب: ٤۲۹/۹.

عمرو بن منصور نسائي، عيسى بن شاذان، محمد بن يحيى ذهلي، محمدبن يونس كديمي، نصر بن داؤد خلنجي، يحيى بن مطرف اصبهاني، يعقوب بن سفيان او يعقوب بن شيبه رحمهم الله شامل دي. [1]

دَدوی نه علاوه صاحب سنن امام نسائي دَ محمدبن محبوب رحمه الله نه عمرو بن منصور رحمه الله په واسطه روايت نقل کړي دي. [2]

**دَائمه جرح والتعديل اقوال:** امام ابوداؤد رحمه الله فرمائي چه ما يحيى بن معين رحمه الله دَ محمدبن محبوب رحمه الله تعريف کولوسره اوريدلي. ابن معين رحمه الله فرمائي «هوكيّس، صادق، كثير الحديث». [3]

يحيى بن معين رحمه الله فرمائي «كان محمدبن محبوب أكيس في الحديث من مسدد، ومسدد كان خيراً منه». [4] ابن محرز دَ يحيى بن معين نه نقل کړي دي چه هغوی فرمائيلي دي "ليس به بأس" [5] ابن حبان رحمه الله په الثقات کښې دَدوی تذکره کړې ده. [6] علامه ذهبي رحمه الله الكاشف [7] کښې اوحافظ ابن حجر رحمه الله تقريب التهذيب کښې فرمائي ثقة. [8]

**وفات:** دَمحمد بن محبوب رحمه الله دَ وفات دَ کال باره کښې دوه اقوال دي. ① بعض حضراتو ونيلي ۲۲۲هجري کښې وفات شوې. [9] ② ابن ابى عاصم، ابن قانع [10] علامه کرماني رحمه الله [11] علامه قسطلاني رحمه الله [12] علامه عيني رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله جزم سره فرمائيلي دي چه ۲۲۳هجري کښې انتقال شوې.

علامه مزى رحمه الله اوعلامه ذهبي رحمه الله هم دغه قول دَ امام بخاري رحمه الله نه هم نقل کړې دې. [13] حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه مغلطائي رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دَ ۲۲۳هجري جزم نه دې فرمائيلې بلکه داسې ونيلي دي چه ۲۲۳هجري سره نيزدې وفات شوې. [14]

**قال: حدثنا عبد الواحد:** دا عبدالواحد بن زياد عبدي بصري رحمه الله دي. [1]

---

[1]) تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲۶ تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ تاريخ الإسلام: ۱۳۹/۶.

[2]) تهذيب الكمال: ۳۷۲/۲۶ تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ تاريخ الإسلام: ۱۳۹/۶.

[3]) تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲۶ تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ تاريخ الإسلام: ۱۳۹/۶.

[4]) تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲۶ تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ ميزان الاعتدال: ۲۵/۴.

[5]) تعليقات تهذيب الكمال: ۳۷۱/۲۶.

[6]) كتاب الثقات: ۸۰/۹.

[7]) ۷۵/۳.

[8]) تقريب التهذيب: ۱۲۹/۲.

[9]) تهذيب الكمال: ۳۷۲/۲۶ تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ تاريخ الإسلام: ۱۳۹/۶.

[10]) تهذيب الكمال: ۴۲۹/۹ إكمال تهذيب الكمال: ۳۳۱/۱. علامه ذهبي الكاشف: ۷۵/۳ تاريخ إسلام: ۱۳۹/۶.

[11]) إرشادالساري: ۵۰۲/۱.

[12]) عمدة القاري: ۳۱۴/۳.

[13]) تهذيب الكمال: ۳۷۲/۲۶ تاريخ الإسلام: ۱۳۹/۶.

[14]) تهذيب التهذيب: ۴۲۹/۹ إكمال تهذيب الكمال: ۳۳۱/۱.

**قال: حدثنا الأعمش:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دي چه دأعمش په لقب سره مشهوردي.([1])

**عن سالم بن أبي الجعد:** دا مشهور محدث سالم بن ابى الجعد رافع اشجعى كوفى رحمه الله دي.([2])

**عن كريب مولى ابن عباس:** داكريب بن ابى مسلم قريشى، هاشمى، حجازى مولى ابن عباس رضي الله عنهما دي. ابورشدين ددوى كنيت دې.([3])

**عن ابن عباس:** دا ترجمان القرآن صحابى جليل او دَ حضورپاك دَ تره خوئى عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف رضي الله عنهما دي.([5]) دَ هغوى رضي الله عنهما حالات **بدءالوحى باب كيف كان بدءالوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم او كتاب الإيمان باب كفران العشير، وكفر بعد كفر** كنبې تيرشوى دى.([6])

**قالت: ميمونة رضي الله عنها:** دا حرم نبوى زوجه رسول ام المؤمنين حضرت ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها ده.([7]) دَ هغوى رضي الله عنها احوال **كتاب العلم باب السمر فى العلم** لاندې بيان كړې شوى دى.([8])

## شرح حديث

دَحضرت ميمونه رضي الله عنها دا روايت امام بخارى رحمه الله كتاب الغسل كنبې زير بحث باب نه علاوه په اووه نورو ابواب كنبې دَمختلف شيوخ حديث نه اختصار او تفصيل اودَ الفاظو فرق سره نقل كړې دي.([9])
**باب الغسل مرة واحدة** كنبې دَ موسى بن اسماعيل رحمه الله په طريق سره دَدې روايت پوره متن تير شوې دې. البته په بعض الفاظوكنبې اختلاف دې چه ډير زر به بيان كړې شى. دَ باقى شرح حديث سره مباحث دَ سابقه ابواب په ذيل كنبې بيان شوى دى. فليراجع.

---

[1]) تهذيب الكمال: ۱۸/۴۵۲-۴۵۰،دَ دوى حالات كشف البارى كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان : ۲/۳۰۱ كنبې تيرشوى دى.

[2]) تهذيب الكمال: ۱۲/۹۲-۷۶ دَدوى احوال كشف البارى كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم: ۲/۲۵۳-۲۵۱ كنبې بيان شوى دى.

[3]) تهذيب الكمال: ۱۰/۱۳۳-۱۳۰ دَ دوى دَ ژوند حالات صحيح البخارى كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع لاندې اوګورئي.

[4]) تهذيب الكمال: ۲۴/۱۷۴-۱۷۲دَدوى حالات بخارى شريف كتاب الوضوء باب التخفيف فى الوضوء په ذيل كنبې تيرشوى دى.

[5]) سير أعلام النبلاء: ۳/۳۵۹-۳۳۱.

[6]) كشف البارى: ۱/۴۳۷-۴۳۵، ۲/۲۰۵.

[7]) الإصابة: ۴/۱۲-۱۱،الطبقات الكبرى: ۸/۱۳۲۳.

[8]) كشف البارى: ۴/۴۲۲-۴۲۰.

[9]) الحديث أخرجه الإمام البخارى رحمه الله عن محمد بن يوسف فى باب الوضوء قبل الغسل. وعن موسى بن إسماعيل فى باب الغسل مرة واحدة، وعن عمر بن حفص بن غياث فى باب المضمضة والاستنشاق فى الجنابة، وعن الحميدى فى باب مسح اليد بالتراب لتكون أنقى، وعن موسى بن إسماعيل فى باب من أفرغ بيمينه على شماله فى الغسل. وعن يوسف بن عيسى فى باب من توضأ فى الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد غسل مواضع الوضوء. مرة أخرى، وعن عبدان فى باب نفض اليدين من الغسل عن النجاسة وعنه فى باب التستر فى الغسل عندالناس.

## د الفاظو اختلاف:

**قوله:: وضعت لرسول الله صلى الله عليه وسلم** ابوذر، اصيلى او ابن عساكر په نسخو كښې لرسول الله په ځائې للنبيّ الفاظ روايت دى. (۱)

**قوله:: ماء يغتسل به** "باب الغسل مرة واحدة" كښې دَموسى بن اسماعيل رحمه الله په روايت كښې دَ"ماء يغتسل به" په ځائې "ماء للغسل" الفاظ راغلى دى.

**قوله:: فأفرغ على يديه** دا الفاظ دَ موسى بن اسماعيل رحمه الله په روايت كښې نشته دي.

**قوله:: فغسلهما مرتين** مرتين دَ بغير تكرار نه دي خودَ ابوذر اصيلى او ابن عساكر اودَ ابوالوقت په روايت كښې مرتين، مرتين تكرار سره راغلي دي. (۲)

دَ موسى بن اسماعيل رحمه الله په روايت كښې دَ هما ضمير په ځائې دَ يديه تصريح ده.

**قوله:: أو ثلاثاً** دادَ راوى دَ طرف نه شك دي يعنى دوه ځل ئې اووينځل كه درې ځل ئې اووينځل په دې كښې شك دي. (۳)

**قوله:: ثم أفرغ بيمينه على شماله** دَ موسى بن اسماعيل رحمه الله په سابقه روايت كښې بيمينه الفاظ نشته دي.

**قوله:: ثم دلك يده بالأرض** دَ موسى بن اسماعيل په روايت كښې دلك په ځائې باندې مسح ذكر دې.

**قوله:: ثم مضمض واستنشق** په سابقه روايت كښې مضمض په ځائې باندې تمضمض راغلي دي خودَ ابوذر ابوالوقت اصيلى اوابن عساكر په روايت كښې دلته هم دَ تمضمض الفاظ نقل دى. (۴)

**قوله:: ثم غسل وجهه ويديه وغسل رأسه ثلاثاً** دَ ماقبل په روايت كښې ثم په ځائې باندې واؤ دې اودَ ابوذر اصيلى ابوالوقت او ابن عساكر په روايت كښې دلته هم وغسل ذكر دې. (۵) او وغسل رأسه ثلاثاً په ځائې باندې ثم أفاض على جسده الفاظ دى.

**په ثلاثاً كښې موجود احتمالات** په ثلاثاً كښې دوه احتمالات دى. دَ ثلاثاً قيد چه دَ سابقه ټولو افعالو طرف ته راجع وې يعنى حضوراكرم صلى الله عليه وسلم ټول اندامونه دَاودس درې درې ځل اووينځل هم دا شوافع اختيار كړى دى. (۶)

(۱) إرشادالسارى: ۱/ ۵۰۲تحفة البارى: ۱/ ۲۲۶.
(۲) إرشادالسارى: ۱/ ۵۰۲.
(۳) إرشادالسارى: ۱/ ۵۰۲.
(۴) إرشادالسارى: ۱/ ۵۰۲تحفة البارى: ۱/ ۲۲۶.
(۵) إرشادالسارى: ۱/۵۰۲.
(۶) إرشادالسارى: ۱/ ۵۰۲شرح الكرمانى: ۳/ ۱۲۶تحفة البارى: ۱/ ۲۲۶.

دويم احتمال دادې چه دَئلاثاً قيد صرف دَ آخرى فعل غسل رأس طرف ته راجع وى هم دغه دَ احنافو قول دې ځکه چه دا اصول اوقاعده ده «إن القيد المتعقب لجُمَل يعود على الأخيرة» [1] يعنى دَ څو جملونه پس راتلونکې قيد دَ آخرى طرف ته راګرځى.

**قوله: :ثم أفرغ على جسده**: سابقه روايت كښې أفرغ په ځائى أفاض راغلې دې.

**قوله: :ثم تنحى من مقامه**: دَ موسى بن اسماعيل رحمه الله په روايت كښې ثم تحول من مكانه الفاظ ذكر دى.

**دَ لفظ مقام وضاحت**: دَ لفظ مقام ميم فتح سره مكان القيام يعنى دَ اودريدو اوحصاريدو ځائى ته وائى. كه چرې څوك دا اووائى چه دَدې نه خو دا مستفاد كيږى چه حضورپاك په ولاړه باندې غسل كړې وو. [2]

علامه كرمانى رحمه الله او شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمه الله فرمائى چه دَ لفظ مقام اصلى او حقيقى معنې په اعتبار سره په ولاړه باندې غسل كول معلوميږى ليكن دَدې نه دَ حضورپاك په ولاړه باندې په غسل كولو باندې استدلال صحيح نه دې ځكه چه په عرف كښې ددې استعمال مطلق مكان (ځائى) دپاره مشهور دې كه هغه دَ اودريدو ځائى وى اوكه دَ ناستې. [3]

**دَحديث ترجمة الباب سره مطابقت**: علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَ حديث ترجمة الباب سره مطابقت په ترجمه كښې موجود تفريق فى الغسل نه په داسې توګه دې چه په حديث كښې راغلى دى چه حضورپاك به په بدن مبارك باندې دَ اوبو بهيولونه پس دَ خپل ځائى نه اخوا شو (بيائى خپې مباركې اووينځلې نو دَدې نه تفريق ثابت شو). [4]

دَ شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله هم دغه رانې هغه فرمائى: «ثم تنحى من مقامه فغسل قدميه» دا عدم موالات فى الغسل شو خپې بهرراووېستې وينځلې نوموالات چرته باقى پاتې شو. [5]

حضرت ګنګوهى رحمه الله هم دَ حديث ترجمه سره مطابقت په سلسله كښې «ثم تنحى من مقامه» نه استدلال اوكړو او وئى فرمائيل چه دَ يوځيز مطلق تخلل دَ وجوب موالات منافى دې. كه چرې موالات واجب وې نوحضورپاك به دَ غسل دَ ځائى نه اخوا كيدلو نه وراندې خپې وينځلې بيابه ئې دَ خاورې وغيره لرې كولودپاره دوباره وينځلې يا به ئې په څه ځيز باندې مږلې او صفاكولې به ئې. [6]

**يواعتراض**: علامه عينى رحمه الله وغيره فرمائى چه كه چرې څوك دا اووائى چه حديث ميمونه رضي الله عنها كښې دَخپل ځائى نه اخواكيدل په تفريق فى الغسل باندې دلالت كوى نو په تفريق فى الوضوء باندې كوم يوځيز دلالت كوى؟

---

[1] إرشادالسارى: ٥٠٢/١شرح الكرمانى: ١٢٦/٣.

[2] شرح الكرمانى: ١٢٧/٣عمدة القارى: ٣١٤/٣.

[3] شرح الكرمانى: ١٢٧/٣تحفة البارى: ٢٢٦/١عمدة القارى: ٣١٤/٣.

[4] عمدة القارى: ٣١٣/٣.

[5] تقرير بخارى: ٨٥-٨٤/٢.

[6] لامع الدرارى: ٢٢٣/٢-٢٢٢الكنزالمتوارى مع اللامع: ٢٠٩/٣.

**د اعتراض جواب:** دَدې جواب دادې چه په حديث ميمونه رضي الله عنها كښې راغلى دى چه حضورپاك دَخپو نه علاوه دَ اودس نور اندامونه وراندې وينخلې وو دَ خپو وينخلونه اول دَغسل كافى وقفه پيښه شوه دَاودس اندامونه سره دَدې چه دَ غسل دَ وجې نه اوچ نه شو مگر تفريق ثابت شو او موالات باقى پاتې نه شو.پدې باندې په حديث كښې وارد لفظ ثم دلالت كوى په كوم سره چه مطلقاً تراخى معلوميږى. (١)

**ايا حديث وضو او غسل په دواړو كښې په تفريق باندې دلالت كوى؟:** بعض علماء وائى چه په ترجمه كښې خودَ اودس او غسل دواړو په مينځ كښې دَ فصل ذكر دې خوچه امام بخارى رحمه الله كوم حديث او اثر راوړلې دې په هغې سره خو صرف دومره ثابت دى چه په اودس كښې دَ موالات ضرورت نشته دې حالانكه دَامام بخارى رحمه الله مقصود په دواړو كښې عدم موالات ثابت كول دى. (٢)

**دَحضرت شاه ولى الله رحمه الله رائې:** حضرت شاه ولى الله رحمه الله اوفرمائيل چه كله دَ حديث باب سره تفريق فى الوضوء ثابت شو نوغسل به په اودس باندې قياس كولې شى ځكه چه په فى الجمله په دواړو كښې دَ اركان او آداب په اعتبار سره هيڅ فرق نشته دې. دغه شان دَ ائمه نه هيڅوك هم په دواړو كښې دَ فصل قائل نه دى يعنى څوك چه موالات واجب ګنړى هغوى په اودس اوغسل دواړو كښې دَدې قائل دى اوڅوك چه دَ عدم وجوب قائل دى هغوى هم په دواړو كښې دَعدم وجوب قول كوى. هم دغه وجه ده چه امام بخارى رحمه الله په ترجمه كښې اودس اوغسل دواړه يوځائى بيان كړى دى. حالانكه دَحديث نه خو صرف هم تفريق فى الوضوء ثابتيږى نولكه چه امام بخارى رحمه الله غسل په اودس باندې قياس كړې دې.(٣)

**دا استدلال مخدوش دې:** ليكن دَحضرت شاه صاحب رحمه الله دا استدلال په دوو وجوهاتو سره مخدوش دې. يو خو په دې وجه چه دَدې استدلال بنياد په قياس باندې دې او امام بخارى رحمه الله دَ قياس قائل دې. داخبره په خپله قابل غور او محل نظر دې. دويم په دې وجه سره چه قائلين فصل موجود دى. امام احمد رحمه الله او امام نخعى رحمه الله وغيره په اودس اوغسل كښې فرق كوى لكه چه دَ مذاهب په بيان كښې تيرشوى دى لهذا په دې وجه هم دا استدلال مخدوش دې.

**صحيح جواب:** دَدې صحيح جواب دادې لكه چه ځنګه علامه عينى رحمه الله لفظ ثم سره په تفريق فى الوضوء باندې استدلال كړې دې نولفظ ثم په حديث كښې اودس اوغسل دواړو كښې موجود دې. لهذا په دې سره به په دواړو كښې تفريق ثابت شى. دَدې خبرې طرف ته اشاره كولوسره مولانا محمدحسن مكى رحمه الله په خپل تقرير كښې فرمائيلى چه په حديث كښې مطلقاً ثم تنحى لفظ راغلې دې په دې كښې دا نه دى خودلې شوى چه حضورپاك خپې مباركې دَ جفاف نه وړاندې وينځلې دى كه روستو. لهذا دا ممكن دى چه دَ حضورپاك دا وينځل دَ جفاف نه پس وى په دې توګه چه حضورپاك دَخپو وينځل دَ غسل نه يوه يا دوه ګهنټې روسته كړې وى. غرض په دې تقريرسره ترجمه ثابتيږى. (٤)

**دَحديث او اثر نه مستنبط شوى امور:** ① په اودس كښې موالات واجب نه دى تفريق جائزدې ② په غسل كښې موالات واجب نه دى تفريق جائزدې. ③روايت بالمعنى جائزدې.

---

[1]) عمدة القارى: ٣١٣/٣فضل البارى: ٤٣٨/٢.

[2]) الكنزالمتوارى: ٢٠٩/٣-٢٠٨حاشية اللامع: ٢٢٢/٢فضل البارى: ٤٣٨/٢.

[3]) شرح تراجم الأبواب البخارى: ص:١٨الأبواب والتراجم ص: ٦١الكنزالمتوارى: ٢٠٩-٣/٢٠٨.

[4]) الكنزالمتوارى: ٢٠٩/٣حاشية اللامع: ٢٢٣/٢.

# ۱۱-باب: مَنْ أَفْرَغَ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ فِي الْغُسْلِ

## په غسل کښې په ښی لاس سره په ګس باندې اوبه بهیول

**ماقبل سره ربط اومناسبت:** دَ وړاندې باب لاندې دا اخبره راغلې وه چه زیر بحث باب په بعض نسخوکښې مقدم او بعض کښې مؤخردې. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَ ابن عساکر او اصیلی په روایت کښې دا باب دَ سابقه باب نه مقدم دې بهرحال په هرو دوو صورتونوکښې په دواړو کښې مناسبت ښکاره دې په دې توګه چه دَ دواړو تعلق اودس سره دې.(۱)

**دَترجمة الباب مقصد:** علامه زکریا انصاری رحمه الله اوفرمائیل چه دَ دې باب مقصد دَ نبی کریم ﷺ په غسل کښې دَ اوبو بهیولو کیفیت بیانول دی.(۲)

علامه ادریس کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه دا باب دَهغه سړی په بیان کښې دې چه څوك دَ غسل په وخت کښې په ښی لاس په ګس لاس باندې اوبه واچوی. چاچه داسې اوکړه هغه دَ سنت اتباع اوکړه.(۳)

**دَ حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې:** حضرت مولانا یحیی کاندهلوی رحمه الله دَحضرت ګنګوهی رحمه الله نه نقل کړی دی چه هغه فرمائی ((ردبذلك ما اشتهر أن الإفراغ باليمين على الشمال من صنيع النساء))(۴)

یعنی دَ امام بخاری رحمه الله په دې خبره سره رد کول دی په هغه خبره چه مشهوره شوې ده چه دَ ښی لاس په ګس باندې اوبه اچول دَښځو عادت دې.

**دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله رائې:** حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله فرمائی چه زما په نیز اوجه خبره داده چه امام بخاری رحمه الله ددې ترجمه په ذریعه په یوه دقیق نکته باندې متنبه کول غواړی اوهغه دا چه په غسل کښې دوه څیزونه وی یو اوبه اوچول او بل اندامونه مږل. بل داخبره هم معلومه ده چه افعال شریفه هم په ښی لاس سره پوره کولې شی. نواوس امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په دې کښې کوم افضل وی هغه به په ښی لاس سره کولې شی چونکه اوبه اچول دَ مږلو نه افضل دی په دې وجه دې په ښی لاس باندې اوبه واچولې شی او په ګس لاس دې اندامونه اومږلې شی.(۵)

**دَ حضرت شیخ الحدیث رحمه الله دویمه توجیه:** حضرت شیخ الحدیث رحمه الله دویمه توجیه بیانولوسره فرمائی چه دا بعید نه دی چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره ((ترجمه صب الماء باليمنى على اليسرى)) باندې تنبیه کړې وی ځکه بعض روایات په ابوداؤد وغیره کښې دَحضرت عائشه رضی الله عنها په روایت کښې ((يصب الإناء على يده اليمنى))(۶)

او دَ حضرت میمونه رضی الله عنها په روایت کښې ((فأكفأ الإناء على يده اليمنى))(۷) یعنی لوښې په ښی لاس باندې راتیتول ذکرشوی دی

---

(۱) الأبواب والتراجم ص: ۲۶۳.

(۲) تحفة الباری: ۱/۲۲۶.

(۳) الأبواب والتراجم ص: ۲۶۳.

(۴) لامع الدراری: ۲/۲۲۱-۲۲۰الأبواب والتراجم لصحيح البخاری ص: ۶۱.

(۵) الأبواب والتراجم ص:۶۱الكنز المتواری: ۳/۲۰۹تعليقات اللامع: ۲/۲۲۰.

(۶) الحديث أخرجه أبوداؤد فی سننه، كتاب الطهارة باب مقدار الماء الذی يجزئ به الغسل رقم الحديث: ۲۴۲.

(۷) سنن أبی داؤد كتاب الطهارة باب مقدار الماء الذی يجزئ به الغسل رقم: ۲۵۴.

**دعلامه عثمانی رحمه الله رائې:** دَ ترجمة الباب دَ مقصد باره کښې علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه په دې باب کښې دَ ښې لاس دَ شرافت رعایت خودلې شوې دې. اوبه اچول او نجاست ختمول دوه جدا جدا کارونه دی. دَ نجاست ختمول یو معمولی کار دې کوم چه گس لاس سره متعلق دې او اوبه په ښې لاس باندې اچولې شی. په استنجاء وغیره کښې دَ ښی لاس استعمال ددې دَ شرافت خلاف خبره ده.([1])

**دَ بعض حضراتو رائې:** بعض حضراتو لیکلی دی چه په دې موقع باندې دَ تیامن والا خبره مېنځ ته راوړل په خائی اومحل نه دی اوکومو حضراتو چه دَ استنجاء او دَ ضرورت دَ صورت نه په اخوا دلته غلط او گډوډ بحثونه کړی دی هغه ټول دَ بحث دَ موضوع نه لرې شوی دی. اصل خبره داده چه دَ تیامن والا خبره دَ ترجمة الباب یا حدیث الباب سره هیڅ تعلق نه لری او پخپله امام بخاری رحمه الله هم پخپله مستقل «باب التیمن فی الوضوء والغسل» راوړلې دې اوددې نه وړاندې «باب النهی عن الاستنجاء بالیمین» او «باب لا یمسك ذکره بیمینه إذا بال» هم قائم کړی دی. په کوم سره چه دَ استنجاء په وخت افراغ بالیمین علی الشمال والا خبره ضمناً متعین شوې وه.اوس چونکه احوال اوصفات دَ غسل نبوی لاندې هم ددې زیاتی صراحت او وضاحت راځی نو دا مستقل باب قائم کولوسره ښائی او همیشه گس لاس سره ښې لاس اول وینځلې شی اودغه شان دَ شرافت والا کارونه دَ ښی طرف نه شروع کول او هر خسیس کار دَ گس طرف نه کول ټولې خبرې خو دَ اول نه فیصله شوی دی دَ کوم وجه چه داده شریعت یمین له په یسار یعنی ښی له په گس باندې مطلقاً شرف او عزت ورکړې دې او هم په دې وجه نې ټول کارونه دَ خیر اونیکئی مقدم کړل او په دنیاوی اوخسیس امورو کښې یسار یعنی گس مقدم ساتلې دې.([2])بهرحال دَ امام بخاری رحمه الله په تراجم کښې دَ دقیق رسی په وجه دَ شارحین بیان کړی توجیهات دَ امکان نه لرې نه دی البته دَحدیثی ذوق په وجه یوه ترجیح اوجه گرځولې کیدې شی لکه چه شیخ الحدیث رحمه الله په والأوجه سره هم دا صنیع اختیار کړې دی.

## الحدیث الأول

۲۶۶- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الحَارِثِ، قَالَتْ: «وَضَعْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا وَسَتَرْتُهُ، فَصَبَّ عَلَى يَدِهِ، فَغَسَلَهَا مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ» - قَالَ: سُلَيْمَانُ لاَ أَدْرِي، أَذَكَرَ الثَّالِثَةَ أَمْ لاَ؟ - ثُمَّ أَفْرَغَ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ، فَغَسَلَ فَرْجَهُ، ثُمَّ دَلَكَ يَدَهُ بِالأَرْضِ أَوْ بِالحَائِطِ، ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ، وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، وَغَسَلَ رَأْسَهُ، ثُمَّ صَبَّ عَلَى جَسَدِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ، فَنَاوَلْتُهُ خِرْقَةً، فَقَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا، وَلَمْ يُرِدْهَا" احدیث باب ([3])

---

[1]) فضل الباری: ۴۳۹/۲.

[2]) أنوار الباری: ۲۲۵/۹.

[3]) الحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی نفس الکتاب باب الوضوء قبل الغسل رقم الحدیث: ۲۴۹وفی باب الغسل مرة رقم الحدیث: ۲۵۷ وفی باب الغسل بالصاع ونحوه رقم الحدیث: ۲۵۳ وفی باب مسح الید بالتراب لتکون أنقی

**ترجمه**: (ام المؤمنين) حضرت ميمونه بنت الحارث رضي الله عنها فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ دپاره دغسل اوبه كيخودې او (په يوه كپړه سره) د حضورپاك دپاره پرده اوكړه (يا دغه د اوبو لوښي ئې پټ كړو) حضورپاك (اول) په خپل لاس باندې اوبه واچولې اوهغه ئې يو يا دوه ځل اووينځلو. سليمان اعمش اوونيل چه زه نه پوهيږم (يعنى ماته ياد نه دى) چه سالم بن ابى الجعد د لاس دريم ځل وينځل بيان كړل كه نه، بيا حضورپاك په خپل ښى لاس سره په ګس لاس باندې اوبه اوبهيولې او خپل شرمګاه ئې اووينځلو بيا خپل لاس مبارك په ديوال يا په زمكه باندې راښكلو بيائى خله كښې اوبه واچولې او په پوزه كښې اوبه واچولې اوبيائى خپل مخ او لاسونه اووينځل او خپل سر ئې اووينځلو. بيائى په خپل (ټول) بدن باندې اوبه اوبهيولې، بيا يوطرف ته شو او خپلې دواړه خپې ئې اووينځلې، نو ما حضورپاك ته د (اوچولو) دپاره يوه كپړه وركړه نو حضورپاك په لاس سره اشاره اوكړه (اخواكړه زه نه اخلم) او هغه ئې وانخستله.

## تراجم رجال

**حدثنا موسى بن اسماعيل**: دا ابوموسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دې.[1] دَدوى مختصر حالات بدء الوحى باب كيف كان بدء الوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ څلورم حديث لاندې [2] او تفصيلى حالات كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس دَ رومبى حديث لاندې تيرشوى دى.[3]

**قال: حدثنا أبوعوانة**: دا وضاح بن عبدالله يشكرى، واسطى رحمه الله دې ابوعوانه دَدوى كنيت دې (دَ نوم په نسبت په خپل كنيت باندې زيات مشهوردې).[4]

---

رقم الحديث: ٢٦٠ وفى باب تفريق الوضوء والغسل بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٢٦٥ وفى باب من توضأ فى الجنابة ثم غسل سائر جسده ولم يعد مواضع الوضوء منه مرة أخرى رقم الحديث: ٢٧٤ وفى باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة رقم الحديث: ٢٧٦ وفى باب التستر فى الغسل عندالناس بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٢٨١ وأخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الحيض باب صفة غسل الجنابة رقم الحديث: ٧٢٢ وأبوداؤد فى سننه فى كتاب الطهارة باب فى الغسل من الجنابة رقم الحديث: ٢٤٥ والترمذى فى سننه فى كتاب الطهارة باب ماجاء فى الغسل من الجنابة بنحوه مختصراً وقال هذا حديث حسن صحيح رقم الحديث: ١٠٣ والنسائى فى سننه فى كتاب الطهارة باب غسل الرجلين فى غير المكان الذى يغتسل فيه رقم الحديث: ٢٥٢ وأيضاً فى كتاب الغسل والتيمم باب إزالة الجنب الأذىٰ عنه قبل إفاضة الماء عليه بنحوه مختصراً رقم الحديث: ٤١٨ وأيضاً فى باب مسح اليد الأرض بعد غسل الفرج رقم الحديث: ٤١٩ وأيضاً فى باب الاستتار عندالغسل رقم الحديث: ٤٠٨ وأخرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب الطهارة باب المنديل بعدالوضوء رقم الحديث ٤٦٧ راجع جامع الأصول رقم: ٥٣٢١ وتحفة الأشراف رقم: ١٨٠٦٤.

[1] تهذيب الكمال: ٢٩/٢٦-٢١ تقريب التهذيب: ٢/٢٨٣.

[2] كشف البارى: ١/٤٣٤-٤٣٣.

[3] كشف البارى: ٣/٤٧٩-٤٧٧.

[4] دَتفصيل دپاره اوګورئى :تهذيب الكمال: ٣٠/٤٤١ رقم الترجمة: ٦٦٨٨ طبقات ابن سعد: ٧/٢٨٧ الجرح والتعديل: ٩/٥١ رقم الترجمة: ١٧٣ كتاب الثقات: ٧/٥٦٢ سيرأعلام النبلاء: ٨/٢١٧ رقم الترجمة: ٣٩ تذكرة الحفاظ: ١/٢٣٦ رقم الترجمة: ٢٢٣ ميزان الاعتدال: ٤/٣٣٤ رقم الترجمة: ٩٣٥٠ المغنى فى الضعفاء: ٢/٤٩٣ رقم الترجمة:

دَ دوى مختصر حالات باب كيف كان بدء الوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم په ذيل كښې تيرشوى دى. [1]دلته دَهغوى مفصل تذكره وړاندې كيږى.

**پيدائش:** دَهغوى پيدائش لس كم سل يا سلمه هجرى په مينځ كښې خودلې شوې دې. [2] ابن حبان رحمه الله ۱۲۲هجرى دَ پيدائش كال خودلې دې. [3] په ظاهره دا قول صحيح نه دې ځكه چه دَ صحيح رواياتو نه ثابته ده چه ابوعوانه ابن سيرين رحمه الله ليدلې دې خودَ ابن سيرين رحمه الله دَ ۱۲۲هجرى نه كافى موده وړاندې انتقال شوې وو. [4] بعض حضراتو ونيلى دى چه هغوى دَ جرجان نه قيدى جوړكړې شوې راوستلې شوې وو. [5] هغوى دَ يزيد بن عطاء بن يزيد دَ موالى نه وو. [6]بعض حضرات وانى چه دَ يزيد دَ پلار عطاء بن يزيد غلام وو. [7] په دواړو اقوالوكښې تطبيق داسې دې چه عطاء بن يزيد دَ خپل خوئى يزيد دَپاره هغه اخستې وو. [8] ابوعوانه رحمه الله دَحسن بصرى رحمه الله او محمد بن سيرين رحمه الله زيارت كړې اوهغوى ليدلې وو. [9]

**شيوخ حديث:** دَهغوى رحمه الله په شيوخ حديث كښې ابراهيم بن محمدبن منتشر، ابراهيم ابن مهاجر بَجلى، ابراهيم بن ميسره طائفى، اسماعيل بن عبدالرحمن سدى، اسود بن قيس، اشعث بن ابى الشعثاء، ايوب سختيانى، بكير بن اخنس، جابر بن يزيد جعفى، ابوعثمان بصرى، ابوبشر جعفر بن ابى وحشيه، حر بن مسكين، حصين بن عبدالرحمن، حكم بن عتيبه، خالد بن علقمه، داؤد بن عبدالله اودى، زياد بن علاقه، زيد بن جبير، سعيد بن مسروق ثورى، سليمان اعمش، سماك بن حرب، سهيل بن ابى صالح، عاصم بن سليمان الاحول، عاصم بن كليب، عبدالرحمن ابن الاصبهانى، عبدالعزيز بن صهيب، عبدالملك بن عمير، عثمان بن عبدالله بن موهب، عثمان بن مغيره ثقفى، عمر بن سلمه بن عبدالرحمن بن عوف، عمرو بن دينار، فراس بن يحيى همدانى، قتاده بن دعامه، محمدبن منكدر، مخول بن راشد، معاويه بن قره مزنى، مغيره بن مقسم ضَبى، منصور ابن زاذان، منصور بن معمر، موسى بن ابى عائشه، هلال الوزّان، يزيد بن ابى زياد، يعلى بن عطاء عامرى، ابواسحاق شيبانى، ابوجعفر رازى، ابوحصين اسدى، ابو حمزه القصاب، ابوزبيرمكى، ابومالك اشجعى او ابويعفور عبدى رحمهم الله شامل دى. [10]

---

٦٨٣٩التاريخ الكبير: ١٨١/٨رقم الترجمة: ٢٦٢٨تاريخ بغداد: ٤٦٤/١٣رقم الترجمة: ٧٣٣٠تاريخ الإسلام: ٦٥١/٤رقم الترجمة: ٤٤٠٢الكاشف: ٢٢٤/٣رقم الترجمة: ٦١٣٠تقريب التهذيب: ٢٨٢/٢رقم الحديث: ٧٤٣٤.

[1] كشف البارى: ٤٣٤/١.

[2] تهذيب التهذيب: ١١٨/١١.

[3] الثقات: ٥٦٢/٧.

[4] سيرأعلام النبلاء: ٢١٧/٨.

[5] تاريخ بغداد: ٤٦٤/١٣تاريخ الإسلام: ٦٥١/٤تهذيب الكمال: ٤٤٢/٣٠.

[6] التاريخ الكبير: ١٨١/٨طبقات ابن سعد:٢٨٧/٧ الجرح والتعديل: ٥١/٩.

[7] تهذيب الكمال: ٤٤٢/٣٠.

[8] تاريخ بغداد: ٤٦٥/٣.

[9] التاريخ الكبير: ١٨١/٨تاريخ بغداد: ٤٦٤/١٣تاريخ الإسلام: ٦٥١/٤.

[10] تهذيب الكمال: ٤٤٤/٣٠-٤٤٢تهذيب التهذيب: ١١٧/١١-١١٦تاريخ بغداد: ٤٦٥/١٣.

**تلامذه:** دهغوی رحمه الله نه دَ حديث مبارك روايت كونكوكښي ابراهيم بن حجاج نيلي، احمد بن اسحاق حضرمي، اسماعيل بن عُليه، بشر بن معاذ عقدي، حامد بن عمر بكراوي، حبان بن هلال، حجاج ابن منهال، سعيد بن منصور، سهيل بن بكار، شعبه بن حجاج (ومات قبله) شيبان بن فروخ، صالح بن عبدالله ترمذي، ابوهمام صلت بن محمد خاركي، عبدالرحمن بن عمرو بجلي، عبدالرحن بن مبارك عيشي، عبدالرحمن بن مهدي، عبيدالله بن عمر قواريري، عفان بن مسلم، علي بن حكم مروزي، عمرو بن عون واسطي، ابو نعيم فضل بن دكين، فضل بن مساور، قتيبه بن سعيد بلخي، محمدبن ابي بكر مقدمي، محمد بن عبدالمطلب بن ابي الشوارب، محمدبن فضل بن عارم، محمد بن محبوب بُناني، مسدد بن مسرهد، معقل بن مالك باهلي، ابوسلمه موسى بن اسماعيل، هيثم بن سهل تسري (وهو آخر من روى عنه) وكيع بن جراح، يحيى بن حماد شيباني، ابوداؤد طيالسي، ابوربيع زهراني، ابوكامل جحدري، ابوهشام مخزومي او ابوالوليد طيالسي رحمهم الله وغيره شامل دي. (1)

**دَ ائمه جرح والتعديل اقوال:** هشام بن عبيدالله دَ عبدالله بن مبارك نه تپوس اوكړو ((**من أروي الناس وأحسن الناس رواية عن المغيرة، أجرير؟**)) يعنى آيا جرير دَمغيره نه زيات او احسن روايت كونكونه دي؟ نوهغوى اوفرمائيل چه ابوعوانه. (2)

احمدبن سنان وائي چه ما عبدالرحمن بن مهدي داسې فرمائيلوسره اوريدلې دي. ((**كتاب أبي عوانة أثبت من حفظ هشيم**)) (3)

دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله نه تپوس اوكړې شو چه ابوعوانه أثبت دي كه شريك؟ نوهغه اوفرمائيل چه كه ابوعوانه رحمه الله دَخپل كتاب نه حديث بيان كړي نوهغه أثبت دي البته كه هغه دَ كتاب نه علاوه څه حديث بيان كړي نوبعض وخت هغه ته وهم كيږي. (4) مسدد وائي چه ما دَ يحيى بن سعيد القطان نه دافرمائيلو سره اوريدلي دي چه دَ ابوعوانه حديث دَ سفيان او شعبه دَ روايت سره ډير زيات مشابه دي. (5) عفان فرمائي چه دَ ابوعوانه رحمه الله دَ كتاب والا روايت صحيح دي. (په هغه باندې عجميت غالب وو) هغه به دَ اعراب او نقطو په كثرت سره اهتمام كولو. نور فرمائي ((**كان ثبت وأبوعوانة أصح حديثاً عندنا من هشيم**)) (6) يحيى بن معين رحمه الله فرمائي ((**حديث أبي عوانة جائز، ...... ثبت أبوعوانة**)) (7) يحيى بن معين رحمه الله نور فرمائي: ((**أبوعوانة قريب من حماد..... كتبه صحيحة ......وهو صدوق، ثقة، وهوأحب إلي من أبي الأحوص ومن جريربن عبد الحميد، وهو(أي أبوعوانة) أحفظ من حماد**)) (8)

---

(1) تهذيب الكمال: ۴۴۴/۳۰ تهذيب التهذيب: ۱۱۷/۱۱ تاريخ بغداد: ۴۶۵/۱۳.

(2) الجرح والتعديل: ۵۲/۹ تاريخ بغداد: ۴۶۸/۱۳ تهذيب الكمال: ۴۴۵/۳۰.

(3) تهذيب الكمال: ۴۴۶/۳۰ الجرح والتعديل: ۵۲/۹ تاريخ الإسلام: ۶۵۱/۴.

(4) تهذيب الكمال: ۴۴۶/۳۰ تاريخ بغداد: ۴۶۸/۱۳ تاريخ الإسلام: ۶۵۱/۴ الجرح والتعديل: ۵۲/۹.

(5) الجرح والتعديل: ۵۲/۹ تاريخ بغداد: ۴۶۶/۱۳ تاريخ الإسلام: ۶۵۱/۴ تهذيب الكمال: ۴۴۶/۳۰.

(6) الجرح والتعديل: ۵۲/۹ تاريخ بغداد: ۴۶۸/۱۳ تاريخ الإسلام: ۴/۶۵۱ بعض حضراتوة هشيم په ځائي شعبه نقل كړي دي هم هشيم صحيح دي. تهذيب الكمال وحاشية: ۴۴۶/۳ حاشيته تهذيب التهذيب: ۱۱۷/۱۱.

(7) تهذيب الكمال: ۴۴۷/۳۰ الجرح والتعديل: ۹/۵۳-۵۲ تاريخ بغداد: ۴۶۹/۱۳.

(8) الجرح والتعديل: ۵۳/۹ تهذيب الكمال: ۴۴۷/۳۰ تهذيب التهذيب: ۱۱۸/۱۱.

ابوزرعه رحمه الله فرمائي «بصري ثقة إذا حدث من كتابه»[1] امام احمد رحمه الله او يحيى بن معين رحمه الله فرمائي «كان أميناً ثقة»[2] عباس بن محمد دوري وائي چه يحيى بن معين رحمه الله اوفرمائيل چه ابوعوانه امي وو «ليكلې نه پيژندل» په بل چا باندې به ئې ليكل كول او «دَهغه ليكلې شوى» كتاب نه به ئې لوستل كول.[3]

احمدبن بشر بن ايوب طيالسي وائي چه چادَ يحيى بن معين رحمه الله نه دَ زائده او ابوعوانه باره كښې پوښتنه اوكړه چه په دوى كښې كوم يو أثبت دې؟ نوهغوى اوفرمائيل: «كلاهما ثبت، صدوقين» سائل دوباره سوال اوكړو نوهغوى هم هغه جواب وركړو. راوى وائي چه بيا ما اوكتل چه لكه يحيى بن معين رحمه الله دَ ابوعوانه طرف ته مائل شوې وو.[4] يحيى بن معين رحمه الله اوفرمائيل چه كله په ابوعوانه اوشريك كښې اختلاف پيداشي نودَ ابوعوانه قول معتبردې.[5]

حجاج بن محمد رحمه الله وائي چه امام شعبه رحمه الله ماته اوفرمائيل «الزم أباعوانة»[6] يعني ته ابوعوانه لازم اونيسه. ابوسهل رحمه الله وائي چه ما امام شعبه رحمه الله داسې فرمائيلو سره واؤريده چه كله ابوعوانه تاسو ته دَ ابوهريره رضي الله عنه روايت بيان كړى نودَهغې تصديق كوئ.[7] احمدبن زهير رحمه الله وائي چه ما يحيى بن معين رحمه الله فرمائيلو سره واؤريدو «أبوعوانة الوضاح ثقة»[8] جعفر ابن ابى عثمان رحمه الله وائي ما دَ يحيى بن معين رحمه الله نه داسې واؤريده چه فرمائيلې «كان أبوعوانة ثقة»[9]

محمدبن احمدبن يعقوب بن شيبه رحمه الله وائي چه زما نيكه «يعقوب بن شيبه» فرمائي: «أبوعوانة ثبت، صحيح الكتاب وحفظه صالح»[10] عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائي: «أبوعوانة صدوق في الحديث»[11] ابوحاتم رحمه الله فرمائي «ثقة وكتبه صحيحة» البته كه دَخپل حفظ په بنياد باندې روايت بيان كړى نوغلطى كوى او ابوعوانه دَ حماد بن سلمه نه احفظ دې.[12] امام عجلي رحمه الله فرمائي «أبوعوانة بصري، ثقة»[13]

---

[1]) تهذيب الكمال: ٤٤٧/٣ تهذيب التهذيب: ١١٨/١١ الجرح والتعديل: ٥٣/٩.

[2]) تهذيب الكمال: ٤٤٨/٣٠ تهذيب التهذيب: ١١٨/١١.

[3]) الجرح والتعديل: ٥٣/٩ تاريخ بغداد: ٤٦٦/١٣ سير أعلام النبلاء: ٢٢٠/٨ تذكرة الحفاظ: ٢٣٧/١.

[4]) تاريخ بغداد: ٤٦٧/١٣.

[5]) تاريخ بغداد: ٤٦٧/١٣.

[6]) تاريخ بغداد: ٤٤٨/١٣ سير أعلام النبلاء: ٢٢٠/٨ تذكرة الحفاظ: ٢٣٧/١.

[7]) تاريخ الإسلام: ٦٥١/٤ تاريخ بغداد: ٤٦٦/١٣ تهذيب التهذيب: ١١٩/١١.

[8]) تاريخ بغداد: ٤٦٨/١٣.

[9]) تاريخ بغداد: ٤٦٩/١٣.

[10]) تاريخ بغداد: ٤٦٩/١٣ تهذيب التهذيب: ١١٩/١١.

[11]) تاريخ بغداد: ٤٦٩/١٣ تهذيب التهذيب: ١٢٠-١١٩/١١.

[12]) تاريخ الإسلام: ٦٥١/٤ تهذيب التهذيب: ١١٨/١١.

[13]) تاريخ بغداد: ٤٦٩/١٣ تهذيب التهذيب: ١١٩/١١.

ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي: «أجمعوا على أنه ثقة حجة لما حدث من كتابه وقال إذا حدث من حفظه ربما غلط»[1]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ثقة ثبت.[2] علامه ذهبي رحمه الله ميزان الاعتدال كښې فرمائي: «مجمع على ثقته وكتابه متقن بالمرة»[3] علامه ذهبي رحمه الله په الكاشف كښې فرمائي «ثقة متقن لكتابه»[4]
علامه ذهبي رحمه الله المغني في الصنعفاء كښې فرمائيلي دي: «ثقة حجة ولا سيما إذا حدث من كتابه»[5] علامه ذهبي رحمه الله سير أعلام النبلاء كښې فرمائي: «هو الإمام الحافظ الثبت محدث البصرة»[6] ابن سعد رحمه الله فرمائي «كان ثقة صدوقاً»[7] ابن حبان رحمه الله په كتاب الثقات كښې دَهغوی تذکره کړې ده.[8]
علامه ذهبي رحمه الله تذكرة الحفاظ كښې فرمائي «الحافظ أحد الثقات»[9]
علامه ذهبي رحمه الله دَ ډيرو ائمه جرح والتعديل اقوال نقل كولونه پس دَ ابوعوانه رحمه الله باره كښې دا فيصله كړې ده چه: «استقر الحال على أن أباعوانة ثقة» نورئی اوفرمائيل چه ابوعوانه دَحماد بن زيد په شان متقن دې. بلكه دَ محدثينو په نيز ابوعوانه دَ اسرائيل او حماد بن سلمه نه زيات خوښ كړې شوې دې اودَ فليح ابن سليمان نه اوثق دې. اودَ ابوعوانه رحمه الله بعض وهمونه هم دی دَ كوم دَ تخريج نه چه شيخين (امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله) ډډه كړې ده.[10]
**تنبيه**: ابن عدی رحمه الله الكامل في الضعفاء كښې دَ سلام بن ابی مطيع رحمه الله په حالاتوكښې ليكلی دی چه دَ سفيان ثوری رحمه الله په مجلس كښې دَ ابوعوانه رحمه الله تذكره اوشوه نوهغوی دَ ابوعوانه رحمه الله باره كښې دَ ذاك العبد الفاظ اووئيل.[11]
عبدالله بن احمد دَخپل پلار امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل كړی دی چه هغوی اوفرمائيل ابوعوانه رحمه الله يو كتاب جوړ كړې وو په كوم كښې چه دَ رسول الله ﷺ دَ صحابه كرامو (مزعومه) عيبونه درج كړې وو. سلام بن ابی مطيع دَهغه نه دغه كتاب اخستلو سره سوزولې وو.[12]
بعض حضراتو دَ سفيان ثوری رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله اقوال نقل كولونه پس ليكلی دی چه كيدې شی هم په دې وجه سفيان ثوری رحمه الله ابوعوانه نه خوښولو. او حيرانتيا په دې خبره باندې ده چه

---

[1]) تهذيب التهذيب: ١٢٠/١١.
[2]) تقريب التهذيب: ٢٨٣/٢.
[3]) ٣٣٤/٤.
[4]) ٢٢٤/٣ رقم الترجمة: ٦١٣٠.
[5]) ٤٩٣/٢.
[6]) ٢١٧/٨.
[7]) الطبقات الكبرى: ٢٨٧/٧.
[8]) ٥٦٢/٧.
[9]) ٢٣٦/١.
[10]) سير أعلام النبلاء: ٢٢١/٨.
[11]) الكامل فی ضعفاء الرجال: ٣٠٦/٣.
[12]) كتاب العلل ومعرفة الرجال: ٣٥٤/١.

علامه مزي رحمه الله علامه ذهبي رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله وغیره دَهغه دَ عقیدې متعلق هیڅ بحث نه دې کړې. [۱]

**دَ سفیان ثوري رحمه الله او امام احمد رحمه الله وغیره دَ کلام حقیقت:** دلته دا خبره یاد ساتئي چه دَ سفیان ثوري رحمه الله ابوعوانه رحمه الله ته ذاك العبد ونیل دَ کلمات جرح نه نه دی اوکه چرې دا دَ جرح کلمه اومنلې هم شي نودا جرح مبهم ده. دَ کبار ائمه دَ توثیق په مقابله کښې دَدې هیڅ حیثیت نشته دې. باقي پاتې شوه خبره دَ امام احمد رحمه الله دا وینا وضع کتابا یعني ابوعوانه رحمه الله یوکتاب وضع کړې وو. په دې باره کښې رومبې خبره داده چه که چرې وضع نه مراد پخپله لیکل وی نودا دَحقیقت خلاف خبره ده ځکه چه ابوعوانه رحمه الله امې وو لیکلی ئې نه شو کولې. (کمامر) اوکه دَدې نه مراد دَ بل چا لیکلې شوې کتاب وی نوصرف دَدې نوعیت دَ کتاب چا سره کیدل دَهغه عقیدې پورې مستلزم نه دې. بعض حضراتو ونیلی (که چرې دَ دغه کتاب نسبت ابوعوانه رحمه الله طرف صحیح هم اومنلې شي نوبیاهم) دَدې نه مراد مشاجرات صحابه دی (نه چه مطلقاً عیوب). [۲]

بهرحال امام ابوعوانه رحمه الله ثقه راوی دې دَهغوی په ثقاهت باندې کبار ائمه جرح وتعدیل اتفاق دې. پخپله هم دَ امام احمد رحمه الله نه دَ هغوی توثیق نقل دې. دَ دوی باره کښې هم هغه خبره فیصله کونکې ده کومه چه په تیرو کرښو کښې دَ علامه ذهبي رحمه الله نه نقل ده. والله اعلم بالصواب.

**وفات:** دَ ابوعوانه رحمه الله دَ وفات دَ کال باره کښې ائمه جرح وتعدیل اومؤرخینونه دوه اقوال نقل دي:

① محمدبن عیسی، یعقوب بن سفیان، محمدبن محبوب، یحیی بن حماد، احمدبن حنبل، عبدالله بن ابوالاسود او علامه ذهبي رحمهم الله فرمائی چه دَ ابوعوانه رحمه الله په کال ۱۷۶هجری کښې انتقال شوې. [۳] امام بخاري رحمه الله دَ محمد بن محبوب نه دَ وفات ورځ اتوار میاشت ربیع الآخر نقل کړې دې. [۴] خو علامه مزي رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله، محمدبن محبوب رحمه الله نه ربیع الاول میاشت نقل کړې ده. [۵] ابن حبان رحمه الله هم دَ اتوار ورځ او ربیع الاول میاشت ذکر کړې ده. [۶] هم دغه دَعلامه ذهبي رحمه الله هم قول دې. [۷]

ابن حبان رحمه الله، محمد بن محبوب رحمه الله، یحیی بن حماد رحمه الله او علامه ذهبي رحمه الله فرمائی ابوعوانه په بصره کښې وفات شوې. [۸] خو ابن سعد رحمه الله دَ یحیی بن حماد نه نه نقل کړې دی ابوعوانه دَ هارون الرشید په زمانه کښې چه کوم وخت دَ بصره ګورنر جعفر بن سلیمان وو نو ۱۷۶هجری کښې وفات شوې. [۹]

---

[۱] الکاشف مع تعلیقات الشیخ محمد عوامه: ۳۴۹/۲رقم: ۶۰۴۹.

[۲] تعلیقات کتاب العلل ومعرفة الرجال: ۳۵۴/۱.

[۳] تاریخ بغداد: ۴۷۰/۱۳-۴۶۹التاریخ الکبیر: ۱۸۱/۸طبقات ابن سعد: ۲۸۸/۷تهذیب التهذیب: ۱۱۸/۱۱تهذیب الکمال: ۴۴۸/۳۰تاریخ الإسلام: ۶۵۱/۴الکاشف: ۲۲۴/۳سیرأعلام النبلاء: ۲۲۱/۸تذکرة الحفاظ: ۲۳۷/۱.

[۴] التاریخ الکبیر: ۱۸۱/۸.

[۵] تهذیب الکمال: ۴۴۸/۳۰ تهذیب التهذیب: ۱۱۸/۱۱.

[۶] کتاب الثقات: ۵۶۳/۷.

[۷] تاریخ الأسلام: ۶۵۱/۴سیرأعلام النبلاء: ۲۲۱/۸تذکرة الحفاظ: ۲۳۷/۱.

[۸] کتاب الثقات: ۵۶۳/۷التاریخ الکبیر: ۱۸۱/۸تاریخ الإسلام: ۶۵۱/۴سیرأعلام النبلاء: ۲۲۱/۸تذکرة الحفاظ: ۲۳۷/۱.

[۹] الطبقات الکبری: ۲۸۸/۷.

④ احمدبن اسحاق بندار، ابوغالب علی بن محمد اوعلی بن مدینی رحمهم الله وغیره فرمائی چه ابوعوانه رحمه الله ۱۷۵هجری کښې وفات شوې دې.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله تقریب التهذیب کښې لفظ "أو" سره ۱۷۵هجری ۱۷۶هجری دواړه نقل کړی دی.[2] چونکه اکثر ائمه جرح وتعدیل او مؤرخینو ۱۷۶هجری نقل کړې دې په دې وجه هم دغه راجح معلومیږی. والله اعلم بالصواب.

**قوله:: حدثنا الأعمش:** دادَ امام اعمش په لقب سره مشهور ابومحمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دې.[3] دَدوی احوال کتاب العلم باب ظلم دون ظلم په ذیل کښې بیان کړې شوی دی.[4]

**قوله:: عن سالم بن أبي الجعد:** دا سالم بن ابی الجعد رافع اشجعی کوفی رحمه الله دې.[5] دَ دوی حالات صحیح البخاري کتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع لاندې اوګورئی.

**قوله:: عن کریب مولى ابن عباس:** دادَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما غلام ابو رشد ین کریب بن ابی مسلم قرشی هاشمی حجازی رحمه الله دې.[6] دَ دوی دَ ژوند حالات صحیح البخاري کتاب الوضوء باب التخفيف في الوضوء کښې اوګورئی.

**قوله:: عن ابن عباس رضی الله عنهما:** دا دَ حضورپاک دَ تره خوئی عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف رضی الله عنهما دې.[7] دَدوی حالات «کتاب بدء الوحی، باب کیف کان بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم» په څلورم حدیث کښې [8] او« کتاب الإیمان باب کفران العشیر، وکفر بعد کفر» دَ رومبی حدیث لاندې تیرشوی دی.[9]

**قوله:: عن میمونة بنت الحارث رضی الله عنها:** دَ دوی رضی الله عنها احوال کتاب العلم باب السمر في العلم لاندې تیرشوی دی.[10]

## شرح حدیث:

**قوله:: وضعت لرسول الله صلی الله علیه وسلم غسلاً:** حضرت میمونه رضی الله عنها فرمائی چه ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره دَ غسل اوبه کیخودې.

---

[1]) تاریخ بغداد: ۴۷۰/۱۳ تهذیب التهذیب: ۱۱۸/۱۱.

[2]) ۲۸۳/۲.

[3]) تهذیب الکمال: ۱۲/۹۲-۷۶.

[4]) کشف الباری: ۲/۲۵۳-۲۵۱.

[5]) تهذیب الکمال: ۱۰/۱۳۳-۱۳۰.

[6]) تهذیب الکمال: ۲۴/۱۷۴-۱۷۲.

[7]) سیرأعلام النبلاء: ۳/۳۵۹-۳۳۱.

[8]) کشف الباری: ۱/۴۳۷-۴۳۵.

[9]) کشف الباری: ۲/۲۰۶-۲۰۵.

[10]) کشف الباری: ۴/۴۲۲-۴۲۰.

**دَلفظ غسلاً وضاحت:** كه لفظ غسل چرته دَغين په ضمه سره وى نودَ غسل اوبوته وئيلى شى اوكه چرې دَ غين فتحه سره وى نومصدر به وى غسل كولوته وائى. اوكه چرې دَغين كسره سره وى نومراد هغه جررې بوټى (صابون اشنان او بيره وغيره) دى كوم چه په اوبوكښې واچولې شى يا په بدن باندې اومږلې شى غسل اوكړى.[١]

**سترته:** حافظ ابن حجر رحمه الله دَ "وسترته" واؤ حاليه گرځولې دې.[٢] علامه عينى رحمه الله په حافظ صاحب باندې رد كولوسره ليكى چه واؤ حاليه گرځول صحيح نه دى دلته واؤ حاليه نه دې بلكه عاطفه دې اودَدې عطف په وضعت باندې دې.[٣]

**دَ بثوب اضافه:** ابن فضيل دَاعمش نه دَ بثوب زياتوالې او اضافه نقل كړې ده يعنى **سترته بثوب**.[٤] پخپله امام بخارى رحمه الله ((**باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة**)) كښې عبدان نه په واسطه دَ ابوحمزه عن الاعمش حضرت ميمونه رضي الله عنها نه ((**سترته بثوب**)) صراحت نقل كړې دې.[٥]

**دَ سترته ضمير مرجع:** دَ **سترته** ضمير مفعول كښې دوه احتماله دى:

**ړومبې احتمال:** يودا چه ضمير مفعول غسلاً طرف ته راجع وى لكه چه ظاهر دى اوشراح حديث هم دا احتمال اخستوسره دَ حديث شرح كړې ده. يعنى حضرت ميمونه رضي الله عنها فرمائي چه ما دَ نبى كريم ﷺ دَپاره دَ غسل اوبه كيخودې او دَ دغه اوبو (لوښى) په يوه كپړه پټ كړو (دې دَپاره چه دَ دوړو اوخاورې وغيره نه محفوظ پاتې شى) بيا چه كله حضورپاك دَغسل اراده اوكړه نودَ دغه اوبودَ لوښى نه ئى كپړه اخواكړه اوبه ئى ترې واخستې.[٦]

**دويم احتمال:** دويم احتمال دادې چه سترته ضمير مفعول رسول الله ﷺ ته راجع وى يعنى ما په رسول الله ﷺ باندې په يوه كپړه سره پرده اوكړه. دَدې تائيد دَ امام بخارى رحمه الله ((**باب التستر فى الغسل عند الناس**)) كښې سفيان عن الاعمش په طريق سره دَحضرت ميمونه رضي الله عنها دَ روايت نه كيږى په كوم كښې چه حضرت ميمونه رضي الله عنها په صراحت سره فرمائيلى دى: ((**سترت النبى صلى الله عليه وسلم وهو يغتسل من الجنابة**))

**قوله: فصب على يده:** علامه كرمانى رحمه الله علامه زكريا انصارى رحمه الله اوعلامه قسطلانى رحمه الله وغيره فرمائي چه دَ فصب عطف ((**فأراد رسول الله صلى الله عليه وسلم الغسل فكشف رأسه فأخذه**)) محذوف باندې دې يعنى حضرت ميمونه رضي الله عنها فرمائي چه ما دَ رسول الله ﷺ دَپاره دَ غسل اوبه كيخودې اوهغه مې په يوه كپړه باندې پټې كړې نو حضورپاك دَ غسل په اراده سره تشريف راوړواودَ لوښى نه ئى كپړه اوچته كړه او اوبه ئى واخستې په خپل لاس باندې واچولې.[٧]

---

[١] شرح الكرمانى: ۱۲۸/۳عمدة القارى: ۳۱۵/۳ارشاد السارى: ۵۰۳/۱.

[٢] فتح البارى: ۴۵۹/۲.

[٣] عمدة القارى: ۳۱۵/۳.

[٤] فتح البارى: ۴۵۹/۲ عمدة القارى: ۳۱۵/۳.

[٥] ارشادالسارى: ۵۰۳/۱.

[٦] شرح الكرمانى: ۱۲۸/۳عمدة القارى: ۳۱۵/۳ارشاد السارى: ۵۰۳/۱تحفة البارى: ۲۲۶/۱.

[٧] شرح الكرمانى: ۱۲۸/۳ تحفة البارى: ۲۲۶/۱ارشاد السارى: ۵۰۳/۱.

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله علامه کرمانی رحمه الله وغیره دا رائې په قیل سره ذکرکولونه پس لیکی چه محذوف باندې هم عطف والا احتمال متعین نه دې بلکه په دې کښې دا احتمال هم دې چه فصب عطف وضعت باندې وی لکه څنګه چه د حدیث د الفاظو نه هم ښکاره ده. یعنی ما د حضورپاك د پاره د غسل اوبه کیخودې نو حضورپاك غسل شروع کړو اودا ممکن دې چه کپړې هم اول لرې کړې وی. دحضرت میمونه رضي الله عنها اوبه کیخودو سره نې غسل شروع کړې وی او داوبو اخستلو معنی فصب کښې بعینه موجود ده. «ښکاره خبره ده چه اوبه اخستو سره هغه په لاسونو باندې وربهیول ممکن دی».([1])

**دعلامه عینی رحمه الله په حافظ صاحب باندې رد:** علامه عینی رحمه الله د علامه کرمانی رحمه الله توجیه اختیارولونه پس په حافظ صاحب باندې رد کولوسره لیکی چه دبعض خلقو د فصب عطف په وضعت باندې ګرځول لکه چه د دغه خلقو د تصرف په شان دی چه د معنی تراکیب هیڅ ذوق صحیح نه لری. او صب ماء په وضع ماء باندې څنګه مرتب کولې شی کله چه په دې دواړو کښې نور افعال هم دی. بیا د صب تفسیر شرع سره کول هم صحیح نه دی.([2]) «ښکاره خبره ده چه دغسل شروع په لاسونو باندې اوبه بهیولوسره نه کیږی بلکه ددې نه وړاندې هم ډیر مراحل دی لکه چه علامه عینی رحمه الله ددې طرف ته اشاره کړې ده».([3])

**قوله:: یده:** شراح حدیث لیکلی دی چه په حدیث کښې لفظ ید سره دا دې چه مفرد دې مګر دې نه دواړه لاسونه مراد دی ځکه چه په لفظ ید سره اسم جنس مراد دې لهذا د دواړو لاسونو مراد اخستل صحیح دی.([4])

**قوله:: قال سلیمان:** دا د ابوعوانه رحمه الله وینا ده او د سلیمان نه مراد په سند کښې ذکر د ابوعوانه شیخ سلیمان بن مهران دې کوم چه د اعمش په لقب سره معروف دې.([5])

**قوله:: لاأدري أذکر الثالثة أم لا:** د أذکر فاعل سالم بن ابی الجعد دې. د دې قول مطلب دادې چه ابوعوانه اووئیل چه سلیمان اعمش وائی چه ماته یاد نه دی چه زما شیخ سالم بن ابی الجعد «فغسلهما مرة أو مرتین» نه پس ثلاثاً لفظ ذکر کړو که نه؟([6])

**د امام اعمش په روایاتوکښې تعارض:** دلته دابوعوانه په روایت کښې امام اعمش «لاأدري أذکر الثالثة أم لا؟» وائی او باب الغسل مرة واحدة کښې دعبدالواحد په روایت کښې هغه دخپل استاذ نه مرتین أوثلاثا شك سره نقل کړې دې. خو ابوعوانه اسفرائنی په خپل مستخرج کښې محمدبن فضیل عن الاعمش عن سالم بن ابی الجعد دا روایت نقل کړې دې. په دې کښې امام اعمش رحمه الله دخپل استاذ شیخ سالم بن ابی الجعد نه بغیر د څه شك جزم سره «فصب علی یدیه ثلاثاً» الفاظ نقل کړی دی

---

[1]) فتح الباری: ۴۵۹/۲.
[2]) عمدة القاری:۳۱۵/۳.
[3]) عمدة القاری: ۳۱۵/۳.
[4]) شرح الکرمانی: ۱۲۸/۳ عمدة القاری: ۵۱۳/۳ارشادالساری: ۵۰۳/۱تحفة الباری:۲۲۶/۱.
[5]) شرح الکرمانی: ۱۲۸/۳فتح الباری: ۴۵۹/۲عمدة القاری: ۵۱۳/۳ارشادالساری: ۵۰۳/۱تحفة الباری: ۲۲۶/۱.
[6]) شرح الکرمانی: ۱۲۸/۳فتح الباری: ۴۵۹/۲عمدة القاری: ۵۱۳/۳.

نولکه دَامام اعمش رحمه الله دا دواړه روايتونه خپل مينځ کښې متعارض دی په يوکښې ئې شك او بل کښې جزم فرمائيلې دې. (۱)

**دَاعمش په رواياتوکښې تطبيق:** دَامام اعمش رحمه الله په دې دواړو روايتونوکښې جمع او تطبيق صورت دادې چه دَ امام اعمش رحمه الله اول په دې خبره کښې شك وو چه دَهغه شيخ ثلاثاً فرمائيلی دی که نه. چنانچه هغوی شك سره روايت بيان کړو. عبدالواحد او ابوعوانه دَخپل شيخ امام اعمش نه دا روايت په شك سره نقل کړو روستو امام اعمش ته ياد شو چه دَهغه شيخ سالم بن ابی الجعد رحمه الله دَ ثلاثاً الفاظ ذکر کړی وو نودَهغه شك لرې شو اوهغوی دَدې جزم اوفرمائيلو. چونکه دَ ابن فضيل دَ امام اعمش نه سماع دَ عبدالواحد او ابوعوانه نه متاخر ده په دې وجه محمدبن فضيل دَامام اعمش نه جزم سره «فصب علی يديه ثلاثاً» الفاظ نقل کړی دی. (۲)

**قوله: ثم أفرغ بيمينه علی شماله:** بيا حضورپاك خپل ښی لاس سره په ګس لاس باندې اوبه اوبهيولې (واچولې).

امام بخاری رحمه الله هم دغه روايت «باب نفض اليدين من الغسل عن الجنابة» کښې دَ ابوحمزه عن الاعمش په طريق سره نقل کړې دې. دَهغې الفاظ دادی: «وصب علی يديه فغسلهما، ثم صب بيمينه علی شماله» يعنی حضورپاك په دواړو لاسونو باندې اوبه واچولې اوهغه ئې اووينځل. بيا په خپل ښی لاس سره په ګس لاس باندې اوبه اوبهيولې. حافظ ابن رجب حنبلی رحمه الله فرمائی چه په دې روايت سره واضحه شوه چه حضورپاك په لوښی کښې دَ ښی لاس داخلولونه وړاندې دواړه لاسونه وينځلې وو. (۳)

دغه شان «باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة» کښې امام بخاری رحمه الله حفص بن غياث عن أبيه عن الاعمش په طريق سره دَحضرت ميمونه رضی الله عنها نه نقل کړی دی: «صببت للنبی صلی الله عليه وسلم غسلاً، فأفرغ بيمينه علی يساره فغسلهما ثم غسل فرجه» ابن رجب حنبلی رحمه الله اوليکل چه دَدې الفاظونه مراد دادې چه حضورپاك په ښی لاس باندې لوښې واخستلو او په خپل ګس لاس باندې اوبه واچولې او بيائی دواړه لاسونه اووينځل. (۴)

---

(۱) إرشاد الساري: ۵۰۳/۱.

(۲) فتح الباري: ۴۹۵/۲عمدة القاري: ۵۱۳/۳إرشاد الساري: ۵۰۳/۱تحفة الباري: ۲۲۶/۱وأما رواية ابن فضيل عن الأعمش أخرجه أبوعوانة الإسفر لنينی فی مسنده (۲۵۰/۱) فی کتاب الطهارة باب بيان دلک الشمال بالأرض بعد غسل الفرج وغسل الرجلين فی الوضوء بعد غسل الجسد بعد أن تنحی مقامه، والدليل علی أباحة القيام من مقعده بين وضوءه وقعوده فی مکان اخر لإتمام وضوءه، والترغيب فی ترک المسح بالمنديل بعد الغسل، وبيان الابتداء بغسل يمينه عليه بشماله:[ ۸۶۴]حدثنا أحمد بن عبدالجبار قال: ثنا محمد بن فضيل عن الأعمش، عن سالم بن أبی الجعد عن کريب، عن ابن عباس، عن ميمونة قالت: قربت لرسول الله صلی الله عليه وسلم غُسلاً من الجنابة وسترته بالثوب، قالت: فصب علی يديه ثلاثاً من الإناء فغسل يديه، ثم صب بيمينه عی شماله فغسل فرجه، ثم مسح يديه بالأرض أو الحائط، ثم مضمض واستنشق وغسل وجهه وذراعيه، ثم أفاض الماء علی رأسه وعلی سائر جسده، ثم تنحی فغسل قدميه، ثم ناولته المنديل ينشف وجعل ينفض عنه الماء. انتهی.

(۳) فتح الباري لابن رجب الحنبلی: ۱۶۷/۱.

(۴) فتح الباري لابن رجب الحنبلی: ۱۶۷/۱.

**دَعلامه ابن بطال رائې:** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي: **«هذا الحديث محمول عند البخاري على أنه كان في يده أوفي فرجه جنابة أوأذى فلذلك دلك يده بالأرض وغسلها قبل إدخالها في وضوئه»**[1]

دَ امام بخاری رحمه الله په نیزحدیث باب په دې خبره باندې محمول دې چه دَحضوراکرم په لاس یا شرمګاه باندې دَ جنابت څه ناپاکی لګیدلې وه هم په دې وجه باندې حضورپاك خپل لاس په زمکه باندې راښکلو اودَ اوبو په لوښی کښې دَ داخلولونه وړاندې ئې اووینځلو. دَ امام قسطلانی رحمه الله هم دغه رائې ده.[2]

**دَامام خطابی رحمه الله توجیه:** امام خطابی رحمه الله **«أعلام الحديث في شرح صحيح البخاري»** کښې لیکلی دی چه په استنجاء کښې خو په ښی لاس سره په ګس لاس باندې اوبه اچولوسره په ګس لاس باندې استنجاء کول هم دغه یوصورت دَ جواز دې. دَدې نه علاوه (بغیرضرورت) جائزنه دی. باقی پاتې شوه خبره دَ اطراف دَ وینځلو نو په دې صورت کښی به کتلې شی که چرې لوښی دَ ارتې خلې والادې نوبیا به دا ښی طرف ته کیخودلوسره په ښی لاس باندې اوبه اخستلې شی اوبیابه دغه په ګس لاس باندې اچولې شی. خو که چرې لوښی دَ تنګې خلې والاوی یعنی دَ لوټې په شان وی لکه دَ تنګې خلې والابوتل یا منګې وغیره وی نوبیابه دا ګس طرف ته کیخودې شی او په ښی باندې به اوبه اچولې شی.[3]

دَ امام خطابی رحمه الله دا قول حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله دواړو نقل کړې دې.[4] هم دغه خبره ابن رجب حنبلی رحمه الله دَبعض فقهاء حنابله او شوافع وغیره نه نقل کړې ده دَدې په دلیل کښې دَ امام طبرانی رحمه الله دَ حضرت انس رضی الله عنه نه روایت ذکر کړې دې: **«أنه أراهم الوضوء، فأخذ ركوة فوضعها عن يساره، وصب على يده اليمنى منها ثلاثاً — وذكر بقية الوضوء — ثم قال: هكذا رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يتوضأ»**[5]

هغوی بعض خلقو ته په اودس کولوسره اوخودل چه په داسې توګه چه دَ یوتنګې خلې والالوښې (وړوکې ډولچه یا دَاوبو څکلو دَ څرمنې دونګا وغیره) اخستلوسره خپل ګس طرف ته کیخوده او په خپل ښی لاس باندې په دې سره درې ځل اوبه واچولې. دَ اودس مکمل کولوسره ئې اوفرمائیل چه ما رسول الله ﷺ داسې په اودس کولوسره لیدلې دې.

**دَ شریعت یوه قاعده مستمره:** علامه نووی رحمه الله **"باب التيمن في الطهور وغيره"** لاندې لیکلی دی چه په شریعت کښې دا قاعده مستمره ده چه کوم امور دَ باب تکریم او تشریف نه دی لکه کپړې پرتوګ اوموزه وغیره اچول، جمات ته داخلیدل، مسواك کول، رانجه اچول، نوکونه پرې کول، بریت کټ کول، ویښته ګمنزکول، دَ ترخ ویښته ویستل، دَ سر ویښته خرول، دَ مانځه سلام ګرځول، اعضاء طهارت وینځل، دَ بیت الخلاء نه راوتل، خوراك څښاك کول، لاس ملاوول دَ حجر اسود استلام کول وغیره اودَدې په شان نور کارونه کوم چه دَباب تکریم اوتشریف نه دی په دې ټولو کښې تیامن مستحب دې. باقی کومې خبرې چه دَدې ضد دی لکه بیت الخلاء ته داخلیدل، دَ جمات نه وتل، پوزه

---

[1] شرح ابن بطال: ۳۸۹/۱.

[2] إرشادالساري: ۵۰۳/۱.

[3] أعلام الحديث: ۳۰۴/۱-۳۰۳.

[4] فتح الباري: ۴۹۵/۲ عمدة القاري: ۳۱۴/۳.س

[5] فتح الباري لابن رجب الحنبلي: ۱۶۸/۱.

